د اسلامي روزني لړۍ

٤٠

# د اسلامی نظام فکری بنسټونه

لیکوال: مولانا سید ابوالاعلي مودودي

ژباړه: مولوی محمد شریف رحمانی

الحمد للہ و الصلاۃ و السلام علی رسول اللہ

﴿ رَبَّنَا تَقَبَّلۡ مِنَّآ إِنَّكَ أَنتَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ﴾

موضوع — مخ

لومړی فصل: دتوحید ، رسالت اواخرت عقلي ثبوت

موضوع — مخ

موضوع | مخ

# لړليک

# لړلیک

موضوع | مخ

## لړليک

موضوع — مخ

# دژباړن سریزه

دالله تعالی بیابیاشکرونه چې دقلمي جهادپه ډګرکې دشلمې پیړۍ داسلامي ویښتابه امام دهند دنیمې وچې داسلامي امت مفکر دتفسیر نبوي حدیثو تاریخ قانون اقتصاد اواسلامي سیاست عالم داسلام ستر داعي داسلامي نظام علمبرداراوداسلامي غورځنګ مؤسس اروابناد مولنا سید ابوالاعلی مودودي رحمة الله علیه داثاروپه لړکې دهغه خوږاوپه زړه پورې علمي اثر داسلامي نظام فکري بنستونه درنولوستونکیوته وړاندې کوم اوپه پښتوژباړه یې توفیق مومم

دغه کتاب دموضوع داهمیت له نظره داسلامي خوځښتونولپاره خوراوړاوشامخ مقام نیولی دهغه محبوبیت له مخې چې نوموړې کتاب دمسلمانوپرګنوپه مینځ کې ترلاسه کړې تراوسه پورې په بیلابیلوژبوژباړل شوی .

دمولنارحمةالله علیه پیاوړي قلم دنوي اوزاړه جاهلیت په افکاروا‌ونظریاتولکه ، سیکولریزم ، لبرالیزم ، نشنلزم ، کمونیزم ، سوسیالیزم ، کاپیټالیزم ، صهونیزم ، صلیبیت ، یهودیت قادیانیت اودوخت په بدعاتواوخرافاتوسخت ګوزارونه وکړه امت یې له درانه خوبه راویښ کړ داسلام دښمنانوچې داسلام په سپیڅلی دین کومې خاورې اودوړې غورځولې وې هغه یې ورځخه لرې کړې اودهغه اصلي څیره یې نړۍ والوته روښانه کړه دده په مبارک لاس جوړشوي اسلامي غورځنګ په بشپړاخلاص اوصداقت داسلام اصیل فهم اودعوت نړۍ والوته ورساؤ .

مولنارحمة الله علیه ته الله پاک سترفراست اوزیرکتیاورپه برخه کړې وه هغه مهال روسیه اوامریکادوخت سترمادي ځواکونه ؤاونړۍ یې په خپلومینځونوکې سره ویشلې وه هیچا اټکل نه کاؤچې دکمونیزمانۍ به رانسکوره شي اودلویدیځ تمدن ورسته مانۍ به دړنګیدپه حال کې ووینې.

اروابنادمولناچې اویاکاله دمخه دپانګوالې اوکمونیزم دلادینه نظامونودتاریخي شالید یادونه اودراتلونکي په باب چې کومه وړاندوینه کړې ډیره په زړه پورې ده ،الله جلت عظمه دهغه پیشنګویې ریښتیاکړه هلته چې وایې ( یو وخت به داسې راورسیږي چې کمونیزم به په خپله په ماسکو کې دخپل ځان دخلاصون لپاره سرګردانه وي پانګواله جمهوریت به خپله په واشنګټن او نیویارک کې دخپل ځان دساتنې په غم کې په لرزه وي ماده پالنه او الحاد به خپله دلندن او پاریس په پوهنتونونو کې ځای نه شي موندلای ، نسل پرستي او قام ـتي به خپله په بامبرانو اوجوګیانو کې خپل معتقد ، ونه مومي او دااوسنی دور به یوازې دیو داستان په حیثیت کې پاتې شي )

په دغه کتاب کې دالله تعالی په وجوددتوحید ، رسالت اواخرت په هکله داسې عقلي دلایل وړاندې شوې چې نوی جاهلیت چیلنجوي اوزړونوته لارپیداکوي همدارنګه نړۍ والوته دامن لاراودانسان دتباهۍ اوبربادۍ اصلي لامل وربه ګوته کوي په همدې توګه اسلام اوجاهلیت ،اسلامي عقیده دقضاوت په تله کې اوددین حق په هکله بشپړه څیړنه کوي همدارنګه اخلاق داسلام په رڼاکې اوداسلامې خوځښت اخلاقي بنسټونه تشریح کوي اوبیادقامونودعروج اوزوال الهي قانون بیانوي همدارنګه یې دجهادپه موضوع قلم خوځولی

اوداسلام په تیر، اوس اودراتلونکي کرنلاري په هکله یې داسلام ددوباره واکمنۍ طرحه اوپلان تنظیم کړی اوپه پای کې یې داسلامي نظام هرارخیزه نقشه وړاندې کړې ترڅوداسلامي نظام دتوغ اوچتونکولپاره دهدف په لوردلاري مشال وګرزي.

څه وخت چې دجمعیت اصلاح دمهارتونودودې څانګې له خواماته دغه کتاب دژباړې په موخه وسپارل شو په داسې حال کې چې په پښتنې پرګنوکې داسلام دښمنه طاغوتې ځواکونوبازارګرم دی دامې وپتیله چې کتاب به انشاء الله اورمروژباړم .دشکرځای دی چې دغه کارمې دالله جلت عظمته په توفیق بشپړکړ.

په پای کې یې دیادونې وړبولم اوهغه داچې په ریښتیاچې دژوندپه وروستیوپړاؤنوکې زوی دامساپه څیرتکیه وي که له ماسره دګران قاري مجیب الرحمن (رحماني) اوقاري جمیل الرحمن رحماني اوقاري ګوهرالرحمن (رحماني) اوقاري عنایت الرحمن رحماني) ستوماني اوزحمت نه وای ګرانه وه چې مادومره ستومانیوته ځان تینګ کړی وای دتولوپرځوانیواوژوندبرکت شه نورنوداتاسواودااسلامي امت دمفکراوپاخه قلموال علمي اثر، الله تعالی دې زمادغه خدمت ګټوراوداروابښادمولناپاره دې دمغفرت باعث اوجاریه صدقه وګرځوي (امین).

والسلام

پوهندوی مولوي محمد شریف رحماني

# دعقل پریکړه

موږ په ډیرو سترو ښارونو کې وینو چې په برېښنا سره په سوؤنو فابریکې چلیږي.اور ګاډي او برقي واګونونه (Trams) ځي او راځي.له ماښامه سره سم په زرګونو ګروپونه روښانه کیږي،دتودوخې په وخت په هرکور کې برقي پکي چالان وي،خو ددې ټولو پیښو له لیدو سره سره بیاهم زموږ په زړونو کې دارپانتیا او تعجب هیڅ ډول احساس نه راپیدا کیږي . ددغو ځیزونود حرکت او یاروښانتیا دعلت او سبب په هکله هم زموږ ترمینځ دنظریو اختلاف نه راپیدا کیږي . داولې ؟

داځکه دغه ګروپونه چې دبریښنا له کومو مزوسره اړیکې لري هغه موږ په خپلو سترګو وینو دبریښنا ددغو مزو اړیکې چې دبریښنا له کوم مرکز سره دي،دهغو په حال هم موږ خبر یو دبریښنا په دغه مرکز کې چې کوم خلک کارکوي دهغوی په هکله هم موږ معلومات لرو . دغه کار کوونکي چې دکوم انجنیر ترلارښوونې لاندې کارکوي شغه هم پیژنو موږ ته داهم ښکاره ده چې هغه انجنیر دبریښنا دماشینونو دکار کولو په ټولو اصولو پوهیږي او دبریښنا په برخه کې بشپړ معلومات لري.له هغه سره دبریښنا ډول ، ډول ماشینونه دي چې دهغو په چالانولوسره دغه قوت (بریښنا) پیداکیږي ، چې اغیزې یې موږ دګروپونو په روښانتیا ،دپکیو په تاویدو،داورګاډو برقي واګونونو (Trams) او دفابریکو دماشینونو په حرکت کې وینو ، دبریښنا داثارو په لیدو سره چې دهغې داسبابو په هکله زموږ ترمینځ کوم اختلاف نظرنه راپیداکیږي دهغې یواځینی علت دادی چې دهغو

اسبابو او عواملو ټوله سلسله چې بریښنا تولیدوي زموږ دمحسوساتو په دایره کې شامله او موږ لیدلې ده .

داسې یې فرض کړئ چې داګروپونه پخپله روښانه کیدلی ،پکې هم تاویدلی او په همدې توګه اورګاډي ، برقي واګونونه،فابریکې او برقي ژرندې چلیدلی خو هغه مزې چې په هغو سره دوی ته بریښنا ورځي زموږ دمحسوساتو له دایرې نه بهروی ، موږ دبریښنا دمرکز په کارکوؤنکو هم خبرنه وی،اوداهم راته ځرګنده نه وی چې دغه فابریکه کوم انجنیرلري اوهغه دخپلې پوهې په قدرت سره دغه فابریکه چلوي . ایاهغه وخت به هم دبریښناد دومره اثارو په لیدلو زموږ زړونه همداسې ډاډه اومطمئن وای ؟ ایا هغه وخت به هم موږ په همدغه توګه ددغه ډول مظاهرودعلتونواوسببونوپه برخه کې اختلاف نظرنه درلودی ؟ځرګنده خبره ده چې تاسویه دغو پوښتنو ته منفي ځواب ورکړئ ، ولې ؟ داځکه کله چې داثارو اسباب اوعوامل له نظره پټ او دمظاهرو علتونه ناځرګندوي،نوپه زړونو کې ددغه ډول اثارو او مظاهرو په لیدوله اریانتیا سره دبې اطمېنانۍ راپیداکیدل ددغه پټ راز په ځرګندولو کې ددماغونو ستړي کیدل او ددغه راز اسرارو په هکله په خپلو مینځو کې دقیاس او نظریاتو اختلافات درلودل بوه فطري خبره ده .

## لومړی ډله دقياس او ګومان څښتنان

اوس به موږ او تاسو دهمدې فرضيې پراساس خپلو خبرو ته ادامه ورکړو تاسو داسې فرض کړئ هغه څه چې موږ مخکې دفرضيې په توګه ووېل په حقيقت کې په ريښتوني توګه موجود دي ، دمثال په توګه په زرګونو او لکونو ګروپونه روښانه دي ، په سلګونو زره پکې تاوېږي بريښنا ګاډي زغلي او رازغلي ، دفابريکو ماشينونه حرکت کوي ، خو زموږ سره داسې کومه آله او ذريعه نشته چې په هغې سره داڅانته ثرګنده کړو چې په دغو شيانو کې څه ډول قوه د حرکت عامل دی او هغه قوه له کومه راپيدا کيږي . خلک هم چې دغه اثار او مظاهر ويني نو اريان دي . هرسړی ددغو اثارو داسبابو دڅرګندولو لپاره دخپل عقل نيلی زغلوي ، يو وايي چې داټول شيان له ځانه روښانه او يامتحرک دي ، له بهرنه داسې څه نشته چې هغوی ته رڼا ياحرکت وروبخښي . بل وايي له کومو موادونه چې دا شيان جوړ شوي دي دهماغو موادو ترکيب په هغوی کې درڼا او حرکت کيفيت پيدا کړی دی . څوک وايي چې نه دايوه خبره هم سمه نه ده ، له دغې مادي نړی نه وراخوا يوڅو ( خدايان)دي چې د هغوې له جملې نه څوک ګروپونه روښانه کوي ، څوک برقي واګونونه او اورګاډي چلوي ، څوک پکې چالانوي او څوک فابريکې او ژرندې ګرځوي .

ځيني خلک په دغه برخه کې له زيات فکر کولو نه وروسته بې له دې نه چې کومې څرګندې نتيجې ته ورسيږي ستړي شوي دي او وايي چې زموږ نيمګړې پوهه او عقل ددې ډول طلسم داسرارو له درک نه عاجز دی موږ يوازې په هغه څه پوهيږو چې ليدلی او

احساسولی یې شو ، له دې نه زیات نه په څه پوهیږو او نه مو فکر پرې رسیږي په هغه څه چې زموږ فکر نه رسیږي نه موږ هغه تصدیق کولی او نه یې تکذیب کولی شو دغه ټولې ډلې په فکري لحاظ له یو بل سره په جګړه اخته دي خو له یوې ډلې سره هم دخپلو افکارو ، خیالاتو او نظریاتو دتائید او دنورو دافکارو دترديد لپاره له قیاس ګومان او اټکل نه پرته بله کومه علمي وسیله نشته .

## دویمه ډله دعلم او پوهې خاوندان

په دغه وخت کې چې ددغو خلکو ترمینځ داختلافاتو بازار ښه تود دی یوسړی راځي او دوی ته وایي چې : ورونو ! ماسره دعلم او پوهې یوه داسې وسیله او ذریعه شته چې له تاسو سره نشته . دعلم په دغې وسیلې سره ماته داخرګنده شوې ده چې ددغو ټولو ګروپونو ، پکیو موټرو ،فابریکواوژرند واړیکې له ځوېټهو مزو سره دي چې تاسو یې لیدلی اواحساسولی نه شئ .دغو مزو ته دغه قوت دبریښنا له یو ستر مرکز نه راځي چې دهغې اثار تاسو دړڼا او حرکت په بڼه وینئ دبریښنا په دغه مرکزکې سترسترماشینونه دي چې بې شمیره خلک یې دکنټرول او چلولو لپاره موظف شوي دي،دغه ټول کارکونکي دیو ستر انجینر تابع دي اوداهماغه انجینردی چې په پوهه او قدرت سره یې دغه ټول نظام په منظمه توګه چلیږي او دهمده دلاربښوونې او فرمان پر اساس دغه ټول کارونه سرته رسیږي .دغه سړی راځي او په پوره قوت او اطمینان خپله ادعا وړاندې کوي خو خلک یې دروغژن بولي ټولې ډلې له هغه سره په مخالفت پیل کوي لیونی یې بولي ، وهل ټکول ، او نور ډول ډول مصیبتونه پرې راولي له کور او کلي نه یې شړي ، خو هغه له دې ټولو مخالفتونو روحي اوجسمي کړاونو سره سره په خپله ادعا ټینګ ولاړ وي په خپله ادعا کې دهیڅ ډول وېرې

اويا حرص له املـه دذرې هومره بدلون هم نه راولي . دهر ډول مصيبتونو او کړاؤنو له راتلو سره سره بياهم دهغه په ادعا کې هيڅ ډول کمزورتيا نه ليدل کيږي دهغه له ټولو خبرو اواعمالو نه داپه ډاګه څرګنديږي چې دخپلې وينا اوادعا په صداقت اوريښتينولۍ پوخ يقين اوپوره باور لري .

له ده نه وروسته دويم سړی راځي او هغه هم کټ مټ همدغه وينا وړاندې کوي وروسته دريم،څلورم،او پنځم سړی راځي او هماغه وينا اوادعا وړاندې کوي،چې له ده نه مخکينيو داعيونو وړاندې کړې وه . له دې نه وروسته دراتلونکو يوه لويه سلسله پيليږي ، ان تردې چې شمير يې کابوله سوونو او زرګونو نه هم زياتيږي ، او داټول ، هم دايوه وينا له همدغې يوې ادعا سره وړاندې کوي . دزمان ، مکان او حالاتو له بدلون سره سره بياهم د دوی په وينا اوادعا کې هيڅ ډول اختلاف نه وي . ټول همدايوه خبره کوي چې له موږ سره دعلم او پوهې يوه داسې وسيله شته چې له عامو خلکو سره نشته خو سره له دې هم ټول خلک پرهغوی دليونيوګومان اوهرډول ظلم اوتيرې پرې کوي،غواړي ديته يې اړباسي چې له خپلې وينا او ادعا نه لاس واخلي خو له دې دومره سختو کړاؤنو او ربړونو سره هغوی ټول بياهم پرخپله خبره ټينګ ولاړ وي او دنړۍ يوقدرت هم هغوی له خپل دريځ نه حتی يوانچ هم شاتګ ته نشي اړکولی ددغه بې ساري عزم او ثبات ترڅنګ دهغوی يوه بله ستره او څرګنده ځانګړتيا داده چې له هغوی څخه يوهم د دروغو،غلا،خيانت بدکارۍ،ظلم او حرام خوړلو په څير ناروا کارونو نه دی ملوث شوی دغه حقيقت دومره روښانه اوڅرګند دی چې دهغوی دښمنانو اومخالفينوته هم پرته له دې نه چې دهغوی په پاکوالی اعتراف وکړي بله لار نده پاتې شوې . دهغوی اخلاق نهايت

پاک او سپیڅلي دي ، خویونه او سیرتونه یې نهایت درجه نیک ؤ په حسن اخلاق کې هم دنورو انسانانو له ډلې نه غوره او ممتازؤ . دهغوی ټولو له جملې نه په یو کې هم دلیونتوب او جنون اثار نه لیدل کیدل ، بلکې ددې برعکس هغوی دتهذیب ، اخلاقو ،تزکیۀ نفس او نورو دنیوي چارو داصلاح اوسمون لپاره داسې بې ساري قوانین او لارې چارې تاکلې دي نه یوازې داچې تراوسه پورې څوک دهغوی په څیر اصولو او قوانینو جوړولو باندې بریالي شوي نه دي . بلکې دهغو قوانینو او اصولو دباریکیو او ښیګړو دپوهیدو لپاره دډیرو پوهانو او علماؤ عمرونه تیر شوي دي .

## دعقل په محکمه کې

دعقل په محکمه او عدالت کې یوې خواته مختلف الخیاله مکذبین ولاړ دي او بلې خواته دمتحد نظر مدعیان ،د دواړو ډلو معامله دسلیم عقل محکمې ته وړاندې کیږي دیو قاضي په حیث دعقل وظیفه او مسؤلیت دادی چې لومړی دخپل موقف اهمیت درک کړي ، او بیا ددغو دواړو ډلو دموقف او دریځ په څرنګوالي هم ځان پوه کړي اود دواړو ډلو ادعا ګانې دعدالت په تله وتلي او له هغې وروسته پریکړه وکړي چې دچاپله درنده خیژي او دچاسپکه .

دقاضي موقف او دریځ داسې دی چې پخپله له ده سره دمسئلې دریښتونوالي دڅرګندولو لپاره کومه وسیله نشته چې په هغې سره غوڅه پریکړه وکړي ، ځکه هغه پخپله په حقایقو اګاهي نلري ، خو دهغه په مخکې ددواړو ډلو خبرې ، دلایل ، او دهغو شخصي حالات او خارجي اسناد او شواهد موجود دي ، نو پردې اساس به په دغو اسنادو او شواهدو غور او څیړنه کوي او وروسته له هغې به خپله

پريکړه کوي ، چې حق د کومې ډلې په لور دی . په دغه مسئله کې قاضي هم پر ته له دي نه چې ددواړو ډلو د دلايلو توازن نه وروسته داسې پريکړه وکړي . چې دچاادعا به دعقل په محکمه کې دبلې پرنسبت په غالب ګومان حقيقت ته نژدې وي . بله کومه غوڅه فيصله نشي کولی ، ځکه څومره موادچې ددې مسئلې درونښانولو لپاره موجود دي ، دهغې له مخې داپريکړه ، چې ددې مسئلې حقيقت څه ډول دی ، مشکله ده . هغه له دغو دواړو ډلو نه يوې ډلې ته پربلې ډلې ترجيح ورکولی شي خو په قاطعيت او يقين سره دانه شي کولی چې يوه ډله تصديق کړي او بله تکذيب .

## دمکذبينو دريځ

۱ :- دحقايقو په برخه کې ددوی نظريې مختلفې دي په يوه نکته کې هم د دوی ترمينځ اتفاق او اتحاد نظرنشته ، ان تر دې چې ډير ځله ديوې ډلې دغړو ترمينځ هم اختلافات موجود وي .

۲ :- هغوی په خپله په دې اقرارکوي چې له دوی سره دعلم کومه داسې وسيله نشته چې هغه له نورو سره نه وي . له دوی څخه يوه ډله هم پرته له دې نه چې و وايې زموږ قياس او دلايل دنورو په پرتله زيات ارزښت لري دنورڅه ادعا نه کوي ، خو داخبره چې د دوی ادعا دقياس او ګومان پربنسټ ولاړه ده ټول يې مني .

۳ :- دهغوی اعتقاد ، ايمان او يقين په خپلو خپلو قياساتو باندې دومره موثق نه دی چې تزلزل په کې پيښ نه شي . په دوی کې دخپلو نظريو دبدلولو مثالونه په زياته اندازه موجود دي . په دوی کې ډيرځله داسې ليدل شوي دي چې پرون يې په شدت سره ديوې نظريې پلوي کوله ، خو نن يې پخپله هغه نظريه رد کړې او بله نظريه يې

وړاندې کړې ده دعمر ، علم او تجاربو دپرمختګ سره د دوی نظریې هم بدلون مومي .

۴:- دمدعیانو دتکذیب لپاره له هغوی سره پرته له دې نه چې وواییې هغوی دخپل صداقت او رینښتونوالی لپاره موږ ته کوم یقیني ثبوت نه دی وړاندې کړی بل داسې کوم پوخ دلیل نشته . وایې چې هغوی موږ ته هغه پټ مزي راونه ښودل چې دوی یې دپکیو دګرځیدلو اوګروپونو دروښانه کیدو او نورو الاتو دحرکت سبب ګڼي نه یې موږ ته دبریښنا موجودیت په تجربې سره ثابت کړ او نه یې موږ ته دبریښنا مرکز او ماشینونه راوښودل ، نه یې دهغوی کارکوونکی موږ ته راوپیژندل ، نه یې موږ له هغه انجینرسره مخامخ کړو ، نو بیا موږ څرنګه دا ومنو چې داهرڅه چې دوی وایې پر حقایقو مبنی دي ؟

## دمدعیانو موقف او دریځ دادی

۱:- هغوی ټول په خپل مینځ کې متفق القول دي دخپل دعوت پر ټولو بنیادي اصولو باندې له یو بل سره دنظر بشپړ یو والی لري .

۲:- دټولو په اتفاق سره همدا ادعا ده چې زموږ سره دعلم یوه داسې وسیله شته دی چې له عامو وګړو سره نشته .

۳:- له هغوی څخه یو هم داسې نه دي ویلي چې موږ دخپل قیاس اوګومان پر اساس دغه ډول ادعا کړې ده ، بلکې ټولو په اتفاق سره همدا یوه خبره کړې ده چې موږ له هغه انجنیر سره خاصې اړیکې لرو ، دهغه کارکوونکي تل موږ ته راځي اوخپله فابریکه یې هم موږ ته راښودلې ده ، نو له دې امله موږ چې څه وایو هغه دعلم او پاخه یقین له مخې وایو ، نه دقیاس او اټکل له مخې .

۴:- په هغوی کې د دې مسئلې يو کوچنی مثال هم څوک نه شي پيداکولی چې په ټول ژوند کې يې پخپله وينا او ادعا کې د ذرې هومره بدلون هم راوستی وي ، هماغه يوه وينا او يوه ادعا ده چې د دعوت له پيله د دغې ډلې هر داعي کړې او د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې يې په پر له پسې توګه تائيد کړې ده .

۵:- دهغوی خوی ، اخلاق او سيرتونه دومره پاک او سپيڅلي ؤ چې د دروغ ويلو ، مکارۍ او غدارۍ شک هم پرې نه شي کيدی ،نو له دې امله هيڅ دليل نه شي پيداکيدلی . هغه خلک چې د ژوند په ټولو معلوماتو کې د پاکۍ ،سپيڅلتيا ،صداقت اوتقوی سمبول وي ، هغه ټول دې په اتفاق سره په همدا يوه معامله کې دروغ ووايي .

۶:- داخبره هم څوک نشي ثابتولی چې په دغه ډول ادعا کې د دوی شخصي ګټې خوندي کيدلې ، خو د دې برعکس داخبره ثابته ده چې د دغې ډلې يو زيات شمير اشخاص د دغې ادعاد درلودلو له امله له سختو کړاوونو او ربړونو سره مخامخ شوي دي ، جسماني کړاوونه يې زغملي دي ، بند او زندان يې ګاللی دی ، وهل او ټکول پرې تيرشوي دي له خپل کور او کلي نه شړل شوي دي ځينې وژل شوي ، ځينې خو يې حتی په ارې سره دوه برخې کړی شوي دي لنډه داچې له يوڅو دګوتو په شمير کسانو نه پرته ، يو ته هم دخوښۍاوسوکالۍ ژوند وريه برخه شوی نه دی ، نو له دې امله څوک دشخصي ګټواواغراضو تور په دوی نه شي لګولی ، بلکې پر دې سربيره له دغه ډول حالاتو نه داهم څرګنديږي چې هغوی دخپلې ادعا په ريښتونوالي زښت زيات باور درلوده ، داسې پوخ باور چې دمرګ په وخت کې يې هم لږ ترلږه دځان دخلاصون لپاره له خپلې ادعا نه لاس وانه خيست .

۷:- ددوی په هکله څوک داهم نه شي ویلی چې په دوی کې به څوک مجنون یافاترالعقل ؤ ، ددې خبرې هیڅ ثبوت نه شته ، ځکه دهغوی دټول ژوند له چارو نه دا څرګندیږي چې دټولنې له عادي غړو نه زیات پوه او دسلیم عقل خاوندان ؤ . په دغه مسئله کې حتی دهغوی مخالفینو هم دهغوی د پوهې او تدبیر په وړاندې وسله غورزولې ده ، نو بیا څنګه سړی دامنلی شي چې دې ټولو ته په همدې یوه خاصه معامله کې لیونتوب او جنون ورپیښ شوی ؤ ؟ او هغه هم څه ډول معامله ؟ چې دهغوی لپاره په کې دمرګ او ژوند سوال مطرح ؤ . دهغې لپاره هغوی دټولې نړۍ سره په مقابله بوخت وو . دهغې لپاره چې دوی په کلونو ، کلونو له دنیا سره په جګړه وو هغه چې دهغوی دټولو ربنستونو او عاقلانه تعلیماتو (چې په دغه صفت یې ډیرو مکذبینو هم اعتراف کړی دی) اصل الاصول ؤ .

۸:- هغوی په خپله هم دانه وو ،ویلې چې موږ له انجینر یادهغه له کار کوونکو سره ستاسو دملاقات او لیدنې کتنې زمینه برابرولی شو یادهغه پټه کارخانه تاسو ته دربنودلی شو ، یاپه تجربې او مشاهدې سره خپله ادعا درته ثابتولی شو هغوی په خپله دغه ټول مسایل په (غیب) پورې مربوط ګڼې او وایې چې تاسو پرموږ باور وکړئ او هغه څه چې موږ یې درته وایو هغه ومنئ .

# دعقل دمحکمې پريکړه

دعقل محکمه له يولړ تحقيق او څيړنې وروسته چې ددواړو ډلو د ادعاګانو او دريځونو په برخه کې يې وکړې خپله پريکړه په لاندې ډول صادروي :

هغه وايي چې دڅومره بهرنيو اثارو او مظاهرو له ليدلو نه وروسته دهغو دباطني اسبابو او عواملو دپيدا کولو لټون دواړو ډلو ترخپلې وسې پورې کړی دی او په دغه برخه کې هرې ډلې خپل نظريات وړاندې کړي دي ، دغه نظريې له دوو ملحو ظاتو پراساس سره ورته دي .لومړی داچې دټولو نظريې له دې امله سره ورته دي چې دعقل له مخې يوه هم مستحيل نه ده يعنې دعقلي قوانينو له مخې ديوې ډلې دنظريې په برخه کې هم څوک دانه شي ويلی چې ددغې نظريې سم والی او رينښتونوالی ناممکن دی . دويم داچې له دغو نظريو نه ديوې نظريې صحت او رينښتونوالی هم په تجربې او يامشاهدې سره نه شي ثابتيدلی . نه له لومړۍ ډلې نه کوم ګروپ ياټولګی دخپلې نظريې داسې علمي(Scientific) ثبوت وړاندې کولی شي چې هرڅوک يې په منلو مجبور شي او نه دويمې ډلې دغه ادعا کړې ده چې موږ يې په تجربه ثابتولی شو او يادغه توان لرو خو دزياتو څيړنو او تحقيقاتو په نتيجه کې سړی له څينې داسې مسايلو سره مخامخ کيږي چې دهغې له مخې د دويمې ډلې نظريه ترلومړۍ ډلې غوره ګڼلی شي

لومړی: داچې تراوسه پورې دکومې بلې نظريې تائيد په اتفاق سره دومره زياتو خلکو چې په هوښيارتيا صداقت ، سپيڅلتيا او [illegible]

اخلاقو هم شهرت ولري، په دومره قوت او شدت ،پاخه ایمان او باور سره نه دی کړی

دویم:داچې ددومره زیاتو سپیڅلو انسانانو اوعالي اخلاقو خاوندانو له خوانه په مختلفو زمانو او مختلفو سیمو کې پریوې مسئلې متفق کیدل او دا ادعا کول چې دوی ټولو په همدغې وسیلې سره دخارجي مظاهرو باطني او داخلي اسباب او عوامل معلوم کړي دي ، زموږ میلان ددې ادعا تصدیق او منل زیاتوي ، په تیره بیاله دې امله چې هغه معلومات چې دوی وړاندې کړي دي ، دهغې په هکله د دوی په وینا کې هم هیڅ ډول اختلاف نه شته او دعقل له نظره مستحیل هم نه دي ، او نه دعقلي قوانینو له مخې نه څوک داخبره محاله او ناشونی ګڼلی شي ، چې په ځینو انسانانو کې ځینې داسې غیر معمولي قوتونه او استعدادونه ، شته چې په عمومي توګه په نورو انسانانو کې نه موندل کیږي .

دریم : داچې پرخارجي مظاهرو باندې هم له څیړنې او غور نه وروسته غالباً داسې څرګندیږي ، چې د دویمې ډلې نظریه دې سمه وي ، داځکه چې دبریښنا ګروپونه ، پکې ، موټرونه ، برقي ژرندې ،فابریکې او داسې نور شیان له خپله ځانه حرکت او روښنایې نه لري که چېرې یې دغه خصوصیت له ځانه لرلی ، نو دوی باید په خپل اختیار متحرک او روښانه کیدلی په داسې حال کې چې دهغوی روښنایي اوحرکت دهغوی دجسمي جوړښت او ترکیب نتیجه نه ده ځکه کله چې هغه روښانه او متحرک نه وي هماغه وخت یې هم همدغه ډول جسمي ترکیب موجود وي هغوی چې وایې دغه نظام دمختلفو قوتونو تر نفوذ لاندې دی داهم سمه نه ده ، ځکه ډیرځله لیدل شوي دي چې په ګروپونو کې رڼا نه وي ، نو پکې او برقي

واګونونه هم بندوي او کارخانې هم ولاړې وي، نو له دې امله دخارجي مظاهرو په توجیه کې چې دلومړۍ ډلې له خوانه څومره دلایل او نظریات وړاندې شوي دي هغه ټول له عقل او قیاس نه لرې دي. کومه خبره چې زیاته سمه او عقل ته نژدې ښکاري هغه داده چې د دغو ټولو مظاهرو ترشا یو قوت موجود دی، چې د دغه نظم او انسجام درسي‌سرېې په لاس کې دی او دیو ټاکلي نظام دقوانینو تراثر لاندې یې دمختلفو مظاهرو په بڼه مصرف او ځرګندوي.

دعقل محکمې دشک دخاوندانو داخبره چې موږ دمدعیانو په ادعا نه پوهیږو او په هغه خبره چې موږ پوه نه شو او سر مو پرې خلاص نه شي دهغې دتکذیب او یا تصدیق حکم هم نه شو ورکولی سمه نه ګڼي، ځکه چې دیوې خبرې پیښندل او یا واقعیت په دې پورې اړه نه لري چې ټول اوریدونکي دې پرې پوه هم شي، ځکه دواقعې دوقوع دمنلو لپاره دباوري او معتبرو خلکو متواتر او پرله پسې شهادت کافي دی. دمثال په توګه که زموږ له جملې نه څو باوري او دډاډ وړ خلک دا ووایې چې موږ په لویدیځ کې ستر، ستر، وسپنیز موټرونه ولیدل چې خلک په کې سپاره ؤ او هواته الوتل او په خپلو غوږونو مو په لندن کې له امریکانه دامریکایي سندرغاړو سندرې اوریدلې دي. موږ به په دغه مسئله یوازې همدومره غور وکړو چې دغه خلک چې دغه ډول ادعا کوي، دروغژن او مسخره خوبه نه وي، ددغې مسئلې په بیانولو کې خو به دهغوی کومه شخصي ګټه او غرض نه وي، د دوی دماغي توازن خو خراب نه دی؟ که چېرې داثابته شوه چې هغوی نه دروغژن دي، نه مسخره، نه لیونیان او نه په دغه خبره کې دهغوی کومه شخصي ګټه شته او موږ داهم ووینو چې دغه مسئله دډیرو هوښیارو، پاکو او سپیڅلو انسانانو له خوا په

پوره سنجيدګی او متانت بيان شوي ده ، نو ځرګنده ده چې موږ يې منو که څه هم داوسپنيزو موټرونو دالوتلو ، او له کومې محسوسې او ځرګندې وسيلې نه پرته دځوزرو ميلو په واټن کې دسندرو اوريدلو په مسئله هيڅکله هم پوه نه شو .

## ايمان موځنګه په برخه کيدی شي؟

دادعقل پريکړه وه چې په دغه مسئله کې مو له نظره تيره شوه خو دتصديق يقين او باور کيفيت چې (ايمان) نوميږي له دغې مسئلې څخه نه راپيداکيږي دهغه کيفيت لپاره وجدان ته ضرورت دی دهغه لپاره ضروري دی چې دانسان له دننه نه دهغه دضمير اواز دشک ترديد ، او تذبذب ټول کيفيتونه له مينځه يوسي او په ځرګندوټکو کې دا ووايې چې په دغه مسئله کې دخلکو قياس او ګومان بالکل غلط دی ريښتياهغه دی چې ريښتينو خلکو دقياس او ګومان له مخې ځيني نه بلکې د پوهې او بصيرت له مخې بيان کړي دي .

## تنګ نظري

يوبنګلی دوه کلن هلک دقولنجو په درد اوسخته تبه اخته ؤ . دهغه څور ، کړاؤ او نارامتيا ته ډير سخت زړي او ډبرزړي انسان هم زړه نشوی تينګولی ،کله به يې دخپل رنځ او کړاؤ دليری کيدو لپاره په ډير اميد دمور او پلار خواته وکتل او کله به يې دډاکټر بې خونده او ترخې دواته خوله خلاصه ونيوله ، نو دتل لپاره له خپل مور او پلار نه رخصت شو دهغه دځنګندن سخت حالت مې چې وليده نو زما په زړه کې يوه پوښتنه راپيدا شوه چې هغه رحيم او کريم ذات چې درافت او شفقت سرچينه ده په کوچنيو او بيګانه ماشومانو باندې ولې دومره

مصائب او كړاؤنه راولي ؟ په داسې حال كې چې هغه خپله فرمايي : (ماانا بظلام للعبيد) ژباړه: زه پخپلو بندګانو ظلم كونكى نه يم )دا ديو دوست دليک اقتباس ؤ كومه پوښتنه چې د ده په زړه كې پيداشوې ده هماغه پوښتنه په مختلفو ډولونو دخلكو په زړونو كې تقريباً هر هغه وخت راپيداكيږي چې مرګ ناروغتيا او داسې نور افات وګوري . دانتهايي يوازيتوب په حالت كې په وبا باندې دزرګونو انسانانو مړه كيدل ، په زلزلې سره دزرګونو كورونو ورانيدل ، په سيلابونو كې له بې اندازې مصايبو او كړاؤنو سره دخلكو مخامخيدل ، په ژوند كې د ډول ډول سختو نارو غيو له امله دخلكو سخت څور او كړاؤ تيرول لنډه داچې دمصيبتونو دردونو او كړاؤنو ليدل دانسان په زړه كې په خپله داپوښتنه راپيداكوي هغه ذات چې رؤف او رحيم دى ، او هغه ذات چې په خپل ربوبيت فضل او كرم باندې وياړي ، او هغه ذات چې خپله وايي زه ظالم نه يم ، نو هغه ولې په خپلو بندګانو دومره سختي راولي ؟

خپل خلق كړى مخلوق چې خپله يې ورته د درد او غم احساس هم وربخښلى دى ولې په دې توګه په دومره مصايبو اوغمونو اخته كوي ، ځينې خلک خو پدې مسئله كې دومره زياتى كوي چې دالله جلت عظمته دقهر دغه اثار دحق تعالى درافت او رحمت دصفاتو منافي ګڼي . په دې برخه كې په دې بې اساسه ګومان اخته كيږي چې ګواكې معاذ الله الله (ج) يوړوند قدرت( Blindforce) دى چې دچا په هوساينه او ربړ هيڅ خبر نه دى هغه په همدې توګه پرته له دې نه چې په دې برخه كې پوهه ولري له ځان سره يې په جوړولو او ورانولو لګياوي كړي يې او ربيي يې . هغو خلكو چې دكايناتو په نظم، او پرځمكې او اسمان غوراو ځيرنه كړې ده هغوى دې نتيجې ته رسيدلي دي چې

کاینات ځانته لـه ځانګړواجزاؤ او توکونو نه دي جوړ شوي بلکې هغه یوداسې کل دی چې ټول توکونه (اجزاء) یې لـه یوبل سره مربوط دي دزمکې یوه ذره دمریخ او عطارد له ذراتو سره داسې اړیکې لري لکه څنګه یې چې زما دسریو ویښتـه زما دلاس له نریو ویښتو سره لري . یعنې داچې ټول کاینات یوجسد دی چې توکونه اواجزا یې په داسې توګه سره اړیکې لري لکـه څنګه چې دیو جسم داجزاؤ او توکونو ترمینځ وي لکـه څنګه چې دکایناتو په اجزاؤ کې ربط او تسلسل موجود دی په همدې توګه په هغو پیښو کې هم ربط اوتسلسل شته ، چې په دغو کایناتوکې مینځ ته راځي دنړۍ هیڅ یوه ستر ه یا وړه پیښه په خپل ذات کې یـوه مستقله او ځانګړې پیښه نده بلکې هغه دټولو کایناتو دپیښو دسلسلې یوه کړۍ ده چې دیوه بشپړ مصلحت په نظرکې نیولو سره مینځ ته راځي چې دهغې په نظرکې نیولو سره الله تعالی خپل بې پایه سلطنت چلوي داخبره دغوروړده هغه څوک چې دټولوکایناتو په هکله نظراو علم نه لري بلکې علم یې دکایناتو دیوې ډیرې کوچنۍ برخې په هکله محدودوي چې لـه کـل سره یې دومره مناسبت هم نه وي لکه څومره چې دیوې ذرې له لمر سره وي او دهغه چا په مخکې چې د کایناتو دپیښو بشپړه سلسله (لړۍ) نه وي بلکې ددغې بې حد او حصره سلسلې له کړیو نه محض له یوې ، یادوه یا څو کړیو سره وي او هغه څوک چې دکایناتو د دغې کوچنۍ برخې او پیښو په دغو څو کړیو کې هم یوازې ظاهري بڼه او سطحه وینی په باطني حقایقو دپوهیدو لپاره کومه وسیله هم ورسره نـه وي ، نو ایا دغـه ډول یوانسـان د دې وړتیا لري چې دیـوې جزیـې پیښـې پـه لیدو دهغې دحکمت او مصلحت په هکله صائب نظر ښکند کړي ؟او که چېرې هغه دکومې نظریې دورکولو جرات هم وکړي نو ایا دهغه نظر

داعتبار وړ کیدی شي ؟ دکایناتو نظام او دالله (ج) پادشاهي خو دومره پراخه ده چې تصور یې هم زموږ دذهن له توانه وتلی کار دی تاسو په وړه کچه (پیمانه) یو انساني سلطنت په نظر کې ونیسئ هغه څوک چې دوزارت یا پاچاهۍ پرتخت ناست دی دیوې سترې پاچاهي دانتظام چارې ترسره کوي سره له دې چې هغه هم زموږ په څیر یو انسان دی دفطري استعداد له مخې زموږ او دهغه ترمینځ دومره زیات توپیر نه شته او همدارنګه دهغه څه کاروبار او معاملې چې دي په هغو کې بوخت دی یوه هم داسې نه ده چې دهغې دسرته رسولو اویا پرې دپوهیدلو قدرت او استعداد په موږ کې نه وي خو یو ازې به همدومره توپیروي چې هغه دحکومت له کرسۍ نه دټولې پاچاهي نظم ونسق او پیښې ویني او موږ په یو ګوښه کې له دغو مسایلو سره یوه اندازه بې تعلقه پاتې شوي یو همدغه مسئله زموږ او د دوی ترمینځ دومره ستر توپیر پیداکوي چې موږ سملاسي دهغه په کاروبار او مسایلونه شو پوهیدلی که کومه جزیې پیښه په دغه وخت کې زموږ مخې ته راشي نو موږ پرې نه پوهیږو چې دهغې غایه او مصلحت څه دی نو څرنګه چې دانسان او انسان ترمینځ محض د دریځ او موقف له امله دومره توپیر پیداکیږي نو خپله څیر شئ چې د الله (ج) او انسان تر مینځ به تفاوت څومره وي په داسې حال کې چې دلته یوازې دموقف او دریځ مسئله نه ده دحقیقت توپیر هم ډیر ستر دی هغه په ټولو کایناتو حکومت کوي او موږ دده دپاچاهۍ په یوه ډیره کوچنۍ برخه کې ناست یو . دهغه پوهه او درک پرټوله نړۍ محیط دی او زموږ دپوهې او دانش احاطه زموږ دجسم ترباطني حقایقو پورې هم نه ده رسیدلې دهغه قدرتونه بې پایه دي او له موږ سره یو قدرت هم له هغو څیني نشته .

که له دې دومره سترو توپیرونو سره سره بیا هم موږ دهغه په کارونو تنقید وکړو او دهغو دحکمت اومصلحت په هکله کوم نظربنکاره کړو نوایا دغه تنقید به له هغه تنقید نه په کروړونو درجې جاهلانه او احمقانه نه وي چې یو ناپوهه بانډه چي په خپله کوډله کې ناست وي او دسلطنت دمسایلو په هکله یې کوي . له دې نه یوبل زیات څرګند مثال ته ځیر شئ ، فرض یې کړه چې تاسو یو بنوال (باغبان) یاست . هغه باغ چې تاسو د ډیرو ستونزو په ګاللو سره ایښی دی او دهغه دودې ، روزنې او ښکلا لپاره مو خپل ټول مهارت او پوهه پکار اچولې ده . دهغه له ونو ، نیالګیو او بوټو سره به یقیناً چې ستاسو مینه وي تاسو به دهغې په ساتنه کې یوه شیبه هم غفلت نه کوئ دباغ دونو ، بوټو او نورو نباتاتو بې ضرورته غوڅول ، ماتول او را ایستل به ستاسو هیڅ خوښ نه وي که چېرې کوم بل څوک تیشه په لاس راشي او ځینې ونې او نیالګي ووهي نو په تاسو به ډیره ناوړه اغیزه وکړي تاسو ته دعلمي اصولو له مخې داڅرګنده ده چې په نباتاتو کې هم دراحت ، اذیت ،رنځ او خوښۍ احساس شته او تاسو په دې پوهیږئ چې که ونې او نیالګي څوک په تبر او یا قیچي غوڅ کړي ، نو هغوی هم په تکلیف کیږي . داعضاؤ (ښاخونو ) په غوڅولو او ماشومانو (میوو) په جلا کیدلو هغوی هم درنځ او تکلیف احساس کوي ، خو ددغې مینې او پوهې سره سره چې تاسو یې دباغ په هکله لرئ بیا هم دباغ دبشپړ مصلحت په نظر کې نیولو سره دباغ دځینو ونو په سرکپولو او اضافي نودو په غوڅولو پیل کوئ دسبو پټې دریبولو نه وروسته اواروئ ،خامې او پخې میوې دخپلې اړتیا پر اساس راشکوئ غوړیدلي ګلان او غوټۍ راشکوئ بې ضرورته او کمزوري نیالګي ، بوټي او وچې ونې له بیخه باسئ که دغه عمل ته

دونو نيالګيو او بوټو له نظره وګورئ نو داهرڅه له يوې مخې ظلم دی که په هغو کې کوچني کوچني نيالګي چې تر اوسه يې د ژوند يو پسرلی هم نه دی تير کړی له بيخه باسي وړې وړې ،غوټۍ شکوي نه زړوته ګوري او نه ځوانو ته خو بس همدايو غوڅول يې زده دي او کله خو داظالم يو ماشين له ځان سره راوړي او داسې يې چلوي چې زمو په څير نور په زرګونو نباتات په يو څو شيبو کې وريبي ايا داسې سړی مهربان او شفيق کيدی شي ؟ ايا د هغه په زړه کې به دمحبت رحمت او رافت پاک او سپيڅلی احساس وي ؟ موږ ته خو په دغو غوڅولو پريکولو ، له بيخه ايستلو کې هيڅ مصلحت نه ښکاري موږ ته خو دغه عمل ديوه رانده بې احساسه او سخت زړي موجود ښکاري چې بې له کومې پوهې اوحکمت او هدف نه کله او به راکوي او کله مو قيچي کوي کله سره راکوي او کله مو په تبر وهي او ليرې مو غورځوي کله په نورو باندې هم زموږ ساتنه کوي او کله مو په خپله له بيخه باسي يو ماشين راوړي او موږ پرې په ډله ئيزه توګه وژني که ونې په دغه برخه کې پر تاسو انتقاد وکړي نو تاسو به څه و وايې ؟ همدغه به ووايې چې دهغوی نظر محدود دی ځکه هغوی يوازې خپل ځان او خپل نژدې خپل او خپلوان په نظر کې نيسي خو زما نظر ډير وسيع او پراخه دی ځکه زه دباغ کلي مصلحت په نظر کې نيسم او دهغوی يوازې دخپلو ميوو دانو . پاڼو او ښاخونو سره مينه ده او له زيات نه زيات به يې دشاو خوا له ونو او نيالګيو سره هم دمينې اوهمدردۍ اړيکې موجودې وي خو ما د ټول باغ ښيګړه په نظر کې نيولې ده او په مجموعي توګه د ټولو دخير او مصالحو لپاره دغه کار سرته رسوم .

هره ناپوهه ونه او نیالګی داسې فکر کوي چې داټول باغ یوازې د ده او دده د دوستانو اوخپلوانو لپاره اینبودل شویدی او په دې باغ کې باید یوازې دهمده ګټې خوندي شي خو ما په حقیقت کې دوی دخپل باغ دښکلا لپاره ایښې دي له دوی سره که زما څه مینه او دلچسپي شته نو هغه یوازې دخپل باغ لپاره ده ترکومې اندازې چې دباغ دښه والي لپاره ضرورت او ګټه لري زه دهرې ونې هر نیالګي او هر بوټي ساتنه اوروزنه کوم خو کله چې دباغ دکلي مصالحو تقاضاوي ، نو زه په هغه کې غوڅول سرکټول ، پیوندول ، له بیخه ایستل داهر څه کوم ځکه چې دباغ ټولې ګټې زما لپاره دیو یو نیالګي ، یوې یوې ونې او بوټو له شخصي ګټو نه زیات ارزښت لري که دوی داګومان کوي چې زه له دوی سره د دښمنی له امله داکار کوم نو دابه د دوی ناپوهي او تنګ نظري وي په دوی کې دا وړتیا او صلاحیت نشته چې دباغ په معاملاتو او مصالحو پوه شي دوی یوازې دخپل تکلیف احساس کولی شي او دخپل ژوند اوهوساینې فکر ورسره دی هرکله چې ددوی غوښتنواواحساساتوته دباغ دکلي مصالحوله امله زیان رسیږي نو دوی بې صبره کیږي او پرما دظلم ګومان کوي خو حقیقت د دوی دګومان تابع نه دی دوی دګومان له امله زه حقیقتاً ظالم کیدی نشم او نه ددوی لپاره دخپل باغ نظام بدلولی شم که تاسو دغه کوچني مثال ته لږ په ژور نظر و ګورئ نو یقیناً چې تاسو ته به ستاسو زیاتو ګیلو مانیو ځواب په لاس درشي کله چې موږ دکایناتو په نظام غور کوؤ ، نو داسې راته ثرګندیږي ، چې د دغې بې سارې کارخانې جوړونکی او چلونکی باید بې له شکه یوه داسې هستي وي چې بې نهایت به حکیم یوه علیم او خبیر وي هغه هستي چې په موږ کې خواهشات او غوښتنې راپیداکوي نو

داناممكنه ده چې هغه دې له دغه ډول خواهشاتو نه بې خبره وي هغه چا چې ماشوم پيدا كړى دى او دهغه دپالنې او روزنې لپاره يې د مور او پلار په زړه كې مينه پيداكړې ده ، هغه حتماً په دې هم پوهيږي چې له ناروغتيا او مړينې نه ماشوم ته څه تكليف ورپيښيږي او دمور او پلار زړه ته يې څومره صدمه ور رسيږي په دې ټولو څيزونو له پوهيدو سره او هغه هم له مور نه زياتې پوهې سره چې بيا هم هغه ذات په ماشوم او مور او پلار باندې دغه تكليف او كړاؤ نازل كړ او څرنګه يې چې زمور له احساساتو نه په خبرتيا سره بياهم دهغو پايمالول خوښ كړل او زمور دخواهشاتو له پوره كولو نه يې انكار وكړ سره له دې چې پرې پوهيده هم ، نو ددغو مسايلو په نظر كې نيولو سره بايد مور په دې پوه شو چې پرته له دې نه به بله چاره نه وي او دهغه عليم او خبير ذات په علم كې به له دې نه پرته بله كومه غوره لار نه وه . كه نه نو له دې نه به يې بله ښه لار غوره كړې واى ځكه هغه حكيم ذات دى او دحكيم په برخه كې څوك داګومان نشي كولى چې ديوې مسئلې دحل لپاره به غوره او ښه تدبير موجود وي او هغه دې بد تدبير غوره كاندي .

په دې كې شک نشته چې دهغه په حكمتونو مور نه پوهيږو او نه پرې پوهيدى شو داځكه چې مور دكايناتو دټول نظام په هكله معلومات نلرونو ځكه په دې هم نه پوهيږو چې دكايناتو دنظام مصالح څه دي اودهغولپاره په څه وخت دڅه ډول تدابيرو ضرورت دى خو كه چېرې په اجمالي توګه مور دالله تعالى په حكمت او پوهه او دهغه په بشپړ علم كلكه عقيده ولرو نودهرافت له نزول سره بايدمور داسې فكروكړو چې دالله تعالى دحكمت به همداغوښتنه وي اودهغه دبشپړ

علم لـه مخې بـه همدا مناسب وي اوزمونږلپاره له تسليم او رضا نه پرته بله چاره نشته .

يـوه بله خبره چې وروسته له يوڅه غور او فکر نه مونږ ته ځرګنديږي هغـه داده چې هغـه هستي چې د کايناتو دغـه نظام چلوي . هغـه هم يوکلي خير او ښيګړه په نظر کې لري هغه څه چې دهغه په کارونو کې زمونږ پـه نظر شر او فساد ښکاري هغـه پـه اصل کې اعتباري شر او فسادنه دي ، يعنې داشخاصو دقياس او ګومان په اعتبار ورته (شر) ويلى شو . مګر پـه حقيقت کې هغـه ټول کلي خيرونه دي او دهغې پيښيدل دکلي خير دحاصلولو لپاره يوه ناګزيره وسيله ده که چېرې دغـه شرور ناګزير نـه وى او له هغې نه پرته دکلي خير حاصلولو امکان درلودلى نو حکيم اوعليم ذات بـه هغـه نـه غوره کول کوم بل نظام او لاره بـه يې غوره کړې وى کـه مونږ پـه خپله دخپلو کمزوريو او عقلي نيمګړتياؤسره سره دکايناتو نظام ته په غور وګورو نو زمونږ عقل به هم داحکم وکړي چې ددغو کايناتو لپاره تردې دبل غوره نظام جوړول ممکن نـه دي کوم بل داسې نظام ورتـه نشو غوره کولى چې له دغو جزوي او اعتباري شرورونه بالکل پاک وى .

کـه دغـه شرور واقـع نـه شي نو پـه حقيقت کې به دهغوى عدم يو ستر شروي ، ځکه چې هغه به ديوه جزوى خير دحاصلولو لپاره دډيرو خيرونو دلاسته راوړلو مخه ونيسي دمثال په توګه که دمرګ د مسئلې پـه هکلـه وغږيږو چې انسان تر هرڅه له همدې پيښې نه زيات سرټکوى ديوه سړي مړينه دځومرد خلکو لپاره لاړهواروي ، که چېرې يوه سړي تـه دتلپاتي ژوند پانه ورکړى شي نو د دې خبرې به دامعنى وي چې په ډيرو خلکو دژوند درۍازه وتړلى شوه دهغه هميشنى ژوند که خير وي نو شخصاً بـه دهغـه لپاره وي دکلي خير لپاره خو هغه شر دى ددې

برعکس د دغه خاص وګړي مرګ يوازې دهمده لپاره يو جز ئي شر دی . خو همدغه شر بياد جزيي خيرونو دلاسته راوړلو ذريعه هم ده .
پاتې شوه دکلي خير مسئله نو هغې ته ددغه خاص وګړي له مړينې نه کوم زيان نه رسيږي ځکه چې دنړۍ په نظام کې دهغه دمړينې له امله کوم خلل نه پيښيږي د دغه مثال پراساس دقياس له مخې هم تاسو پوهيدی شی چې هر څومره مصايب او دردونه چې نازليږ ي هغه ټول په يو اعتبارشر دي اوپه بل ا عتبار دخير وسيله او دکلي خير لپاره دهغې پيښيدل ناګزير دي ډير ځله که موږ غور وکړو دهغې دخير وسيلې په جهت پوهيدی شو او کله داسې هم کيږي چې دتجربې له مخې دا ثابته شي چې هغه څه چې موږشرګڼل هغه په حقيقت کې ټول خيروو خو که چېرې کله دکوم شردخيرپه جهت موږ پوه نه شو نو بيا هم موږ ته پکاردي چې مجملاً په دغه حقيقت ايمان ولرو چې الله تعالی چې هرڅه کوي ، ښه يې کوي او زموږ خير په دې کې دی چې دهغه دقضا په مخکې داحترام سرونه ټيټ کړو که دهغه دفعل په ښيګړو او اصلاح موږ پوهيږو او که نه

## د محمدي رسالت عقلي ثبوت

دلږې شيبې له پاره مو حقيقي سترګې بندې کړئ او د تصور سترګې مو پرانيزئ د تصور په سترګو مو دنړۍ يو زرو څلور سوه کالو مخکې حالت د ذهن په پرده انځور کړئ. هغه څه ډول دنيا وه؟ د انسانانو ترمينځ د خيالاتو او افکارو د تبادلې وسايل څومره کم وو؟ د قومونو او هيوادونو ترمينځ د اړيکو وسايل څومره محدود وو د انسان معلومات څومره کم وو ، خيالات او افکار يې څومره لنډ او تنګ وو وهم او توحش پرې څومره مسلط وو د جهالت په تورتم کې د علم او پوهې رڼا څومره تته وه او د دغې تيارې په شاتمبولوکې څومره اوږده موده پرې تيره شوله او خپله څومره ورو ورو خپريدله په نړۍ کې نه تيلګراف و نه تيلفون و نه راډيو وه ، نه اورګاډي او الوتکې ، نه مطبعې او خپرونځايونه وو مدرسې او ښوونځي هم زيات نه وو نه ورځپاڼې او مجلې خپريدلې نه کتابونه په زيات شمير ليکل کيدل او نه په زيات شمير کې خپريدل دهغه وخت ديو پوه او عالم معلومات هم دځينو وجوهاتو له امله داوسنۍ زمانې تر يوه اُمي سړي کم و دهغې زمانې دټولنې دلوړې پوړۍ يو غړی داوسنۍ زمانې تر يو کار ګر زيات مهذب او شايسته نه و دهغې زمانې يو ډير روڼ اندی (روشنفکر) سړی هم داوسنۍ زمانې دتياره اندي (تاريک فکر) سړي نه زيات تياره فکری و هغه مسايل او خبرې چې نن هرچاته ښکاره دي په هغه زمانه کې دډيرو کلونو تحقيق او څيړنو نه وروسته هم په سختۍ سره څرګنديدلې هغه معلومات او پوهه چې نن دلمر دوړانګو په څير په فضا کې خوره ده او هرماشوم يې دښې او چپ لاس له پيژندلو سره سمه حاصلولی شي دهغې لپاره په هغه زمانه کې خلکو په سوونو

میلو سفرونه اومنزلونه کول دهغې په لټون کې به یې عمرونه تیریدل هغه مسایل چې نن او هام او خرافات ګڼل کیږي هغه دهغې زمانې (حقایق) وو هغه افعال چې نن ناوړه او وحشیانه بلل کیږي په هغه زمانه کې عام او معمولي شیان ګڼل کیدل له هغو دودونو نه چې نن دانسان ضمیرکرکه کوي هغه دهغې زمانې په اخلاقوکې نه یوازې داچې رواګڼل شوې ؤ بلکې هیچا هم دافکر نشوی کولی چې له دې دود نه پرته به هم کومه بله غوره لار او دود موجود وي .

دانسانانو عجایب پرستي دومره زیاته شوې وه چې هغوی به په یو شي کې هم ترهغه وخته صداقت ، بزرګي او سپیڅلتیا نه منله ترڅو به چې هغه فوق الفطرت نه ؤ خلاف دعادت به نه ؤ ، غیر معمولي به نه ؤ ان تردې چې انسانانو ته په خپله خپل ځان هم دومره ټیټ او ذلیل ښکاره کیده چې دایې هیڅ نشوی منلی چې یو انسان دې الله ته مقرب او نژدې شي او یا دې الله (ج) ته مقرب او نژدې موجود انسان وي ددغسې مسئلې درک او پوهه دهغه له تصور نه ډیره لوړه وه .

## عرب یا یوه ترټولو تیاره سیمه

دتاریخ په هغه تیاره پړاؤ کې دنړۍ پرمخ یوه داسې سیمه هم وه چې هلته دغه تیاره او تروږمۍ نوره هم زیاته وه . هغه هیوادونه چې په هغه زمانه کې دهغه وخت دتمدن دمعیار له مخې متمدن وو عرب په هغوکې ترټولو بیرته پاتې او جلاپراته وود دوی په شاوخوا هیوادونو لکه په ایران،روم او مصرکې دعلومو او فنونو او تهذیب رڼا لږ شان موجوده وه خو دشګو سترو سترو دښتو عربان له هغوی نه جلا کړي وو دعربو سوداګرو به په میاشتو میاشتو په اوښانو سره مزلونه کول

او دغو هيوادونو ته به دسوداګرۍ لپاره ورتلل . دتجارت او سوداګرۍ دکاروبار له خلاصيدو وروسته به بيرته راتلل ډول ډول مالونه به يې له ځان سره راوړل خو دعلم اوتهذيب رڼا به باالکل ورسره نه وه .

د دوۍ په هيواد کې نه مدرسه وه نه کتابتون او نه يې په اوسيدونکو کې تعليم دومره عام شوی وو له علم اوفن سره يې هيڅ مينه نه وه په ټوله سيمه کې په شمار يو څو کسان وو چې په څه ليکلو او لوستلو پوهيدل خو هغه هم په دومره زياته اندازه نه وو چې دهغه وخت له علومو اوفنونو سره اشناوي خوسره له دې هم د دوۍ ژبه داد بې معيارونو اوهرډول خيالاتو داظهارله مخې تر نورو ژبو ډيره لوړه پوړۍ کې شميرل کيده په هغوۍ کې ډيرلوړ ادبي ذوق موجود وو خو دهغوۍ دادبياتو کومه برخه چې ترموږ پورې رارسيدلې ده له هغې نه څرګنديږي چې دهغوۍ دپوهې اومعلوماتو ساحه څومره محدوده وه دتهذيب او تمدن په لحاظ په څومره ټيټه درجه کې واقع وو داوهامو او خرافاتو په جال کې څومره ننبستي وو دهغوۍ په خيالاتو او عاداتو کې څومره جهالت او وحشت موجود وودهغوۍ اخلاقي تصورات څومره خراب او ټيټ وو هلته کوم منظم حکومت نه ؤ کومه ضابطه او قانون هم نه ؤ هره قبيله په خپل خپل ځای خپلواکه وه او يوازې د(ځنګله دقانون) پيروي په کې کيدلهدچا به چې په چاوسه رسيدله نو هغه به يې واژه مال او شته به يې ترې لوټل دغه خبره د يوه بدوي عرب له فهم او شعورنه لوړه وه چې هغه څوک چې د ده له قبيلې څخه نه نه دی ،ولې يې مړ نه کړي مال او هستي يې ولې خپله نه کړي داخلاقو تهذيب او انسانيت کوم تصور چې له دغو خلکو سره موجودؤ هغه نهايت ټيټ ادنی او ناوړه ؤ دپاک اوناپاک جايزاو ناجايز وړاوناوړله توپير سره تقريباً نااشنا بنکاريدل ژوند يې بې نهايت

ناپاک ؤدوداو روش بې وحشيانه ؤ زنا قمار ،شراب،غلا لاري وهل ،قتل او وينې تويول د دوی دورځينې ژوند لـه ډيرو معمولي کارونو څخه شميرل کيدل ديو بل په مخکې بې له تکلفه بربنډ يدل ان تردې چې ښځوبه يې هم دکعبې طواف بربنډ کاؤ يوازې ددغه جاهلانه خيال او فکر په درلودلو سره چې څوک بې زوم نه شي خپلې لوڼې يې ژوندۍ ښخولې هغوی به دخپلو پلرونو له مرګه وروسته له خپلو ميرنيو ميندو سره نکاح کوله هغوی دخوراک لباس او پاکوالي په ډيرو معمولي ادابو هم نه پوهيدل دمذهب په برخه کې هم په هغو ټولو جهالتونو او ګمراهيو اخته وو چې دهغې وخت نورې سيمې هم پرې اخته وې ، بت پرستي ، ارواح پرستي ، دستورو پرستش لنډه داچې يوازې د الله (ج) له پالنې او پرستش نه پرته چې څومره پرستشونه اومذهبونه هغه وخت موجود ووهغه ټول په دوی کې هم دودوو دپخوانيو انبياؤ او دهغوی دلارښوونو په هکله هم دوی سم اوکره معلومات نه لرل هغوی دومره پوهيدل چې دابراهيم اواسماعيل (عليه السلام) له څوخاته دي خو پدې نه پوهيدل چې ددغه زوی او پلار دين څه ډول ؤ او دڅا عبادت بې کاؤ دعاد او ثمود کيسې هم په دوی کې مشهورې وې خو که څوک هغه روايتونه چې په دې برخه کې عربو مورخينو رانقل کړي دي ، ولولي نو په هغو کې به دصالح او هود (عليه السلام) دتعليماتو او لارښوونو کوچنی څرک هومره هم پيدانه کړی شي .

دبني اسرائيلو دنبيانو له کيسو نه هم هغوی ديهوديانو او عيسويانو په واسطه خبرؤخوداچې هغوی په دغه برخه کې څومره معلومات لرل نو دهغوی د اندازې دڅرګندولو لپاره به داکافي وي چې يو سړی يوازې يو نظر هغو اسرائيلي رواياتو ته وګوري ، چې داسلام مفسرينو رانقل کړي دي تاسو ته به داڅرګنده شي چې عربان او په خپله بني اسرائيلو چې دکومو انبياؤ په هکله معلومات درلوده هغه څه ډول انسانان ووا و دنبوت په هکله دهغو خلکو تصور څومره خراب او ناوړه وو .

## دبشریت محسن پیداکیږي

په دغه ډول زمانه او دغه ډول هیواد کې یوانسان پیداکیږي چې په کوچنیوالي کې دمور او پلار دسیوري له نعمت نه بې برخې کیږي ، له همدې امله په هغه ډول ناوړه حالاتو او شرایطو کې دی له هغه لږ او زیات تعلیم او تربیت نه چې دهغه وخت یو عرب هلک به دمور او پلار تر لاربښوونې لاندې ترلاسه کاؤهم بې برخې پاتې شو ،دښې او کیڼ لاس له پیژندلو سره سم یې دعربو له نورو بدوي هلکانو سره د وزو په پوولو پیل وکړ چې ځوانۍ ته ورسیده نو په سوداګرۍ یې شروع وکړه دهغه ناسته ولاړه لیده کاته ټول له هماغو عربو سره وو چې دټولنیز حالت وضعیت یې تاسو دمخه ولوست دلوړ تعلیم خو نوم هم وریپورې نه ؤ ان تردې چې په ساده لیک او لوست هم نه پوهیده دکوم عالم سره یې صحبت او خبرې اترې هم په برخه شوې نه وې ځکه د(عالم) په نامه موجود هغه وخت په ټولوعربوکې نه ؤ هغه یو څو ځلې دعربو له سیمې نه بهر هم سفر وکړخو دغه سفر یوازې یو تجارتي سفر ؤ لکه څنګه به چې هغه وخت دعربو تجارتي کاروانونوکاؤکه فرضاً هغه په دغه ډول سفرونوکې دعلم اوتهذیب اثار هم لیدلی وي او له ځینې پوهانوسره یې لیده کاته هم کړي وي نوخرګنده خبره ده چې په دغه ډول سرسري او نامنظمو لیدنو کتنو او لنډوخبرواتروهیڅ انسان هم نه پوهاندکیږي اونه یې سیرت ترینه جوړیږي ددغه ډول لیدنو کتنو اثر دومره زیات اغیزمن نه وي چې هغه له خپل چاپیریال نه باالکل ازاد ، مختلف او دومره لوړ شي چې د ده او دده دچاپیریال ترمینځ هیڅ ډول تناسب موجود نه وي له هغه ډول سفرونو نه دغه ډول علم او پوهه حاصلول له امکانه لرې ده چې له یوامي او ناخوانه بدوي نه دیو هیواد

نه ، بلکې دټولې نړۍ او دیوې زمانې نه بلکې دټولو زمانو لاربنود جوړ کاندي که فرضاً هغه تریوځه حده پورې له بهرنیو عالمانو او پوهانونه څه علمي ګټه اواستفاده کړې هم وي نودا ددې لپاره دلیل کیدی نه شي چې هغه څه چې وروسته ده ویل هغه یې له نورو زده کړي دي . ځکه هغه معلومات چې هغه وړاندې کړي دي . په هغه وخت کې هیچاته هم حاصل نه ؤ دمذهب ، اخلاق ، تهذیب او تمدن ، تصور او اصول په دومره لوړ معیار په نړۍ کې هیچیرې هم نه ؤ دانساني سیرت هغه لوړې نمونې چې حتی اوس هم په ډیرو پرمختللیو هیوادو کې نه موندل کیږي نو په هغه زمانه کې به یې زده کړه څنګه چاته ممکنه شوې وی یوازې عرب په نظر کې مه نیسۍ که دهغه وخت ټول ماحول په نظر کې ونیسئ نو وبه وینئ چې دغه انسان چې په کومو خلکو کې وزیږیده په کومو خلکو کې یې دماشومتوب شپې ورځې تیرې کړې له کومو خلکو سره یې چې روزنه وشوه او ځوان شو له کومو خلکو سره چې دهغه ناسته ولاړه وه . له کومو خلکو سره یې چې اړیکې وې له هغو ټولو سره یې له پیله په عاداتو ، اخلاقو اوهرڅه کې توپیر درلوده هغه هیڅکله دروغ نه ویل دهغه په صداقت دهغه ټول قوم ګواه دی دهغه ترټولو سخت دښمن هم په هغه داتور نه دی لګولی چې په پلانکي وخت کې یې دروغ ویلي ؤ هغه له هیچا سره هم په ترخه ژبه خبرې نه دي کړي هیچا هم دهغه له خولې نه سپکې سپورې او بنکنځلې نه دي اوریدلي هغه له خلکو سره هر ډول معاملې کولې خو دژوندانه په دغو ډول ډول معاملاتو کې هیڅکله هم دترخو خبرو او خپګان مسئله مینځ ته نه راځي دهغه په ژبه او وینا کې دتربخوالي پرځای خوږ والی موجودؤ او هغه هم په دې توګه چې هر چاورسره یوځل دخبرو اترو افتخارترلاسه کړی دی نو زړه یې دهغه

په ښو اخلاقو بايللى دى هغه له هيڅا سره بد معاملګي نه كوله دهيڅا حق يې نه تلف كاو دډيرو كلونو سوداګري يې هم كوله دڅا يوه روپۍ هې په ناروا توګه نه وه اخيستي له هغو خلكو سره چې دهغه دسوداګرۍ او راكړې وركړې معاملې وې ، هغوی ټولو د ده په ايماندارۍ پوره ، پوره باور درلود ټول قوم هغه ته (امين) ويل ان تردې چې دښمنانو به هم خپل قيمتي مالونه له هغه سره په امانت كيښودل او د هغوبه يې ساتنه كوله دهغو بې حيا خلكو ترمينځ هغه دومره حياناک ؤ چې په ښه او بد ، له پوهيدونه وروسته چا بربنډ نه دى ليدلى دبداخلاقو ترمينځ هغه د دومره پاكواوسپيڅلو اخلاقو خاوند دى چې هيڅكله هم په كوم ناوړه كارنه دى مبتلاشوى په شرابو او قمار يې لاس هم نه دى لګولى دناوړه اوبې تهذيبه خلكو ترمينځ دومره وړ او مهذب دى چې له هرناكاره او ناوړه كار نه كركه او نفرت كوي او په هركاراو هره خبره كې يې پاكي او سپيڅلتيا له ورايه ځليږي دسخت زړو او دبرزړو انسانانو په مينځ كې هغه دومره دنرم او مهربان زړه خاوند دى چې دهر چا په درداوغم كې شريک دى له كونډو رنډو يتيمانواو مسافروسره به يې دميلمه پالنې رويه كوله هيچا ته هم له هغه نه كوم درد او مصيبت نه رسيده او هغه به د نورو دخوښې لپاره پر ځان كړاو او خپګان تيراوه دوحشيانو او جنګ خوښونكوترمينځ دومره سوله غوښتونكى ؤ چې دخپل قوم دفساد او جنګ جګړواو وينې تويولو له أعمالو نه به يې خپله لمن ټوله ساتله دسولې او خير خواهۍ په كارونو كې به ترهرچا مخكې ؤ دبت پرستانو ترمينځ دومره سليم الفطرت او عاقل ؤ چې په ځمكه او اسمان كې هيڅ شى هم ورته دستاينې وړ نه ښكاريدل دهيڅ ډول انسان په مخكې دهغه سرنه ټيټيده د بتانو ته نذرشوي ډوډۍ يې هم نه

خوړله ، دهغه زړه په خپله له شرک او مخلوق پرستئ نه بيزاره ؤ په دغه ډول لړلي ماحول کې دغه سړی دومره څار او غوره ښکاريده تابه ويل چې په تپه تياره کې کومه شمعه روښانه ده ياد تيږو او ډبرو په ډيري کې کوم الماس ځليږي.

## دده په ژوند کې بدلون پيل کيږي

ددغه ډول پاک سپيڅلي او شريفانه ژوند له تيرولو نه تقريباً څلويښت کاله وروسته دهغه په ژوند کې يو انقلاب پيل کيږي . هغه دخپل چاپيريال له توري خورې شوې تيارې نه راپورته کيږي غواړي چې دجهالت بداخلاقئ بد کارئ ، شرک او بت پرستئ له ناولي او هيبت ناک سمندر نه چې له ده نه هم راچاپيرشوی دی راووزي په دغه ماحول کې هيڅ شی هم دهغه له طبيعت سره برابر او مناسب نه ښکاري هغه له ټولو نه جلا ، له ابادئ او ودانئ نه لرې دغرونو له امن او سکون نه ډکې دنيا ته پناه وړي هلته ارام کيني په چوپتيا او تنهايې کې څوڅو ورځې تيروي دروژو په نيولو سره خپل روح او دماغ ته لا پسې سپيڅلتيا او ځلا ورکوي غور او فکر کوي او د داسې رڼا په لټون کې دی چې په هغې سره د ده شاوخواته خورې شوې تيارې ليرې کړي غواړي چې داسې ورانه ويجاړه دنياګئ بيرته دانسانانو لپاره دسولې او امن ښکلی کور شي.

ناڅاپه دهغه په حالت کې يو ستر بدلون رامينځ ته کيږي ، يو دم دهغه زړه په هغه نور منور کيږي چې دمخه پرې نه ؤ منور شوی يو ناڅاپه په کې ځواک او قدرت راپيداکيږي چې تراوسه ترينه بې برخې ؤ . هغه دغار له تنهايې او يوازيتوب نه بهرته راوزي او خپل قام ته راځي او هغوئ ته وايي دغه بوتان چې تاسو يې په مخ کې سجدې

کوئ ټول بې حقیقته او بې معنی څیزونه دي. د هغوی پرستش پر یږدئ هیڅ یو انسان یا ستوری ، ونه ، ډبره او روح ددې وړنه دي چې تاسوې یې په مخکې دعبادت لپاره سر ټیټ کړئ بندګي او عبادت یې وکړئ . یا یې فرمانبرداري او اطاعت وکړئ دغه ځمکه ، لمر سپوږمۍ ، ستوري ، دځمکې او اسمان ټول شیان دیوالله جلت عظمته مخلوق دي . هماغه ذات ستاسو او د دې ټولو شیانو خالق دی دهماغه بندګي وکړئ دهماغه حکم ومنئ او دهماغه په مخکې سرونه ټیټ کړئ دغه غلاوې داړه ماري ، چور چپاول ، مرګ ژوبله ظلم او ستم او نور ناوړه کارونه چې تاسو یې کوئ دا ټول دګناه چارې دي ، له کولو نه یې ډډه وکړئ ځکه د الله (ج) نه خوښیږي دژوندانه په چارو کې ر ښتوني اوسئ عدل او انصاف کوئ څوک له ژوند څخه مه بې برخې کوئ دچا مال او شته مه تلف کوئ څه چې اخلئ هم په حقه یې واخلئ او څه چې ورکوئ هم په حق یې ورکوئ تاسو ټول انسانان یاست او انسانان ټول سره برابر دي نه څوک دذلت له داغ سره پیداشوی دی او نه چا دعزت او شرافت نښه له ځان سره دنیا ته راوړې ده بزرګي او شرافت په اصل او نسب پورې اړه نه لري یوازې په الله پالنې نیکۍ او سپیځلتیا پورې اړه لري هغه څوک چې له الله نه ویریږي نیک او سپیځلی دی هماغه انسان تر ټولو لوړ دی هغه څوک چې دغه ډول نه وي هغه هیڅ هم نه دی .

د مړینې وروسته تاسو ټول د الله (ج) حضورته ورتلونکي یاست تاسو هریو به د الله تعالی په مخکې دخپلو اعمالو ځواب ورکوئ دهغه ذات په مخکې چې هرڅه ویني او په هرڅه پوهیږي ستاسو هیڅ شی هم له هغه نه پټ نه دي او نه یې پټولی شئ ستاسو دژوند دټولو اعمالو بنه او بد بې له کموالي او زیاتوالي څخه د الله حضور ته

وړاندې کیږي او دهماغو اعمالو له مخې به الله (ج) ستاسو دانجام په هکله پریکړه کوي دهغه حقیقي عادل ذات په محکمه کې نه سفارش چلیږي نه رشوت اونه دچا دحسب او نسب پوښتنه کیږي هلته به یوازې دایمان اونیک عمل پوښتنه کیږي.

داهغه پیغام ؤ چې هغه له ځان سره له غارنه دراتلو نه وروسته راوړی ؤ له دي نه وروسته هغه جاهل قام دهغه دښمن کیږي ښکنځل ورته کوي اوپه تیږو یې ولي یوه ورځ نه، دوه ورځې نه بلکې پوره دیارلس کاله پرهغه باندې بې شمیره ظلمونه کوي ان تردې چې په پای کې یې دوطن پریښودلو ته هم اړ کوي خو یوازې له وطن نه شړلو باندې هم دهغوی خوانه سړیږي هرچیرته چې ځي او هرچاته چې پناه وروړي هماغلته یې هم له ځورورلو اوکړولو نه لاس نه اخلي ټول عرب دهغه پرخلاف راپورته کیږي او پوره اته کاله دهغه پر ضد جګړه کوي هغه داټول کړاؤنه او مصیبتونه زغمي . خوله خپلې خبرې او دعوت نه دوینبته هومره تجاوز هم نه کوي.

## دا دومره دښمني دڅه لپاره؟

دغه قام ولې دهغه دومره دښمن شو ؟ ایا د دوی ترمینځ دځمکې او پیسو اویا دقتل کومه شخړه وه ؟ ایا هغه له دوی څخه دنیا وي شیان غوښتل ؟ ددې ټولو پوښتنو ځواب منفي دی هغه هیڅ هم نه غوښتل او نه یې له چا سره په کوم شي شخړه وه داټوله دښمني یوازې په همدې خبره وه چې هغه ولې خلکو ته دیو الله دبندګۍ، پرهیزګارۍ او نیکو کارونو ښوونه کوي دبت پرستۍ ، شرک او بد عملۍ پرخلاف تبلیغ کوي ، د راهبانو پیشوایي او رهبرۍ ته ولې زیان رسوي ، دسردارانو او مشرانو دسردارۍ د طلسم زنځیرونه ولې شلوي.

دانسانانو ترمینځ دلوړو الي او ټیټوالي توپیر ولې له مینځه وړي ، قبیلوي او نژادي تعصباتو ته ولې جاهلي خویونه وایې . له پخوازمانې راهیسې چې په ټولنه کې کوم نظام مروج (دود) دی ، هغه ولې بدلوي . قام ورته وویل دغه خبرې چې ته کوې داټولې زموږ دولسي او کورنیو روایاتو پرخلاف دي ، ته باید له دغه ډول خبرونه لاس واخلې ، که نه موږ به هم ژوند دربانديې تریخ کړو .

اوس به داپوښتنه پیداشي چې ښه نو دغه سړي دادومره کړاوونه دڅه لپاره وزغمل ؟ قام دي ته چمتو وو چې هغه په خپلې پاچاهي ومني ، دیته اماده وو چې بې شمیره دولت ، سره او سپین دهغه پښو ته انبار کړي خو په دې شرط چې هغه له خپلو تعلیماتو او اصولو نه لاس واخلي خو هغه داټولې اسانتیاوې رد کړې او په مقابل کې یې دخپلو اصولواو تعلیماتو لپاره دډېرو ویشتل ،ظلم او تیری زغمل ومنل آخر داولې ؟ ایا دهغوی په الله پرستی، او نیکو کاری، کې د ده کومه شخصي ګټه وه چې دهغې په وړاندې دې پاچاهي ، دولت او دژوند ټولو هوسااینو ته بې التفاته ؤ ؟ ایا داسې کومه شخصي ګټه او فایده شته چې دهغې لپاره یوسړی پوره درویشت کاله هر ډول سخت روحي ، ذهني او جسمي کړاونه وګالي ؟

ښه فکر وکړئ ! ایا دنیک خوی ، ایثار ، او له بشریت سره دهمدردی، له دې نه لوړه جذبه او مرتبه هم ستاسو په تصور کې راتلی شي ؟ چې یو انسان دې دنورو دښیګړې لپاره پرته له دې څخه چې دذرې هومره شخصي ګټه یې په کې وي دومره کړاونه وزغمي ؟ دهغو خلکو دخیر او ښیګړو لپاره چې هغه زیار او زحمت ایسته هماغو دی په ډېرو ویشتنه ، ښکنځلې یې ورته کولې له کوره یې بې کوره کړ په

غربت کې يې هم هغه په کرار پرې نښوده خو ددې ټولو خبرو سره سره بيا هم هغه دهغو دخير او ښيګړې غوښتنې له کارنه ايسارنه شو .

بيا فکر وکړئ او وګورئ ايا کوم دروغژن او بې ثباته سړی د کومې بې بنياده اوبابيزه خبرې لپاره دومره مصيبتونه ګاللی شي ؟ ايا کوم بې هدفه انسان له خپلو اوتو بوتو سره کولی شي چې يوازې دګومان او قياس له مخې يوه خبره وکړي او پرهغې دومره کلک ودريږي ، چې غرونه ، غرونه مصيبتونه پرې راشي ځمکه پرې تنګه کړی شي دهيواد ټول خلک دهغه پر ضد راپورته شي ستر ستر پوځونه دهغه په وژلو پسې راټول شي ، خودی له خپلې خبرې نه دسرويښته هومره انحراف ته هم تيار نه وي ؟ دغه استقامت عزم او ثبات په خپله ګواهي ورکوي چې په خپل صداقت او ريښتونوالی باندې دهغه پوره ، پوره يقين او باورؤ ، که دهغه په زړه کې دخپل تعليم او اصولو ريښتونوالي په هکله دذرې هومره شک هم موجود وی ، نو هغه هيڅکله هم درويشت کاله په پرله پسې توګه دمصايبو او دردونو پرله پسې توپان ته نشوی ايساريدلی . داخو دهغه انسان دحالت دانقلاب او بدلون يوارخ ؤ دد غې مسئلې دويم اړخ له دې نه هم زيات اريانوونکی دی .

# دڅلويښت كاله ژوند څخه وروسته دابدلون دڅه لپاره؟

ترڅلويښت كلنۍ پورې هغه يو عرب ؤ دنورو عامو عربانو په څير په دغه موده كې دعربو دغه عادي سوداګر هيڅچا هم ديو خطيب او اور ژبي ويندوى (نطاق او مقرر) په توګه نه پيژانده هيچا هم له هغه نه دحكيمانو او پوهانو په څير دحكمت خبرې وانه وريدې هيچا هم هغه په دومره موده كې دالهياتو ، فلسفې ، اخلاقو ، قانون ، سياست او نورو ټولنيزو مسايلو په برخه كې په بحث او مباحثې ونه ليدلو دالله ملايكو ، اسماني كتابونو ، پخوانيو انبياؤ او امتونو ، قيامت او له مرګه وروسته ژوند ،د دوزخ او جنت په هكله هيچا هم دهغه له خولې نه يو لفظ نه ؤ اوريدلى خو داخبره څرګنده ده چې هغه په دغه موده كې هم دپاكواوسپيڅلو اخلاقو او نيک سيرت خاوندؤ ، خو ترڅلويښت كلنۍ پورې دهغه په ژوند كې كومه غير معمولي خبره مينځ ته نه وه راغلې چې دهغې له مخې نه دې خلكو دا توقع كړې واى چې له دغه سړي نه به اوس يو څه جوړ شي دهغه پيژندګلو خلكو تر دغه وخت پورې هغه يوازې ديو خاموش سوله خوښوونكي او نهايت شريف انسان په توګه پيژانده څلويښت كاله وروسته چې يوه ورځ هغه دحراء له غار څخه راووت او نوى پيغام يې له ځان سره راؤړ هغه باالكل بدل شوى ؤ اوس هغه خاموش انسان خلكو ته يوداسې اريانوونكى كلام اوراوه چې په اوريدو يې ټول عرب ګوته په غاښ شول دغه كلام دومره زيات موثر او اغيز من ؤ چې دهغه ډير سخت زړي دښمنان يې هم له اوريدلو څخه ويريدل چې هسې نه په زړه مې اغيزه وكړي دغه كلام د

ومره فصيح او بليغ ؤ چې هغه ګوګو خلې دټولو عربو سترو سترو شاعرانو اديبانو او خطيبانو ته چې په فصاحت او بلاغت کې بې ساري وو بلنه ورکړه چې تاسو ټول په ګډه د دغه کلام په څير سورت جوړ کړئ خو هيچا هم د دغه کلام دمقابلې جراءت ونه کړ دغه ډول بې مثله کلام مخکې له دې څينې عربو هيڅکله هم نه ؤاوريدلی .

## دهغه هراړخيز پيغام

اوس هغه يو ناڅاپه ديو بې مثله حکيم ، داخلاقو او تمدن ديو ستر مصلح ديوځار سياستمدار ،غوره مقنن يواعلی درجه قاضي او بې مثله سويمن جنرال په توګه راڅرګند شو دعربو دسوځنده دښتو او وچو ميرو هغه امي او سيدونکی اوس دپوهې او حکمت هغه خبرې پيل کړې وې چې نه ورڅخه مخکې چاکړې وې او نه وروسته چاوکړی شوې هغه اُمي اوس دالهياتو په ستروا و پيچلو مسايلو کې عالمانه او قاطع خبرې کولې دو لسونو دتاريخ او دهغوی دلوړتيا او زوال پرفلسفه يې خلکو ته ويناوې کولې دپخوانيو مصلحينو په کارونو يې تبصرې کولې او پر موجوده مذاهبو باندې يې تنقيدونه کول دقامونو ترمينځ يې اختلافات او شخړې او ارولې داخلاقو، تهذيب او سپيځلتيا ښوونه به يې کوله هغه دمعاشرت او ورځني ژوند ټولنيزو مسايلو اوله نورو قامونوسره دنړيوالو اړيکو په هکله په قانون جوړونه پيل وکړ داسې غوره او بې ساري قوانين يې جوړ کړل چې ډير ستر ستر پوهان يې دډيرو کلونو تحقيق او څيړنو او تجربوڅخه وروسته په سختۍ سره په حکمتونو پوهيدی شي دنړۍ علم ، حکمت او تجربې چې څومره پرمختګ کوي ددغو بې مثله اصولو او قوانينو حکمتونه نور هم را څرګنديږي .هغه خاموش سوله

خوښونکي او ارام سوداګر چې په ټول ژوند کې يې توره په لاس کې نه وه اخيستې نه يې پوځي تربيه او روزنه ليدلې وه هغه په ټول ژوند کې يوازې يو ځل په يوه جګړه کې دليدونکې په توګه برخه اخيستې وه له هغه نه اوس يوداسې توريالی او زړور سپاهي جوړ شوی ؤ چې په ډيرو سختو او خونړيو جګړو کې يې حتی يوانچ هم دجګړې له ميدان نه په شاتګ ونه کړ داسې ځار او توريالی جنرال ورځينې جوړشو چې د (۹) کالو په موده کې يې ټول عرب فتح کړل له هغه نه اوس يو داسې بې مثله پوځي مشر جوړ شوی ؤ چې دهغه په جنګي اصولو پوځي تنظيم او جنګي روحې سره بې سروسامانه عربو وکړی شول په ډيره لږه موده کې دنړۍ دهغه وخت دوه سترو پوځي قدرتونو ته ماتې ورکړي .

هغه ګوشه ګير ، انزوا پسند اوسکون خوښونکی انسان چې دژوند ترڅلويښت کالو پورې يې چاله سياسي مسايلو سره دذرې هومره دلچسپي هم نه وه ليدلې ، يوناځاپه ديو ستر مصلح او بې ساري مدبر په توګه راڅرګند شو . داسې چې د درويشت کلونو په موده کې يې د دولس سوه زره مربع ميله د دښتو خواره واره جګړه مار سرغړونکي عرب او جاهلي او له تمدن نه لرې قبيلې چې تل به په خپلو کې سره په جګړو اخته وې او ديو بل په وينو به يې لاسونه سره ؤ داوسني عصر له وسايلو لکه اورګاډي تيليفون راډيو تلويزون او چاپ له ماشينونو څخه پرته يوه مذهب يوه تمدن يوه قانون يوه نظام او يوه حکومت ته داسې تابع کړل چې ساری يې دتاريخ په پاڼو کې نه موندل کيږي .

هغه دهغوی اخلاق خويونه اوخيالات بدل کړل دهغوی ناوړتيا او شډل توب يې په لوړه درجه وړتيا او تهذيب سره تغير کړ دهغوی وحشت يې په غوره مدنيت بدکاري اوبداخلاقي يې په اصلاح ، تقوی

او اخلاقي مکارمو تغیر کړه دهغوی بې ځایه غروراو سرکشي یې په انتها درجه دقانون او اوامرو په مقابل کې په اطاعت واړوله هغه دغه له تمدن نه لرې او شنډ قام څخه چې په کلونو کلونو کې یې هم په غیږ کې دیادولو وړ څوک نه ؤروزل شوي داسې قام جوړکړ چې په غیږ کې یې نړۍ والو ته په زرګونه داسې نارینه زامن وروزل چې ټولو نړیوالوته ددین اخلاقو علم او تهذیب ښودلو لپاره په ټوله نړۍ کې خپاره شول . دغه سترکار هغه په ظلم جبر تشدداو مکروفریب سره سرته نه دی رسولی بلکې په غوره اخلاقو زړه وړونکې شرافت او بې ساري ښوونې او روزنې سره یې سرته رسولی دی . هغه په خپلو غوره اخلاقو سره دښمنان دوستان کړل په رحم او شفقت یې دخلکو زړونه راخپل کړل په عدل او انصاف یې حکومت وکړ له حق او صداقت څخه یې دسرویښته هومره انحراف هم ونه کړ په جګړه کې یې هم له چاسره بدعهدي او غداري نه وه کړې په خپلو سختو دښمنانو یې هم ظلم ونه کړ . هغه څوک چې د ده وینو ته تږي ناست ؤ ، هغه چاچې په نیزو او ډبرو ویشتلی ؤ ، له وطن نه یې ایستلی ؤ ، دده پرخلاف یې ټول عرب راپارولي ؤ ان تردې هغه چاچې دکینې او وحشت له امله دهغه دتره زړه را ایستلی ؤ هغه یې هم دسوبې په وخت کې وبخښل

دخپلو شخصي مسایلو لپاره یې هیڅکله هم له چانه انتقام وانه خیست له دې ټولو خبرو سره سره هغه دومره ضبط نفس درلوده چې کله دټولو عربو واکمن شو نو بیاهم هماغه ډول فقیر ؤ لکه څنګه چې مخکې ؤدوښو په څېره کې به اوسیده په بوریا به ویده کیده زیږه او شډل کالي به یې اغوستل دخوارانو او بې وزلو په څیر خوراک به یې کاؤ لوږې به یې تیرولې په شپو شپو به یې تر سهاره د الله رج عبادت او ستاینه کوله دبې وزلو او غم خپلو خدمت به یې کاؤ دبو

مزدور په توګه يې له کار کولو نه هم مخ نه دی اړولی دژوند تر پايه پورې هم په هغه کې شاهانه تکبر او اميرانه خويونه پيدانه شول ديوعادي سړي په توګه به يې له خلکو سره ليده کاته کول دهغوی په غم او مصيبت کې به شريک ؤ له عوامو خلکو سره به يې داسې ناسته ولاړه وه چې نااشنا سړي به ځان ته دانشوی څرګندولی چې په دوی کې دقام مشر او دهيواد واکمن څوک دی ؟ له هغو مره ستر شخصيت سره سره به يې بياهم دډيرعادي او ټيټې پوړی خاوند سره داسې سلوک کاؤ تابه ويل چې دی هم دهماغه په څير ډير عادي انسان دی دټول ژوند په منډو ترړواو غورځو پرځوکې هغه دځان لپاره هيڅ هم پرې نښودل خپل هرڅه يې اسلامي امت ته وقف کړل پرخپلو پيروانو باندې يې دځان او ياخپلې اولادې هيڅ ډول حقوق هم لازم نه کړل ان تردې چې خپل اولاد يې دزکوة داخيستلو له حق نه هم بې برخې کړ يوازې له همدې ويرې څخه چې هسې نه د ده پيروان دده له امله ټول زکات د ده اولادې ته ورکړي او نور خلک ترينه بې برخې پاتې شي .

## پربشريت باندې يې سترې اغيزې

ددغه ستر انسان دکمال او ښيګړو فهرست لاپای ته نه دی رسيدلی دهغه دپوره قدر وقيمت دمعلومولو لپاره لازمه ده چې تاسو په مجموعي توګه دنړۍ تاريخ يوځل په غوروګورئ . تاسو ته به څرګنده شي چې دعربو دبې پايه سوزؤنکو دښتو دغه اُمي اوسيدونکی چې څوارلس سوه کاله مخکې په تورتم کې زيږيدلی ؤ په حقيقت کې داوسني نوي عصربانې او دټولې نړۍ مشراو لارښود دی هغه نه يوازې دهغه چالارښود او رهبر دی چې په رهبرۍ يې منلی دی

بلکې دهغه چالاربنوداو رهبر هم دی چې نه یې دی منلی دغو خوارانو تراوسه دامسئله احساس کړې هم نه ده چې دهغه چاپرخلاف چې دوی لګیادي اوتې بوتې وایې دهغه لاربنوونې په څه ډول د دوی په خیالا تودژوند په اصولو دچال چلند په قوانینو اود دوی دنوي عصر په روح کې ورننوتې دي همدغه انسان ؤ چې دنړی د تصوراتو دقافلې مخه یې دوهم پرستی خیال پرستی ، عجایب پرستی ، او رهبانیت له بې لارې کونکې لارې څخه راوګرځوله او دعقل حقیقت خوښونې او متقیانه معقول ژوند په پراخه لاریې روانه کړله .

همدغه انسان دمحسوسو معجزو غوښتونکو انسانانو په دنیا کې دعقلي معجزوددرک کولو او دصداقت دمعیار په توګه یې دهغو دمنلو عادت پیداکړ هغه په خرق عادت کې دالله (ج) دالوهیت اثارو دلټوونکوسترګې پرانستلې او هغوی یې دفطرت په اثارو (NaturPhenomena) کې د الله (ج) دنښو نښانو له لیدلوسره اشنا کړل . همدغه انسان په هواکې دخیالي اسونو زغلوونکي دقیاس ارایې (Speculation) او ګومان له ورانې لارې نه راوګرزول ، دتعقل تفکر،مشاهدې ، تحقیق او څیړنو پرلاریې روان کړل هماغه ستر انسان دعقل حس او وجدان ، غوره او امتیازي حدود انسانانو ته وروښودل ، په مادیت او روحانیت کې یې مناسبت او هماهنګي پیداکړله د دین اړیکې یې له علم او عمل او دعلم او عمل اړیکې یې له دین سره پیداکړلې . دمذهب په قوت یې په نړی کې (Scientific Spert) علمی روحیه)اوله ساینټیفیک سپرټ نه یې صحیح مذهبیت پیداکړ هغه دشرک او بت پرستی بنیادونه ونړول او دعلم په ځواک یې دتوحید دعقیدې بنسټونه دومره پاخه کړل چې دمشرکانو او بت پرستانو مذهبونه هم دې ته اړشول ، چې دوحدانیت رنګ غوره کړي

هغه داخلاقو او روحانیت بنیادي تصورات بدل کړل . هغو خلکو چې دنفس وژنه او ددنیا ترک کول یې عیناً اخلاق ګڼل او روحاني پرمختګ او نجات یې دنفس او جسم دحقوقو له ادا کولو نه وروسته ناممکن ګاڼه ، هغوی ته همدغه انسان دتمدن، ټولنې او دنیا وي اعمالو ترڅنګ داخلاقو دفضیلت روحاني لوړتیا او دنجات لاره وروښودله نوپه دي توګه هماغه مبارک ؤ چې انسان یې له خپل حقیقي قدرو قیمت نه خبر کړ هغو خلکو چې د الوهیت او ابن الله نه پرته یې ځوک درهبرۍ او لارښوونې وړنه ګڼل ، هغو ته همده وویل چې انسان او همداستاسو په څیرعادي انسان داسماني پادشاهۍ نماینده او دځمکې او اسمانونو دڅیښتن خلیفه او نایب کیدی شي . هغو خلکو به چې له هر ځواکمن او دقدرت خاوند انسان نه اله جوړاوه هغوی یې په دې پوه کړل چې انسان له انسان نه پرته نور هیڅ شی نه دی نه چاله ځان سره دزوکړې له وخت نه دتقدس حکمرانۍ او باداري حق راوړی دی او نه پرچاباندې دزوکړې له وخت نه دناپاکۍ ، محکومیت او مرئیتوب داغ لګیدلی دی .

دهغه ستر انسان همدغه ډول ښوونه او روزنه وه چې په نړۍ کې یې دانساني یو والي وحدت مساوات شورائیت او ازادۍ غوښتنې افکار پیداکړل دافکارواو تصوراتوله دنیانه چې لږ ورمخکې شئ نو ستاسو به ددغه اُمي قاېد ډیر عملي نتایج د دنیا په قوانینو معاملاتو او ژوند دودکې دومره زیات په سترګو شي چې شمیرل به یې درته ګران شي .

داخلاقو ،تهذیب ،شایستګۍ ،سپیڅلتیااوپاکۍ چې څومره اصول دي اوپه نړۍ کې خپاره شوي دي ټول د ده دتعلیماتو او لارښوونو نه سرچینه نیولې ده دټولنیز ژوند کوم قوانین چې هغه جوړ کړي دي

دټولې نړۍ پوهانو له هغې نه ګټۀ اخیستې ده او تراوسه یې اخلي دژوندانه کوم أصول چې هغه بیان کړي دي ، له هغې نه چې په نړۍ کې ځومره تحریکونه پیداشوي دي او تراوسه پیدا کیږي . دحکومت کوم دوداو لار چې هغه غوره کړې وه ،دهغې له امله ددنیا په سیاسي نظریاتو او افکارو کې چې ځومره انقلابونه مینځ ته راغلي دي او تراوسه رامینځ ته کیږي دعدل او قانون هغه اصول چې هغه وضع کړي ؤ دنړۍ پرعدلي ادارو او قوانینوېې ځومره اغیزه کړي ده او تراوسه پورې دغه ډول اغیزې په خاموشۍ سره جاري دي دجنګ او سولې او نړیوالو اړیکو تهذیب او اصول چې کوم انسان عملاً په دنیا کې مینځ ته راوستل ،هغه په حقیقت کې دعربو همدغه اُمي قاید ؤکه نه نو نړیوال مخکې له دې نه ناخبره ؤ چې دجنګ او جګړې به هم کوم تهذیب وي او مختلفو قامونوکې به هم دمشترک انسانیت په نامه دمعاملاتو سرته رسیدل ممکن وي .

دانساني تاریخ په ائینه کې ددغه حیرانونکي انسان لوړ شخصیت ترټولو زیات ځرګند او روښانه ښکاري ، دبشري تاریخ له پیله تراوسه پورې چې کوم انسانان نړیوالو داتلانو (Heroes) په کتار کې شمیرلي دي که ددغه انسان مقابلې ته یې دپرتلې لپاره راولئ نو دهغه په وړاندې به ډیر ټیټ ښکاره شي ددنیا په سترو شخصیتونو او اتلانو کې به یوهم داسې پیدانکړئ چې دهغې دکمال او لیاقت کارنامو دې دانسانانو دژوند له یوې یادوه برخو نه زیات په نوروځیزونو اغیزه کړې وي .

یو به دنظراو فکر بادشاه ؤخو علمي ځواک به یې نه درلود ځوک به په عمل کې ډیر پیاوړی ؤ خو دپوهې سر به یې ګنجی ؤ دځینو وړتیا او کمال به دسیاسي تدابیرو ترحده محدودؤ ځوک به یوازې دپوځي ا

صولو پوهاند ؤدچا نظر بـه دټولنيز ژوندد يوه اړخ په هكله دومره ژور ؤ چې بـل اړخ به يې له نظره لويدلى ؤ ځينو په اخلاقو او روحانيت ځان بوخت كړى ؤ ژوند او سياست يې هيركړى ؤ ځينو ژوند اوسياست تـه زياتـه پاملرنه كړې وه اخلاق اوروحانـيت يې لـه نظره غور زولي ؤلنډه داچې دتاريخ دغـه اتلان هريو دژوند ديواړخ او يو مخ اتلان دي خو يـوازې همدغـه ستر شخصـيت ؤ چې دغه ټول كمالونه يې په وجود كې راټـول دي هغـه پـه خـپله پـوه اوحكـيم هـم دى او پـه خـپله پـه ژونـد كـې دخپلې پوهې نافذونكى هم دى هغه سياسي مدبر هم دى پوځي مشر هـم دى دقانـون واضـع هـم دى داخلاقـو ښوونكى هـم دى ، مذهبي او روحاني لارښود هـم دى دهغـه نظردلمر پـه څير دانسـاني ژوند پـه ټولو برخوخپوردى او پـه دې هكلـه دډيرو كوچنيو مسئلو پـه هكلـه هـم پـه تفصيل سره خبرې كوي دخوراك او څښاك دځان دنظافت او پاكوالي ، دلاروچاروادابوخخه نيولې د انسـانانو پـه مينـځ كـې ترنـړيوالو اړيكـو پـورې يـې دهـر شـي احكـام او لارښـوونې بيـان كـړي دي دخپلو نظرياتو پراساس يې يو مستقل اوځانګړى تهذيب (Civilization) مينځ تـه راؤسـت دژونـد دګـڼو او مخـتلفو اړخـونو ترمينځ يـې دومـره دقيق تـوازن او برابروالى (Equilibrium) ميـنځ تـه راوستلى دى چې دافـراط او تفـريط هـيڅ اثـر پـه كـې نـه لـيدل كيـږي . ايـا ستاسـو پـه نظرداسې كوم بل جامع انسان شته ؟

# ستر انقلابي شخصیت

دنړۍ په سترو تاریخي شخصیتونو کې یو هم داسې نشته ، چې په ستروالي کې یې لړوزیات دخپل ماحول اغیزه نه وي . خو ددغه ستر انسان شخصیت په دغه برخه کې له ټولو نه توپیر لري دهغه په جوړولو کې دهغه دماحول اغیزه بالکل نه ښکاري او داهم څوک نه شي ثابتولی چې دتاریخي شرایطو له امله په هغه وخت کې ددغه ډول یو انسان پیداکیدل ضروري ؤ له زیات غور او فکر نه وروسته که تاسو په دې هکله څه ویلی شي نو هغه به داوي چې ددغه وخت تاریخي عواملو دعربو په مینځ کې دیو داسې قاید د مینځ ته راتلو غوښتنه کوله چې قبایلي اختلافات له مینځه یوسي او له عربو نه یو متحد قام جوړ کړي نور هیوادونه فتح کړي او دعربو دسوکاله ژوند وسایل برابر کړي یعنې یونیشنلسټ (Nationalist) مشر چې ددغه عصر دعربو ټول خواص به په کې موجود وی په ظلم بې رحمی وینې تویولو دروغ ویلو لنډه داچې داسې یو مشر به وی چې په هره ممکنه وسیله به یې خپل قام خوښ او راضي ساته یو سلطنت به یې جوړ کړی وی او خپلو اخلاقو ته به یې پریښې وی له دې نه پرته دتاریخي شرایطو او عواملو له مخې دعربي نړۍ دتاریخي شرایطو بله هیڅ ډول تقاضا او غوښتنه تاسو نه شي ثابتولی .

دهیګل دتاریخ دفلسفې اویا دمارکس دتاریخ دمادي تعبیر له نظره چې تاسو هر څومره غور او څیړنه وکړئ نو له دې نه زیات څه نه شئ ویلی چې په هغه وخت او هغه ماحول کې باید دیو سلطنت اویو قام جوړونکی پیداشوی وی او یا پیداکیدلی شوخو دهیګل او یا مارکس فلسفه به ددې پیښې توجیه څنګه وکړی شي چې هغه وخت به

په هغه ماحول کې یوداسې انسان پیداشي چې داخلاقو ستر ښوونکی دانسانانو دسوکاله اوهوسا ژوند جوړونکی دنفسونو د تزکیې لارښوداودجاهلیت داوهامو او خرافاتو د بتانو ماتونکی دې وي له دغومره پراخه او بې ساري نظر سره چې دقام ، توکم (نسل) او سیمې بریدونه یې تربښو لاندې کړل او ټول بشریت ته یې له دغو زولنو نه دازادۍ زیری ورکړ.

هغه دخپل نظام دبنسټ ډبره یوازې دخپل قام او سیمې دخلکو دسوکالۍ او آرامتیا لپاره نه ده ایښې بلکې دټول بشریت لپاره یې پرې داخلاقي،روحاني،مدني اوسیاسي نظام ماڼۍ ودانه کړه دټولنیز ژوند مسایل،معاملې سیاست او نړیوالو اړیکو دسمون لپاره یې په عالم خیال کې نه بلکې په عالم واقع کې داخلاقي بنیادونو درامینځ ته کولو کارسرته ورساؤ ، دروحانیت او مادیت یوداسې متعدل او متوازن معیار یې خلکو ته وښوده چې نن هم هماغسې دحکمت او پوهې شهکار دی ، لکه څنګه چې هغه وخت ؤ . داسې انسان ته تاسو دعربو دجاهلیت دماحول تخلیق ویلی شي ؟

یوازې داخبره نه ده چې هغه انسان دخپل ماحول تخلیق نه ښکاري ، بلکې که موږ په غورسره دهغه افکارو نظریاتو او کارنامو ته ځیر شو نو څرګنده به شي چې هغه د زمان او مکان له قیودونه ازاد دی . دهغه فکراونظر دوخت او حالاتو دیوالونه ونړول . دظلمت او جهالت په سلګونواوزرګونو پردې یې څیرې کړې او پرمخکې ولاړ . هغه په هروخت او زمان او ماحول کې انسان او دهغه دژوند لپاره داسې اخلاقي او عملي لارښوونې وکړې چې دهروخت له حالاتو سره مناسبت اوهماهنګي لري .

هغه دهغو خلکو او اتلانو له ډلې څخه نه دی چې تاریخ زاږه کړي دي او مونږ یې داسې تعریف کړو چې هغه دخپل وخت ښه لاربنود ؤ . هغه له ټولو نه جلا ، له ټولو نه څار او غوره دی . هغه دبشریت داسې لاربنود دی چې له تاریخ سره څنګ په څنګ حرکت کوي ، دتاریخ په هر پړاؤ کې هماغه ډول نوی (Modern) ښکاري لکه څنګه چې له دې نه د مخکې پړاؤ لپاره ؤ . هغو خلکو ته چې تاسو په ډیره فیاضۍ ( دتاریخ جوړوونکې (MakersofHistory) لقب ورکوئ هغوی په حقیقت کې (Creaturs of History) تاریخ جوړ کړي دي په حقیقت کې دتاریخ جوړونکی په ټول بشري تاریخ کې همدا یو انسان دی

دنړۍ هر څومره مشر انو چې په تاریخ کې څومره انقلابونه مینځ ته راوستي دي که دهغوی دژوند او ماحول دحالاتو څیړنه په غور وکورئ نو تاسو ته به په خپله څرګنده شي چې په داسې هر وخت کې له پیله دانقلاب عوامل هم په خپله برابر بدل او هماغه اسبابو او عواملو به په خپله ددغه انقلاب ډول اولاره هم ټاکله چې دمینځه راوستلو لپاره به یې علت شوی ؤ . په دغه ډول انقلابونو کې انقلابي لیډرانو او مشرانو یوازې همدومره کړي دي چې دحالاتو غوښتنې یې له قوت نه فعل ته راوستي دي اوددې لپاره یې دهغه لوبغاړي رول لوبولی دی چې ستیج اورول ورته لامخکې ترمخکې ټاکل شوي وي خو دتاریخ جوړونکو یا انقلاب راوستونکو په ډله کې داهغه یوازینی انسان دی چې په هغه ځای کې چې د انقلاب اسباب او عوامل موجود نه ؤ هلته یې خپله اسباب او عوامل پیدا کړل په هغه ځای کې چې دانقلاب مواد موجود نه ؤ هلته یې دانقلاب روحیه او عملي استعداد پیدا کړل هلته یې دخپلې خوښې خلک وروزل دخپل بېساري شخصیت ځانګړتیاوې او اغیزې یې په زرګونو انسانانو کې په روزنې سره پیدا کړې د هغوی

ځیني یې هغه څه جوړ کړل ، لکه څنګه یې چې خپله غوښتل دهغې د
ارادي ځواک او قدرت په خپله دانقلاب سروسامان برابر کړ . په خپله
یې دهغه ځرنګوالی او نوعیت وټاکه دخپل هوډ او ارادې په ځواک
سره یې دحالاتو او شرایطو دبیرې مخه هغه لور ته وګرځوله چې ده
غوښتله دغه ډول تاریخ جوړونکی او دومره په لوړ او عالي معیار
انقلابي تاسو بل چیرته لیدلی دی؟

## وروستی شهادت

راځئ اوس د دې پوښتنې ځواب ته ځېرشئ چې په څوارلس سوه
کاله مخکې تیاره دنیا کې دعربو په څیر تپې تیارې سیمې په یو ګو
ټ کې دیو پوند ه . سوداګر او دصحرا په اُمي او سیدونکي کې دیو
ناځاپه دومره علم . دومره رڼا ، دومره ځواک ، دومره کمالونه ، دومره
بې ساري روزل شوي قوتونه څنګه پیداکیږي او په کومه ذریعه ؟ تاسو
به ووایې چې داټول دهغه د زړه او عالي دماغ نتیجه وه خو زه وایم چې
که داد هغه دزړه او عالي دماغ محصول وی نو هغه ته پکارؤ چې
دالوهیت دعوه یې کړې وی ، که هغه داسې دعوی کړې وی ، نو هغې
دنیا چې (رام) یې خپل اله وګاڼه د (کرشن) دالوهیت په منلو کې یې
ډیل ونه کړ ، هغو چې (بودا) یې په خپله خپل معبود کړ مسیح یې په
خپله خوښه دابن الله په توګه ومانه هغو چې اور اوبه او ان تر دې چې
دهوا پرستش او ستاینه یې هم وکړه نو هغوی به هیڅکله ددغه ډول
بې ساري او باکماله انسان دالوهیت په منلو کې تامل او انکار نه وی
کړی .خو وګورئ چې هغه خپله څه وایي ، هغه دخپل یوه کمال
کریډیټ او ویاړهم دخپل ځان نه ګڼي وایې چې زه یوانسان یم ستاسو
په څیر انسان زما سره هیڅ هم زمانه دي هر څه دالله دي او دهماغه له

خواځينې دي دغه کلام چې دمثل جوړول يې دبني نوع انسان له وسې نه وتلې خبره ده ، زما ددماغ دقابليت نتيجه نه ده بلکې تکي په تکي د الله (ج) له خوانه ماته رانازل شوى دى او دستاينو حق يې هم دالله لپاره ښايي .

دغه سترې کارنامې چې مابنودلي دي دغه قوانين چې ماوضع کړي دي دغه اصول چې ما دربنودلي دي له دغو شيانو نه يوهم ماد ځان څخه نه دي جوړ کړي ما هيڅ هم تاسوته دخپل شخصي لياقت او پوهې له مخې نه دي وړاندې کړي زه په هرڅه کې الهي لاربنوونې ته اړيم دهغه لوړذات له خوانه چې هره اشاره او فرمان صادرشي زه په هماغه لاره ځم او هماغه څه وايم

وګورئ داڅومره اريانونکې صداقت دى څومره امانت داري او سپيڅلتيا ده دروغژن انسان خو دځان دستر ښودلو لپاره دنورو هغه ډول کمالونه هم په ځان پورې منسوبوي چې داصلي ماخذ موندنه يې هم په اسانۍ سره لاسته راتلى شي خو دنورو سرچپه دغه انسان هغه کمال او هنر هم په ځان پورې نه منسوبوي چې که دخپل ځان يې ګڼلې هم وى نو چايې دروغ نشوى ثابتولى . ځکه چې دهغه اصلي ماخذ ته درسيدو بله لار نه شته دريښتونوالي او صداقت لپاره له دي نه زيات ښکاره او څرګند دليل بل څه شى کيدى شي ؟له هغه انسان نه به زيات ريښتونى او صادق څوک وي چې له يوې زښتې زياتې مخفي لارې ځينې دومره بې ساري کمالونه حاصل کړي او بې له کوم تکلف ځينې دخپل اصلي ماخذ حواله هم ورکړي اوس وواياست چې موږ په څه دليل دهغه دصداقت تصديق ونه کړو ؟

# له مرګه وروسته ژوند

له مرګه وروسته ژوند شته او که نه ؟ که وي نو څه ډول دی ؟ دغه پوښتنې په حقیقت کې زموږ د علم او پوهې له معیار نه لوړې دي له موږ سره هغه سترګې نشته چې دمرګ له سرحد نه هغه بله خوا وګورو او په دې پوه شو چې هلته څه شی شته او څه شی نشته له موږ سره هغه غوږونه هم نشته چې دهغې بلې خوا کوم آواز پرې واورو . له موږ سره داسې کومه وسیله هم نشته چې له څیړنې او تحقیق نه وروسته په هغې سره دا څرګنده کړو چې هلته څه شی شته که نه .

نو له دې امله تر کومې اندازې چې په ساینس پورې اړه لري نو ددغې پوښتنې ځواب یې له وسې پوره نه دی هغه څوک چې دساینس نوم اخلي او بیا وایي چې له مرګه وروسته بل ژوند نشته بالکل یوه غیر علمي خبره کوي ځکه د ساینس له مخې موږنه داویلی شو چې له مرګه وروسته ژوند شته او نه داویلی شو چې له مرګه وروسته ژوند نشته . ترڅو پورې چې له موږ سره دعلم او پوهې کومه یقیني او باوري ذریعه نه وي چې دامسئله پرې څرګنده کړو ترهغې پورې لږ ترلږه سم او علمي میتود دغه دی چې موږ له دغې (له مرګه وروسته ژوند ) مسئلې څخه نه انکار وکړو او نه یې تائید کړو خو ایا موږ په عملي ژوند کې هم دغه علمي میتود منلی شو ؟ بنایې نه بلکې په یقین سره ویلی شو چې نه دعقل له مخې داممکنه ده چې که دیو شي دڅرنګوالي دمعلومولو لپاره له موږ سره وسایل او ذرایع نه وي نو موږ کولی شو چې په دې برخه کې له نفې اوا ثبات دواړو نه ځان وژغورو ، خو که دهغه شي اړیکې زموږ له عملي ژوند سره وي ، نو له موږ سره پرته له دې نه بله چاره نشته چې یاترې

منکر شو او یا یې ومنوځکه وروسته له هغې موږ کولی شو چې دخپل ژوند لار وټاکو

دمثال په توګه یو سړی دی چې تاسو یې نه پیژنئ. که له دغه سړي سره ستاسو څه معامله او دراکړې ورکړې مسئله نه وي نو ستاسو لپاره داممکنه ده چې دهغه دصداقت او ایمانداري، یاخیانت او بې ایمانۍ په هکله هیڅ پریکړه ونه کړئ، خو که چیرې داسې پیښه شي چې تاسو له هغه سره کومه معامله وکړئ نو تاسو مجبور یاست چې هغه یاصادق او ایماندار وګڼئ او معامله ورسره وکړئ او یا یې بې ایمانه وګڼئ اوځان تري وساتئ.

تاسو په خپل ذهن کې داخیال کولی شې چې که دهغه ایمانداري او بې ایمانۍ موږ ته څرګنده نه وي نو تر هغې به موږ په شک او تردید ورسره معامله وکړو خو که چیرې تاسو دهغه په ایمانداري شک کوئ او بیا هم کومه معامله ورسره وکړئ نوددغې معاملې صورتحال عیناً هماغه دی چې دهغه له ایماندارۍ نه مود انکار په صورت کې هم کولی شوی ، نو له دې امله په حقیقت کې د انکار او اقرار ترمېنځ دشک او تردید حالت یوازې په ذهن پورې مربوط وي دعملي ژوند مانۍ هیڅکله هم دشک پربنسټ نه ودانیږي ددې مسئلې لپاره پرته له انکار یا اقرار نه بله چاره نشته .

## دحیات بعد الموت عقیدې اهمیت

د لږ غور او فکر څخه وروسته تاسو په دې پوهیدلی شئ چې دله مرګه وروسته ژوند پوښتنه یوازې یوه فلسفي پوښتنه نه ده بلکې زموږ له عملي ژوند سره ژورې اړیکې لري په حقیقت کې زموږ داخلاقي چال چلند ټول مسایل په همدغې پوښتنې پورې اړه لري که چیرې زما داخیال وی چې ژوند یوازې همدغه دنیوي ژوند دی له دې نه وروسته کوم بل ژوند نشته نو زما اخلاقي روش به یوډول وی او که چیرې زما داخیال وی چې له دې ژوند نه وروسته بل ژوند هم شته دی

چې هلته بايد زه دموجوده ژوند دښو او بدو حساب ورکړم او هلته به زما نيک يا بدانجامداوسني ژوند په اعمالو پورې مربوط وي نو يقيناً چې زما اخلاقي کړندود (طرزالعمل) به بالکل يو بل ډول ويددې مثال داسې وګڼئ چې يو سړی په دې پوهيږي چې د ده سفر له دغه ځای نه ترکراچۍ پورې دی او کراچۍ ته له رسيدو سره سم نه يوازې داچې دتل لپاره به دده سفر پای ته ورسيږي ،بلکې هلته له رسيدو نه وروسته دی دپوليس محکمې او هرهغه ځواک او قدرت له تسلط نه ازاد دی چې له ده نه کوم ډول پوښتنه د ده داعمالو په هکله کولی شي ددې برعکس دويم سړی داسې فکر کوي چې له دې ځايه خوتر کراچۍ پورې د ده سفر يوازې يو منزل دی له دې نه وروسته دی يو بل داسې بهرني هيواد ته ورځي چې دهغې ځای واکمن هم هماغه سړی دی چې دپاکستان واکمن هم دی او دهغه په دفتر کې زمادهغو ټولو وړوغټو خبرو يادداشت په تفصيل سره موجود دی چې مادپاکستان په دغه برخه کې سرته رسولي دي هلته به زما دياداشت په هکله له بشپړ غوراو څېړنې څخه وروسته داپريکړه کيږي چې زه دخپلو اعمالو له مخې دکومې درجې وړ يم اوس نو تاسو په اسانۍ سره دامعلومولی شئ چې ددغو دواړو انسانانو په کړندود کې به له يو بل سره څومره توپير موجود وي لومړی سړی به له دې ځای نه ترکراچۍ پورې دسفرتياری وکړي ددويم سړي امادګي به له کراچۍ نه وروسته داوږدو منزلونو لپاره هم وي لومړی سړی به دافکر کوي چې که ګټه او تاوان هرڅه وي نو دکراچۍ تررسيدو پورې دی وړاندې نور هيڅ نشته خو د دويم سړي فکر به دخپلو اعمالو هغو نتايجو ته متوجه وي چې په بل بهرني هيواد کې راڅرګنديږي څرګنده خبره ده چې ددغو دواړو اشخاصو دطرزالعمل دغه توپير دهغوی په هغه اندود(طرزفکر)

پورې اړه لري چې دخپل سفر دنوعیت او څرنګوالي په هکله یې لري په همدې توګه زموږ په اخلاقي ژوند کې هم هغه ګروهه (عقیده) پریکنده (قاطع) اغیزه لري ، چې موږ یې دله مرګه وروسته ژوند په هکله لرو . دعمل په میدان کې چې موږ هرقدم اوچتوؤ دهغه دلورې او څرنګوالي تاکل به په دې پورې اړوند (مربوط) وي چې ایا موږ همدغه ژوند لومړني او وروستني ژوند ګڼو ، که دبل ژوند او دخپل عمل وروستني نتایج مو هم په نظرکې نیولي دي .

په لومړي صورت کې به زموږ قدم په یوه لوري او یوه کیفیت پورته کیږي او په دویم صورت کې به یې لوری او څرنګوالی بالکل مختلف وي له دې ځینې داخرګنده شوه چې دله مرګه وورسته ژوند پوښتنه محضې یوه عقلي او فلسفي پوښتنه نه ده بلکې دعملي ژوند پوښتنه ده څرنګه چې داخبره ډېره مهمه ده نو زموږ لپاره پدې مسئله کې دشک اوتردید دریغ غوره کول ښه نه ایسي ،ځکه دشک او تردید پر اساس چې کوم ډول چلند په خپل ژوند کې غوره کولی شو هغه به خامخا د انکار د چلند په څېروي نو له دې امله موږ په هرحال کې د دې خبرې په ټاکلو مجبور یو چې ایا له مرګه وروسته ژوند شته که نه . که په دې برخه کې ساینس له موږ سره مرسته نشي کولی نو موږ مجبور یو چې له عقلي استدلال نه مرسته وغواړو .

## عقلي استدلال

ښه نو دعقلي استدلال لپاره له موږ سره کوم مواد شته ؟ دموادو په سلسله کې خو زموږ په وړاندې یو پخپله انسان دی او دویم دکایناتو نظام موږ انسان له ټولو خصوصیاتو سره دکایناتو په نظام کې دننه مطالعه کوؤ اوګورو چې ایا په دغه نظام کې دهغه ټولې

اړتیاوي پوره کیدی شي او که څه نیمګړتیاوي پاتې کیږي چې دهغو د پوره کولو لپاره کوم بل ډول نظام ته هم اړ دی .

یو خوانسان جسم لري چې د ډیرو معدني موادو لکه مالګه ، اوبه او ګازونو نه جوړ شوی دی دده په وړاندې په کاینـاتو کې هم خاوره تیږې اوسپنه ، سره او سپین زر ، مالګه ګازونه ، سیند ، اوهماغه ډول نور شیان موجود دي ددغو شیانو دکار کولو او له یو بل سره داړیکو لپاره چې څومره اصول او قوانینو ته اړتیا ده هغه ټول په کایناتو کې په خپل کار لګیادي کاینات لکه څنګه چې په بهرنی فضاکې غرونو سیندونواو هواته دخپلې برخې دکار کولو وخت ورکوي په همدغه توګه انساني جسم ته هم د دغو اصولو او قوانینو پر اساس دکار کولو زمینه برابره ده انسان یوداسې موجود دی چې دخپل چاپیریال له شیانو نه داړتیا وړ غذالاسته راوړي او وده (نمو) پرې کوي په همدې توګه ونې نیالګي اوواښه هم په کایناتو کې موجود دي اوهماغه قوانین چې د ودې او نمو په هکله په نورو وده کونکو اجسامو حکم فرمادي پر دوی هم دي انسان یوژوندی موجود دی چې په خپله اراده حرکت کوي خپل خوراکي مواد په خپله له شاوخوانه راټولوي دخپل نفس ساتنه پخپله کوي دخپلې بقا لپاره خپله تدابیرغوره کوي په کاینـاتوکې په همدې توګه نورموجودات هم شته په وچه اوبواو هواکې بې شمیره حیوانات ژوند کوي اوهغه قوانین دلته هم ټول په دقت سره حکمفرمادي چې ددغوژوندیوموجوداتوداعمالوپه پراخه دایره دحاوې کیدو لپاره کافي دي پردې ټولوسربیره انسان یو بل ډول وجود هم لري ، چې هغه ته مونږ اخلاقي وجود وایو په دغه وجود کې دنیکۍ او بدۍ دکولو شعور موجود دی دښو اوبدو تمیز په کې موجود دی دنیکۍ او بدۍ

کولوخواک په کې موجود دی دهغه فطرت داغوښتنه کوی چې له نیکی نه ښه او له بدی نه ناوړه نتیجه مینځ ته راځي هغه دظلم او انصاف، ریښتیااو دروغو ، حق او ناحق ، ظلم او بې رحمی احسان او احسان فراموشی ،فیاضی او بخل ، امانت او خیانت او داسې نورو مختلفو اخلاقي صفاتو ترمینځ توپیر کولی شي ، دغه صفات عملاً دهغه په ژوند کې موجود دي دغه معیارونه او ارزښتونه یوازې خیالي ارزښتونه نه دي ځکه دبشري تمدن په نظم اوجوړښت کې یې عملاً اغیزې موجودې دي

نو له دې امله انسان چې دکوم فطرت پر اساس خلق شوی دی هماغه فطرت یې په شدت سره داغوښتنه کوي چې لکه څرنګه چې دهغه دافعالو طبیعي نتیجې راڅرګندیږي په هماغه توګه یې باید اخلاقي نتایج هم راڅرګند شي تاسو دکاینا تو نظام ته ځیر شئ چې ایا په دغه نظام کې دانساني افعالو اخلاقي نتیجې په بشپړه توګه را څرګندیدی شي ؟

زه تاسو ته ډاډ درکوم چې دلته داخبره امکان نلري . داځکه چې دلته لږ ترلږه زموږ دپوهې او معلوماتو له مخې نور کوم موجودات نشته چې اخلاقي موجودیت ولري .دکایناتو ټول نظام دطبیعي قوانینو پر اساس چلیږي داخلاقي قوانینواغیزې په یو ځای کې هم نه ښکاري . دلته روپی هم وزن لري او هم قیمت خو ریښتینوالی او صداقت نه وزن لري اونه قیمت . دلته د (ام) له زړي نه تل ام راپیداکیږي ، خو په حق ویونکي باندې کله دګلانو باران وي او کله لا څه چې بلکې زیاتره پرې دڅپلیو او بوټونو باران وي . دلته دمادي عناصرو لپاره ټاکل شوي قوانین موجود دي ، چې دهغې پر اساس تل ثابت او ټاکلي نتایج مینځ ته راځي ، خو داخلاقي عناصرو لپاره کوم

تاكلى قانون نشته چې دهغې لـه كولو نه وروسته تل معينې نتيجې راڅرګندې شي دطبيعي قوانينو دفرمانروايي له امله اخلاقي نتايج كله بالكل مينځ تـه نه راځي او كله چې مينځ تـه راشي نو يوازې تر دومره اندازې پورې وي چې طبيعي قوانين اجازه وركړي ډيرځله داسې هم كيږي چې اخلاق لـه فعل نه ديوې خاصې نتيجې دمينځ ته راتلو غوښتنه كوي ، خو دطبيعي قوانينو دمداخلې له امله يې نتيجه بالكل سرچپه راؤزي . انسان پـه خپل مدني او سياسي نظام سره ددې مسئلې پـه برخه كې تريوې اندازې پورې هڅه كړيده چې دانساني اعمالو اخلاقي نتيجې ديو ټاكل شوي قانون پر اساس مينځ ته راشي خود ده هڅه نه يوازې داچې په ډيره كمه پيمانه ده بلكې ډيره نيمګړې هم ده لـه يوې خوا نـه طبيعي قوانين هم نيمګړي او محدود دي او له بلې خوا نه پخپله دانسان زياتې كمزورۍ هم ددغه نظام په نيمګړتيا ؤ كې زياتوالى راولي زه بـه خپل مطلب تاسو ته ديو څو مثالونو په ترڅ كې څرګند كړم كـه چيري يوسړى دبل دښمن وي او دهغه كور ته اور ور واچوي او كور يې وسوځوي دا دكورسوځيدل دهغه دفعل طبيعي نتيجه ده . ددې مسئلې اخلاقي نتيجه بايد داسې وي چې دغه سړي تـه بايد دومره سزا ور كړى شي څومره يې چې هغې كورنۍ ته زيان رسولى دى- خو ددې نتيجې څرګنديدل پـه دې پورې اړه لري چې داور ورتـه كوونكي پته څرګنده شي او دڅارنو(پوليسو) په لاس ورشي ، جرم پرې ثابت شي او محكمـه په پوره توګه ددې خبرې اټكل وكړي چې داور لـه لګيدونه دغې كورنۍ او دهغوى راتلونكو نسلونو ته په څرګنده تـوګه څومره ، څومره زيـان ور رسيدلى دى . بيا دعدالت او انصاف پراساس مجرم ته هماغومره سزا وركړي ، كه له دغو شرطونو نه يو شرط هم نيمګړى وي نو ښايې چې اخلاقي نتيجه خو باالكل

راځرګنده نه شي او يا يې يوازې يوه کوچنۍ برخه راځرګنده شي . دا هم ممکنه ده چې هغه سړی خپل دښمن لـه مينځه يوسي او دی خپله په بيغمه زړه ژوند وکړي .

په دغه برخه کې په نړۍ واله کچه يو بل مثال ته ځير شئ . يوځوک په خپل قام کې رسوخ پيدا کوي ټول ولس دهغه دوينا پر اساس هرڅه ته تياروي . هغه له خپل دغه دريځ نه ګټه اخلي او په خلکو کې دقام پرستۍ خوړلن ته ببوزی وهي او دنورو هيوادونو دنيولو جذبه او احساس په کې راپيدا کوي . په زرګونو او لکونو انسانان وژني هيوادونه ، هيوادونه سره تباه او کنډوالې شي ، په لکونو اوملیونوانسانان دذلت او خوارۍ ژوند ته اړباسي .

دبشري تاريخ پرځرنګوالي باندې د دوی دغه اعمال دومره ناوړې اغيزې کوي چې سلسله يې ترسوؤنو کلونو پورې په پرله پسې توګه ترنسلونو ، نسلونو پورې خپرې وي ايا تاسو دافکر کوئ چې په دنيا وي ژوند کې به دغو ځو اشخاصو ته چې دومره ستر ستر جرمونه کوي منصفانه او مناسبه جزا ورکړی شي ځرګنده خبره ده چې که دهغوی غوښې په نوکانو هم وشليږي ، ياژوندي ، ژوندي په اور کې وسوځول شي ، ياکومه بله داسې سخته سزا ورکړی شي چې دانسان په فکر کې تيريږي او له وسې يې پوره وي ، بيا به هم هغه له هغه زيان سره برابره سزا نه وي چې هغوی کروړونو انسانانو او دهغوی راتلونکو نسلونو ته ور اړولي ده .

دکايناتو موجوده نظام چې دکومو طبيعي قوانينو پر اساس چليږي دهغې له مخې داهيڅکله هم امکان نلري چې هغوی دخپل جرم په اندازه سزا ووينې . په همدې توګه هغو نيکو انسانانو ته وګورئ چې بشر ته يې دحق او ريښتونولی ښوونه کړيده . دهدايت په نور يې منور

كړي دي . چې له بركته يې له پيړيو ،پيړيو راهيسې بشرته ګټه رسيږي او دامعلومه نه ده چې ترڅومره راتلونكو پيړيو پورې به نوره هم ګټه ورڅيني واخلي ايا داممكنه ده چې دغه ډول خلكو ته دخپل خدمت پوره بدل په دې دنيا كې لاسته ورشي ايا تاسو داتصور كوئ چې دموجوده طبيعي قوانينو په حدودو كې يو سړى دخپل دغه ډول عمل پوره صله لاسته راوړى شي چې اغيزې يې دده له مړينې نه وروسته ترزرګونو كلونو پورې په بې شميره انسانانو كې خپرې شوې وي ؟

لكه څنګه چې مامخكې وويل لومړى خو په هغو قوانينو كې چې دكايناتو موجوده نظام يې پر بنسټ چليږي دومره ګنجايش نشته چې دانساني افعالو اخلاقي نتيجې پرې په بشپړه توګه مرتبې شي . له بلې خوا نه دځو كلونو په ژوند كې چې انسان كوم اعمال سرته رسوي دهغو داغيزو سلسله او ساحه دومره پراخه وي او دومره اوږدې مودې پورې جاري وي چې يوازې دهمدې كار دبشپړو نتايجو دلاس ته راوړلو لپاره په سوونو كلونه څه چې په زرګونو ، كلونو ژوند ته ضرورت دى . او دقدرت دموجوده قوانينو پر اساس انسان ته د دومره زيات ژوند تيرول ناممكن دي .

له دې نه څرګنده شوه چې دانساني هستۍ دخاورينو عضوي او حيواني عناصرو لپاره موجوده طبيعي دنيا (PhysicalWorld) او دهغې طبيعي قوانين كافي دي خو داخلاقي عنصر لپاره يې بالكل نيمګړې ده ، ددغو مسايلو لپاره يو بل نظام پكار دى چې په هغه كې حاكم قانون (GoverningLaw) داخلاقو قانون وي او طبيعي قوانين دهغه تر سيورې لاندې مازې دمرستيالو قوانينو په توګه كار وكړي ، په هغه نظام كې بايد ژوند محدود نه وي غير محدود وي هغه ټولې اخلاقي نتيجې چې دلته يې اغيزې له مرتب كيدو نه پاتې شوي دي ياپه ناسمه توګه مرتبې شوې دي ، هلته په سمه او بشپړه توګه مرتب شي . هلته چې د سرو او سپينو پرځاى به په نيكۍ او صداقت كې وزن او قيمت وي هلته چې اور يوازې هغه څه

سوځوي چې اخلاقاً دسوځيدو وړوي . هلته چې عيش اوسوكاله ژوند هغه چاته ور په برخه كيږي چې نيک وي او مصيبت به دهغه چاپه برخه شي چې بدوي . عقل يې هم غواړي او دفطرت غوښتنه هم همداده چې دغه ډول يو نظام بايد وي .

## قراني رڼا

تركومه ځايه چې دامسئله په عقلي استدلال پورې اړه لري ، هغه موږ يوازې د (بايدوي) ترحده بيايې او هلته مو نور پريږدي . پاتې شوه داپوښتنه چې كه چېرې په ريښتيا هم دغه ډول يو نظام موجود وي . نو بيا هم زموږ عقل او پوهه دواړه په دغه برخه كې پريكړه نه شي كولى دلته قرآن له موږ سره مرسته كوي ، هغه وايې چې ستاسو عقل او فطرت چې دكوم شي غوښتنه كوي هغه په حقيقت كې كيدونكى دى .

دنړۍ موجوده نظام چې دطبيعي قوانينو پراساس جوړ شوى دى يو وخت به وران ويجاړ شي له دې نه وروسته به يو بل نظام مينځ ته راشي چې په هغې كې به ځمكه ، اسمان او نور ټول شيان په يو بل ډول وي بيا به الله (ج) ټول انسانان چې دخلقت له پيله تر قيامت پورې پيداشوي وو بيا پيداكړي او په يو وخت به داټول خپلې مخې ته راغونډ كړي . هلته به دهر وګړي ، هر قام ، او ټول بشريت دښو او بدو ريكارډ له كومې غلطۍ اوسهوې نه پرته موجود وي . دهر سړي ديو يو عمل ټومره اغيزې او تاثيرات چې په نړۍ كې شوي دي دهغې بشپړ يا داشت به موجود وي . هغه ټول نسلونه به دشاهدانو ځاى ته حاضر شي چې له دغو اعمالو نه زيانمن او متاثر شوي دي هغه يوه يوه ذره به چې دانسان اقوال او افعال به پرې ثبت شوې وي خپله كيسه و اوروي په خپله دانسان لاس ، پښې ، سترګې ، او نور ټول غړي به شاهدي ووايې چې په هغې دنيا كې يې له دوی نه څه ډول كار

اخیستی دی . بیا به پر دغه مفصل رویداد باندې هغه تر ټولو ستر حاکم دبشپړ عدالت په نظر کې نیولو سره پریکړه وکړي چې څوک د څومره انعام او څوک دڅومره سزا وړدی . دغه انعام او سزا به دواړه په دومره ستره کچه وي چې داندازې اټکل یې دموجوده نظام دمحدودو پیمانو له مخې نه شي کیدلی . هلته به دوخت او ځای معیار څه بل شان وي . دهغه ځای مقدارونه او هرڅه به بل ډول وي هلته به دقدرت قوانین هم څه بل ډول وي دانسان دهغو نیکیو اغیزې چې په نړۍ کې له زرګونو کلونو راهیسې موجودې دي هلته به دی دهغې وړ او مناسبه صله ترلاسه کړي پرته له دې نه چې ناروغتیا زړښت او مړینه د ده دعیش او سوکاله ژوند سلسله ګډه وډه کړي.

په همدغه توګه دانسان دهغو ناوړه اعمالو زهرجنې اغیزې چې تر زرګونو کلونو پورې په بې شمیره انسانانو کې خپرې شوې دي . دهغې بشپړه سزا به له مرګ او بیهوشۍ نه پرته ووینې

هغه خلک چې ددغه ډول ژوند او دنیا وجود له امکانه بهر ګڼي ،ماته دهغوی په تنګ نظرۍ او دپوهې په کموالي باندې تاسف راشي . که زموږ د اوسني نظام موجودیت له دغو موجوده طبیعي قوانینو سره ممکن وي نو دیو بل نظام مینځ ته راتګ له نورو قوانینو سره څنګه ناممکن دی ؟

البته داخبره چې په واقعیت کې به ضرورداسې وي په یقیني توګه پرې باور نه په دلیل سره کیدی شي او نه په علمي ثبوت سره ، د دې لپاره ایمان بالغیب ته اړتیا ده .

# جبر او قدر

ایا زموږ تقدیر له پخوا ځیني ټاکل شوی دی ؟ ایا زموږ بری او ناکامي زموږ لویدل او راپورته کیدل زموږ دحالت خرابیدل او ښه کیدل زموږ سوکالي او کړاؤ او هغه ټولي پیښي چې موږ ورسره په دې دنیا کې مخامخ کیږو دکوم قدرت او یا قدرتونو دفیصلې نتایج دي او په ټاکلو کې یې بالکل زموږ برخه نشته ؟او که چیرې داسې وي نو ایا موږ بالکل مجبور یو ؟ ایا موږ په دې دنیاکې بالکل دهغو نانځکو په څیر یو واکه یو چې بل څوک یې نڅوي ؟ایا موږ دکوم مخکیني جوړ شوي پلان دعملي کولو لپاره یوازې دیوې وسیلې په توګه کارول کیږو لکه دهغو لوبغاړو په څیر چې دهر یوه رول چامخکې ترمخکې د دنیا پر ستیج ټاکلی وي ؟

دغه ټولې پوښتنې دهر هغه چا په زړه کې ورتیریږي ، چې کله یې هم ددنیا او انسان په هکله څه غور کړی وي . فیلسوف ، سائنسدان ، مورخ مقنن ، او هغه څوک چې دټولنې او اخلاقو پر مسایلو بحث کوي او همدارنګه دعامو خلکو په شمول ټولو په دغه ستونزو باندې خپل ماغزه ستړي کړي دي خو دهر یو د پوهې ګاډی چې دلته راورسیږي نو ځای پر ځای دریږي او مخکې نه شي تللی ترهغې چې د دې مسئلې دحل لپاره د ډاډ وړ ځواب پیدانه شي ، که هغه ځواب په دغه برخه کې سم وي که ناسم که د(هو) او یا (نه) په ویلو سره تاسو دغې مسئلې ته محضې ساده غوندې ځواب ورکوئ نو وریې کړئ . ښایې په دغه ځواب سره ستاسو زړه ډاډه شي که تاسو (هو) ووایې اوکه (نه) په دواړو صورتونو کې بیاهم نورې بې شمیره پوښتنې

راپیدا کیږي چې هغو ته بیا ځواب ویل ، ستاسو د(هو) او (نه) یوه له وسې نه هم پوره نه ده .

که تاسو (هو) وویل نو د دې ترڅنګ باید داهم ومنئ چې په تیره ونه ، ځناور ، او انسان کې هم هیڅ حقیقي توپیر نه شته ددې ټولو په څیر انسان هم هغه څه کوي چې ورته ټاکل شوي وي .

نه هغه مخکښني یاد شوي شیان واک او اختیارلري او نه دی دشاتو دمچیو دکور (ګبینه) جوړول او دانسان د اور ګاډي دپټلیو جوړولو ترمینځ به د درجې له مخې توپیر وي. خو نوعیت یې هیڅ توپیر نلري ځکه په دوی باندې ګبینه او داور ګاډي پټلی بل څوک جوړوي . دایجاد له ویاړ او شرف نه دواړه بې برخې دي .

له دې نه وروسته باید تاسو داهم ومنئ چې د دنیا دنورو شیانو په څیر انسان هم دخپلو افعالو ذمه وارنه دی دیووګړي نیک کارکول او دیو موټر سم چلیدل دواړه برابر دي دهر وګړي جرم او شرارت او دګنډلو دماشین خرابې بخیې کول دواړه یوحثیت لري ځرنګه چې مساله په دې ډول ده نو لکه څنګه چې تاسو (نیک موټر) رذیل (ماشین) ایماندار انجن او پساتي څرخه نه وایی نو په همدې توګه سړي ته هم باید دنیک او بد رذیل او شریف ایماندار او بې ایمانه اودغه ډول نور الفاظ استعمال نه کړئ که چیرې یې تاسو په همدغو نومونو بولئ ځکه په کومو نومونو چې خلک تاسې بولئ دهغوی په بللو تاسو مجبور یې ) نو لږ تر لږه خو په دې باید پوه شئ چې دغه الفاظ بې معنی دي .

خبره په همدې ځای پای ته نه رسیږي ، ځکه د نورو شیانو ترڅنګ زموږ مذهب او اخلاق ، زموږ قانون او دمحکمو نظام زموږ پولیس او زندان اود نورو جرایمو دڅارنې محکمې زموږ مدرسې او

دښوونې او روزنې موسسې اصلاحي ځانګې داټولې له يوې مخې هسې بابيزه او بې معنی کيږي سره له دې چې په کار به وي او کار به هم کوي او ديوې دروازه به پورې نه شي ځکه چې ستاسو دنظريې له مخې بايد داټول لوبغاړي (Actors) ددنيا پر ستيج خپل ورسپارل شوی او ټاکل شوی رول ولوبوي خو داخبره څرګنده ده چې کله دجومات د لمانځه غړی دکليسا عبادت کوونکی ، دمحکمې قاضي ، دغلا او داړې مجرم ټول له يوې مخې يوازې او يوازې ديوه لوبغاړي حيثيت ولري او له عبادت خانوځخه در واخله ان ترقمار خانو او زندانونو پورې داټول ديو ډرام مختلفې برخې او منظرې شي نو ددې معنی به داوي چې دانسان ټول مذهبي اواخلاقي ژوند محضې يوه لوبه او ننداره ده .

هغه سړی چې دشپې په چوپه چوپتياکې يوازې په ډير خلوص دالله جلت عظمته ستاينه او عبادت کوي او هغه څوک چې دچا کورته لغم (نقب) وروهي په حقيقت کې دواړه په دغه ننداره کې يوازې هاغه رول لوبوي چې ورسپارل شوي دي ددوی ترمينځ له د ې ځينې پرته نور هيڅ توپير نشته چې ډ'برکټير (Director) يوه ته دعابد او زاهد رول ورکړی او بل ته يې دغله او داړه مار رول ورکړی دی

زموږ په محکمو کې که قاضي صاحب په هرڅومره غور يوې دعوی ته غوږ شي او دی فکر وکړي چې په خپلې پوهې سره د دعوی په اصل حقيقت پوه شوی او دانصاف سره برابرې پريکړې لپاره يې زيار پيل کړی دی نو ستاسو دنظريې له مخې قاضي مدعی او مجرم درې واړه له لوبغاړو نه پرته نور هيڅ نه دي ، هغه خواران په غلط فهمی اخته شوي دي ځکه چې په حقيقت کې دوی ديوې مخکينی ليکل شوې ډرامې ټاکل شوی رول لوبوي خو له ناپوهی نه داسې

فکر کوي چې په محکمه کې یې ریښتیا هم په عدل او انصاف برابره فیصله کړي ده.

دا دهغه (هو) پای ؤ چې تاسو په سرسري توګه زما دلومړنیو پوښتنو په ځواب کې ویلی ؤ، نو اوس به تاسو دغو پوښتنو ته منفي (نه) ځواب ورکوئ؟ خو غم دادی چې په دې توګه به هم دامسئله یوازې په (نه) پای ته ونه رسیږي بلکې د دې ترڅنګ باید تاسو د ډیرو څرګندو حقایقو نه سترګې پټې کړئ که تاسو دا عقیده لرئ چې دانسان تقدیر له پخوا نه نه دی ټاکل شوی او دکوم بل بیروني قدرت دفیصلې پر اساس هم نه جوړیږي، نو غالباً به ستاسو دانکار مطلب داوي چې انسان خپل تقدیر/خپله جوړوي یعنې د ده تقدیر به د ده دخپلې ارادې او زیار نتیجه وي له دې مسئلې نه خو لومړی داپوښتنه راپیداکیږي چې ستاسو په وینا کې د (انسان) له لفظ نه مطلب څه دی یوازې یو یو سړی؟ که د انسانانو یوه ستره ډله چې ټولنه، جامعه او یا ولس ورته وایې؟ که ټول بني نوع انسان؟ که ستاسو مطلب داوي چې هر وګړی خپل تقدیر خپله جوړوي نو لږ شاته خو هغو شیانو ته هم وګورئ چې تقدیر ورځینې جوړیږي نو بیا مهرباني وکړئ ووایاست چې دهغو شیانو له جملې نه کوم کوم شیان دانسان په واک او اختیار کې دي دتقدیر جوړولو لومړني وسایل دانسان او دهغه ذهني اوجسماني قوتونه او دهغه اخلاقي او صاف دي چې دهغو دسموالي او خرابوالي توازن او عدم توازن کمښت او زیاتوالی دده پر تقدیر پریکنده اغیزه لري خوا یا داټول شیان هر انسان دخپلې مور له ګیډې نه له ځان سره په جبري توګه راوړي دي؟ تر اوسه پورې داسې څوک نه دی پیدا شوی چې په خپله یې دخپل تجویز او انتخاب پر اساس ځان جوړ کړی وي، نو څکه دانسان دتقدیر په ښه والي کې هغه عوامل

اغيزه لري چې هر انسان تـه لـه خپلو پلرونو او نيكونو څخه په ميراث پاتې شوي دي .

لـه همدې املـه پـه كـومـه كورنـۍ، تولـنه طـبقه قام او هيواد كې چې دی زوكړه كوي دهغوی دذهني ، اخلاقي ، مدني ، ټولنيز او سياسي ماحول لـه بې شميره اثراتو څينې دی هم متاثر كيږي دغه ټول شيان دانسان په تقدير جوړونه كې برخه لري خو ايا داسې ثوك شته دي چې پـه خپله خوښه او انتخاب يې همدغه نسل او همدغه ماحول دځان لـپاره ټاكلی وي چې پـه هغـه كې بايـد دی پيداشوی وی او خپله يې دافيصله كړې وی چې لـه دې جملې نه بايد دكومو كومو شيانو كوم اثرات او اغيزې ومني ؟ پـه همدې توګه دانسان پر تقدير باندې دنړۍ دزياتو پيښـو او واقعاتـو ښې اوبدې اغيزې كيږي دغـه پيښـې لكـه زلزلې ، سيلابونه ، كاختي ، ناروغي ، جګړې اقتصادي پرمختګ او بيرته پاتې و الی اونورې ناڅاپي پيښـې زياتره وخت دانسـان دټول ژوند تګ لوری او دهغـه ټولې نقشې او پلانونه چې لـه ډير غور اوفكر نـه وروسته يې پـه ډير زيار دخپلې ارامتيا ، سوكالۍ او برې لپاره جوړ كړي دي ، ګډ وډ كړي . ددې برعكس ډير ځلـه داسې پيښيږي چې دپيښـو دغـه بهير ناڅاپه يو سړی داسې كاميابيو تـه ورسوي چې د ده دزيـار اوهڅې اغيزې پـه كې ډيرې كمې وي . مخكينـۍ يادې شوي مسئلې داسې ځرګند حقايق دي چې انكار كول ترينه بې ايماني ته ضرورت لري .

اوس نو سړی څنګه دامنلی شي چې انسـان خپل تقدير خپله جوړ وي ؟ اوس كه څيرې تاسـو خپله ادعـا پـه دې تـوګه وړاندې كـوي چې داوكړي نه دي چې خپل تقدير جوړوي ، بلكې قامـونه خپل تقدير جوړوي نو داهم دمنلو وړ خبره نه ده . دهر قام دتقدير په جوړښت كې

نسلي خصوصيات تاريخي اغيزې ، جغرافيايي حالات طبيعي او نړيوالې پيښې زياتې اغيزې لري او دامسئله دنړۍ ديو قام له وسې نه هم پوره نه ده چې ددغو اسبابو او عواملو له اغيزو نه ځان ازاد کړي او خپل تقدير داسې جوړ کړي لکه څنګه يې چې زړه وي دکايناتو دنظام هغه الهي قانون هم چې دځمکې او اسمان نظم او انظباط يې ټينګ کړی دی ، دقامونو دتقدير په جوړولو کې داسې پريکنده اغيزه لري چې له هغې نه ځان ساتل او يا يې مخنيوی کول دهيڅ يوه ولس له وسې نه پوره نه ده او په دغه قانون کې لاسوهنه خو لاڅه کوې چې په بشپړه توګه يې ټولو کوايفو باندې پوهيدل هم دهيڅ يو قام له وسې نه وتلې خبره ده .

دغه قانون دپردې ترشا په خپل کار بوخت دی ، کله ناڅاپي توګه او کله هم په تدريجي توګه دهغه له عمل نه داسې نتايج راپيداکيږي چې لوړ او قدرتمند قامونه راټيټ او بې واکه کړي او ټيټ او بې واکه ولسونه يې راپورته کړي دي .

که څه هم داداسې مسايل دي چې په څرګنده توګه دانسانانو دپوهې له ساحې نه بهردي خو هغه اسباب او وسايل چې په ظاهري توګه دانسانانو په لاس کې دي په مفصله توګه باندې دهغو سپړنه او څيړنه هم دومره اميد بخښونکې نه ده . ديوولس دتقدير په جوړښت کې زيات عوامل په دې پورې منحصر دي چې يو باصلاحيته او اهل ليډر شپ (Leadership) دهغوی په برخه وي ، همدارنګه دهغه قام په يو زيات شمير نورو وګړو کې هم بايد هغه صفات او ځانګړتياوې موجودې وي چې له دغه ليډر شپ نه دګټې اخيستلو لپاره ضروري دي ،خو موږ نه په تاريخ کې د داسې پيښو څرک موندلی شو او نه دخپل عصر او زمان په مشاهداتو کې داسې کوم مثال شته چې کوم

قام دي ، ددغو دواړو شیانو په لاسته راوړلو کې په ازاده توګه دخپلې ارادې او انتخاب له حق نه ګټه اخیستې وي . موږ خو داوینو چې کله دکوم قام دلوړتیا او پرمختګ وخت راشي نو ښه لیډرشپ یې هم په برخه شي او هغه خصوصیات او ځانګړتیاوي هم په کې راپیدا کیږي چې ددغه لیډر شپ دکامیابۍ او بري لپاره ضروري وي ، او هغه ولس چې دنزول او سقوط په لار روان شي ، نو دهغوی دلیډرشپ او اعضاؤ دواړو اهلیت او صلاحیت هم داسې رخصت شي چې دهغوی یو خیر خواه او مصلح یې هم بیرته نه شي راستنولی .

موږ هیڅ په دې نه پوهیږو چې دخه ډول قانون له مخې داقوامو په تاریخ کې دغه دعروج او زوال واقعات مینځ ته راځي ایا اوس نو تاسو قامونه پرځای پریږدئ او دټولو انسانانو په هکله داحکم کوئ چې هغوی خپل تقدیر په خپله جوړوي ؟خو داخبره نوره هم سخته ده که څوک د دغو ټولو انسانانو په هکله چې په ګڼو نژادونو او قامونو ویشل شوي او د ټولې نړۍ په سیمو کې خپاره شوي دي د بې شمیره او ګڼو تهذیبونو او تمدنونو په رنګ رنګ شوي او په بې شمیره ژبو خبرې اترې کوي .

دا فرض کړئ چې په مجموعي توګه د دوی اراده یوه ده چې دهغې پر اساس له فکر او غور نه وروسته خپل تقدیر او برخلیک ټاکي نو په حقیقت کې به یې یوه ډیره ستره او اریانونکې خبره فرض کړې وي .

ایا واقعاً هم انسانانو دخپل پرمختګ دمزله لپاره دغه مهال ویش (Time Table) خپله ټاکلی ووچې ترېلاني وخت پورې به دوی دتیږې له الاتو او وسایلو نه کاراخلي ، بیابه د اوسپنې استعمال پیل کوي ترېلاني وخت پورې به له انساني او حیواني ځواک او قوت نه کار اخلي او بیا به دخپلو کارونو دپرمختګ لپاره دماشین له انرژۍ

نه کار اخلي ؟ ترفلانی پیړی پورې به په سمندرونو کې بیړی (کشتی) له قطب نما (Compass) نه پرته چلوي ، وروسته به بیا دخپل سفر دلوري دټاکلو لپاره له قطب نما نه کار اخلي ؟ ایا هغه بیاهم په خپله انسانان دي چې دافریقاامریکا اروپا ، اسیا او استرالیا دمختلفو قامونو یعنې دخپلو مختلفو برخو لپاره یې په خپله مختلف تقدیرونه ټاکلې دي ؟ څرګنده خبره ده چې یو هوښیار سړی د دغه ډول اریانونکي ادعا خیال هم نه شي کولی.

له دې نه وروسته له تاسو سره په دغې ادعا د ټینګار لپاره کوم دلیل نه پاتې کیږي چې ووایې انسان خپل تقدیر په خپله جوړ ولی شي . نو څرنګه چې نه په جلا ، جلا توګه هر وګړی دخپل تقدیر څښتن دی او نه یې کومه مجموعه او نه له یوې مخې ټول بني نوع انسان ، نو دا دتقدیر ملکیت به اخر دکوم انسان په برخه رسیږي ؟

هغه پوښتنې چې ما په پیل کې له تاسو نه وکړلې تاسو ولیدل چې دهغو ځواب نه مازې په (هو) سره ورکول کیدی شي او نه مازې د (نه) په ویلو سره . حقیقت ددې دواړو ترمینځ دی . هغه قوي او ځواکمنه اراده چې دکایناتو دغه نظام چلوي له هغې نه پرته په دنیا کې هیڅ شی کار نه شي کولی کار خو لا پریږده چې ژوند هم نه شي کولی . دایوه هراړخیزه نقشه او پلان دی چې په بشپړ ځواک سره په ځمکه او اسمان کې چلیږي په هیڅا کې دومره ځواک او قدرت نشته چې ددغې نقشې پرخلاف حرکت وکړي ، یایې بدله کړي یاپرې څه اغیزه وکړي زموږ علوم ،تجربې او مشاهدې ټولې دهمدې خبرې شهادت ورکوي چې دکایناتو په دې ستره پاچاهي کې دهیچا دخود مختارۍ لپاره بالکل ځای نشته

هغه ذات چې داسمان سترو ، سترو سیارو ته دخپلې تاکلې لارې نه دويښته هومره هم دانحراف اجازه نه ورکوي ، هغه ذات چې ځمکه يې ديوې ضابطې پر اساس تاويدلو ته اړه کړي ده ، دهغه حکومت چې پر اوبو ، هوا ، رڼا ، يخنۍ او تودوخه باندې يې بشپړ کنټرول موجود دی ، کوم ذات چې دانسان له پیدا ینبت نه مخکې هغه عوامل او شرایط برابر کړل چې دهغو له امله دځمکې پر مخ دانسان موجودیت امکان پیدا کړ ، هغه لوی ذات که چیرې په خپل بې پایه واک او اختيار سره دژوند داسبابو او عواملو په توازن کې لږ شاني بدلون هم راولي نو دنړۍ پرمخ به ټول انسانان دسترګو په رپ کې دنیستۍ او فنا کندې ته ولويږي .

ددغه ډول بې ساري قدرت تر اغيزو لاندې د او سيدونکي انسان لپاره دداسې ازادۍ تصور هم څوک نه شي کولې چې خپل تقدیر لکه څنګه يې چې وغواړي هماغه ډول يې جوړ ولې شي خو دغه ډول ګومان کول هم سم کار نه دی چې ګویا هغه ذات چې موږ يې خلق کړي یو ،هغه چې موږ ته يې علم غور او فکر اراده او دفيصلې ځواک راکړی دی ، هغه چې په موږ کې يې دا احساس پیدا کړی دی ، چې څه اختيارات لرو ، هغه چې په موږ کې يې داوړتیا او اهلیت پيدا کړی دی چې په ښو او بدو کې توپیر کولی شو. د دنيا په معاملو کې یو ډول کړندود (طرزالعمل) غوره کړو او بل ډول پريږدو او همدارنګه ځينې نور داسې کارونه کولی شو چې داختيار پته ترینه لګيږي. موږ ته دکايناتو په تدبیر او انتظام کې نهایت درجه دقت اوسنجيدګي ښکاريږي ، توکه ، لوبه اوتمسخر دکايناتو په يو عمل کې هم نه ښکاري نو له دې امله حقیقت هغه دی چې موږ او تاسو هر يوه په وجداني توګه احساسوو يعنې په حقيقت کې موږ او تاسو هر يوه ته په

محدوده او ټاکلې اندازه اختیارات راکړل شوي دي له دغو اختیاراتو نه په ګټې اخیستلو او استعمالولو کې تریوې مناسبې اندازې پورې ازادهم پریښودل شوي یو چې دا ازاي حاصل کړی شوې نه ده ، بلکې راکړل شوي ده ،داچې ددغې ازادۍ مقدار څومره ډول دی ددغو اندازو ټاکل مشکله نه بلکې بالکل ناممکنه خبره ده خو له دې نه هیڅوک انکار نه شي کولې چې دغه ازادي حتماً شته او دکایناتو په جهاني پلان کې زموږ لپاره همدغه ځای ټاکل شوی دی چې موږ په یوه محدوده پیمانه د یو ازاد لوبغاړي په توګه رول ولوبوو .

زموږ لپاره دلته همدومره ازادي شته چې په پلان کې یې ګنجایش موجود وي . موږ په اخلاقي توګه په حقیقت کې همدومره مسؤل یو څومره چې ازادي رابخښل شوي ده داچې په دغو دواړو امورو کې موږ څومره ازاد یو او دخپلو اعمالو له امله څومره مسؤل یو ، زموږ دعلم او پوهې له ساحې نه وتلې خبره ده . پدې باندې یوازې همدغه ذات پوهیږي چې موږ ته یې په خپل پلان کې دغه دریځ ټاکلی دی ، داهغه تصور دی چې په دغه برخه کې داسلام سپیڅلي دین غوره کړی دی . دین له یوې خوانه موږ ته پرالله (ج) چې مطلق واکمن دی دایمان راوړلو بلنه راکوي چې څرګنده معنی او مفهوم یې دادی چې موږ او زموږ شاوخوا ته ټوله نړۍ دهغه قدرت په مخکې محکومه ده او هیڅ شی هم دهغه دبې ساري قدرت له ساحې وتلي نه دي له بلې خوانه هغه موږ ته اخلاقي تصورات رابخښي ، په نیکۍ اوبدۍ کې توپیر کوي ، او موږ ته وایې چې که دغه لار موغوره کړه نونجات به ومومۍ او که په بله لار لاړ شئ نو سزا به درکړی شي . داخبره یوازې په هغه صورت کې معقوله ګڼل کیدی شي چې موږ په واقعي توګه په خپل اختیار دخپل ژوند دلارې په غوره کولو کې ازادو اوسو

# د

# امن لار

(۱)- دغه وینا (دامن لار) د ۱۹۴۰م کال د مې په میاشت کې د کپورتلې په ولایت دهندوانو ، سکهانو او مسلمانانو په ګډه غونډه کې اورول شوې وه .

## دالله تعالی وجود

ښاغلیو : که تاسې ته څوک ووایې چې په دې ښار کې یو داسې دکان دی چې د کاندار یې نشته ، نه په کې څوک مال اچوي ، نه یې پلورونکی شته او نه یې څوک ساتنه کوي دکان پخپله چلیږي پخپله ورته مال راځي او پخپله د پیریدونکو په لاس پلورل کیږي نو ایا تاسې به دهغه سړي خبره ومنئ ؟ ایا تاسې به داقبوله کړئ چې له مال راوړونکي پرته پخپله مال راتلی شي ؟ ایا بې له پلورونکي پخپله پلورل کیدی هم شي ؟ له غلا او لوټ نه هم بې له ساتند و یانو پخپله ساتل کیدی شي ؟ له خپله ځانه دا پوښتنه وکړئ چې داسې خبره کله منلی شي ؟ دچاچې فکر او حواس په ځای وي ایا د هغه عقل به داومني چې په نړۍ کې به داسې یو دکان هم وي ؟

فرض کړئ چې یو څوک تاسې ته ووایې چې په دې ښار کې یوه کارخانه ده چې نه یې څښتن شته نه یې انجینیر نه مستري ټوله کارخانه په خپله تیاره شوې ده ټول ماشینونه یې پخپله جوړ شوي دي ټولې پرزې یې پخپله په خپل خپل ځای لګیدلي دي . ټول ماشینونه یې پخپله چلیږي او په کې عجیبه او اریانئونکي شیان جوړیږي ربنتیا ووایې که چېرې دی هرڅوک وي خو چې تاسې ته داخبره وکړي نو ورته به هک پک پاتې نه شئ

ایا تاسې به دهغه په لیونتوب شکمن نه شئ ؟ ایا بې له کوم لیوني به بل څوک داسې بیهوده خبرې وکړي ؟ لوی مثالونه پریږدئ ددغې بجلۍ ګروپ چې ستاسې په وړاندې رڼا کوي ایا د یو چاپه ویلو سره تاسې دامنلی شئ چې دهغه روښنایې پخپله هغه ګروپ نه

پیداکیږي ؟ داڅوک ي چې ستاسې په مخ کې ایښې ده ایا د یوه ستر او لوی فاضل په وینا هم تاسې باور کولی شئ چې هغه پخپله جوړه شوې ده ؟ داجامې چې ستاسې په تن دي ایا د زمانې دیو نابغه داوینا هم منلی شئ چې هغه چانه دی او بدلې او پخپله او بدل شوې ده ؟

ستاسې په وړاندې چې دا مخامخ کور دی که چېرې د ټولې نړۍ د پوهنتونونو پوهاندان سره راټول هم شي او وایې چې دا کور چا ودان کړی نه دی بلکې پخپله ودان شوی دی نو ایا دهغوی په دې نامعقوله وینا به ستاسې باور راشي ؟

تاسې چې د شپې او ورځې کوم شیان ګورئ له هغو څخه مې یو څو مثالونه تاسې ته د بیلګې په توګه بیان کړي دي اوس نو غور وکړئ ، دیوه معمولي دوکان په هکله چې ستاسې عقل دانه شي منلی چې هغه دې بې له دکانداره وچلیږي او کله چې د یوې وړې شانته کارخانې په باره کې دې ته نه شئ حاضریدلی چې پرته له صانع دې جوړه شي او بې له چلؤنکي دې وچلیږي ددې ځمکې او اسمان ترټولو لویه او غوره کارخانه چې ستاسې په وړاندې چلیږي او په هغې کې لمر ، سپوږمۍ او غټ غټ ستوري د ساعت د پرزو په څیر ګرځي په هغې کې له سمندرو نو بړاسونه پورته کیږي . له بړاسونو وریځې جوړیږي ، وریځې هواته پورته شي او د ځمکې ګوټ ګوټ کې خپریږي بیا په مناسب وخت کې دتودو خې په ور رسیدو له کنګل نه او به جوړیږي او دباران د څاڅکو په صورت کې ځمکې ته رالویږي بیا ددې باران په برکت د مړې ځمکې له خیټې نه ډول ډول سمسورې او ښیرازه ونې زرغونیږي رنګارنګ غلې میوې او هر ډول ګلان ترې راټوکیږي نو ددې کارخانې په هکله تاسې څرنګه دامنلی شئ چې د اټول شیان دې بې له چلونکي پخپله وچلیږي ؟

دیوې کوچنۍ څوکۍ ، یوګز ټوکر (رخت) یو وړوکي شانته دیوال په برخه کې که څوک ووایې چې دغه شیان پخپله جوړ شوي دي نو بې له ځنډه به دا پریکړه وکړئ چې هغه لیونی شوی دی . بیا نو دهغه چاپه لیونتوب باندې څه شک کیدی شي چې هغه ووایې دا ځمکه پخپله جوړه شوې ده ژوي یې پخپله پیدا شوي دي دانسان په شان اریانونکی مخلوق پخپله پیداشوی دی ؟

دانسان جوسه چې له کومو توکو څخه جوړه شوې د ساینس پوهانو ترشنني (تجزیې) لاندې ونیوله نو هله ورڅرګنده شوه چې هغه یوه اندازه اوسپنه ، معدني سکاره ، ګوګړ ، فاسفورس ، کلسیم او داسې نور یو شمیر ګازونه دي او بس او په همدې ډول ځینې نورشیان دي چې ټوله بیه یې له یو څو روپیو زیاته نه ده ، دانسان په جوسه کې چې دغه شیان په هرڅومره وزن شته صرف هومره وزن راواخلئ بیا چې څنګه مو زړه غواړي هماغسې یې سره یو ځای کړئ او وګورئ انسان به په هیڅ ډول له دې ترکیبه جوړ نه شي نو بیا داڅرنګه ستاسې عقل منلی شي چې له دغو څو بې روحه شیانو دې لیدل ، اوریدل ،ویل ، خوځیدل بیا تر انسانه پورې چې الوتکه او راډیو جوړوي دیو پوه استاد له حکمته پرته دې هغه پخپله راپیدا او جوړ شي ؟

لږ څه ځیر شئ چې انسان دمور دګیډې په دې وړه غوندې کارخانه کې څرنګه جوړیږي؟په دې دپلار دکارکولواو د مور دحکمت څه برخه نشته . په یوه وړه غونډې کڅوړه کې (سپرم) او (اوم) چې له مایکروسکوبه پرته په سترګو نه شي لیدل کیدی په نامعلوم وخت کې سره یوځای کیږي . یوازې د مور له وینې څخه تغذیه پیل کوي او له هغې ځینې او سپنه ، معدني مواد ، فاسفورس او داسې نور شیان لکه څنګه چې د مخه مو ترې یادونه وکړه په یوه ځانګړي وزن او ځانګړي

نسبت هلته په يوځای کيدو د غوبنې بوټي (زيګوټ) جوړوي چيرته چې غوارې سترګې جوړې کړي هلته سترګې جوړوي. په کوم ځای کې چې غوارې غوږونه جوړ کړي هلته غوږونه جوړوي. چېرې چې غوارې دماغ جوړ کړي هلته دماغ جوړوي. او په کوم ځای کې چې غوارې زړه جوړ کړي هلته زړه جوړوي، هډوکي پرخپل ځای، غوښې پرخپل ځای لنډه داچې هريو توکی پرخپل ځای سم او برابر شي بيا په کې ساوګرزي. دليدو ځواک، داوريدلو ځواک د ځښلو او بويولو ځواک، دويلو ځواک، دجاج او پوهنې ځواک او داسې نورو بې شميره ځواکونو نه ډک شي.

په دې توګه چې کله انسان بشپړ شي نو د ګيډې هغې وړې غوندې کارخانې نه چې ترنهو مياشتو يې وده په کې کوله پخپله يې بهرته راوباسي له دغې کارخانې نه په همدغې يوه طريقه هره ورځ لکونه انسانان راوځي خو دهريو بيلګه سره بيله ده، بڼه بيله، رنګ بيل، غږبيل، ځواکونه او استعدادونه بيل، طبيعتونه او خيالات بيل. اخلاق او صفات بيل ديوې مور له ګيډې نه د دوؤ سکه ورونو ترمينځ يو له بله توپير يوه داسې معجزه ده چې په ليدو سره يې عقل هک پک پاتې شي. سربيره پردې که بياهم څوک داووايي چې داکار د يوه بيا وزري حکمت والا، تکړه ځواکمن دبشپړې پوهې او بې مثاله کمالاتو لرونکي ذات نه پرته کيږي ياکيدی شي په يقين سره چې هغه ليونی دی او اعصاب يې روغ نه دي. هغه عاقل ګڼل دعقل غندنه ده نو ترليږه خوزه داسې سړی ددې وړ نه بولم چې له هغه سره دې يوه معقوله مسئله بحث وکړم.

# توحید

ډیر ښه اوس لږ څه نور هم مخکې ولاړ شئ له تاسې نه به د هريو عقل ددې شهادت ورکړي چې په نړۍ کې هيڅ يو کار هم که هغه لوی وي يا وړوکی تر هغې پورې چې دهغه مسؤل يو تن نه وي هيڅکله په اصولي او قانوني توګه نشي چليدلی ايا کله مو اوريدلي دي چې په يوه مدرسه کې دې دوه ستر استادان په يوه اداره کې دې دوه رئيسان ديوه لښکر دې دوه جنرالان او ديوې واکمنۍ دې دوه واکمن پاچايان وي؟ او که داسې وي نو ايا تاسې پوهيږئ چې انتظام به يې ديوې ورځې لپاره هم جوړښت وموندلی شي ؟

تاسې دخپل ژوند په ورو ورو چارو کې ددې تجربه کوئ که چيرې کوم کارله يوه نه زياتو کسانو ته سپارل کيږي هلته سخته بې نظمي او ګډوډي وي ، جنګ او جدل وي لنډه داچې شريکه کټوه د واټ په منځ کې ماتيږي . په نړۍ کې که موچيرته هم انتظام ، قاعده ، برابري او غوره چلند ليدلی دی هلته ارو مرو په کې يوخواک حاکم وي . يوازې يو تن دواک او ځواک څښتن وي . له دې پرته د انتظام تصور نشئ کولی دايوه داسې رښتيا خبره ده که څوک لږ غوندې عقل هم ولري نو په منلو کې به يې تامل ونکړئ .

داخبره په ذهن کې وساتئ او لږ دخپلې نړۍ چاپيريال ته نظر وکړئ . داګڼ شمير کائنات چې ستاسې په مخ کې دي ددې ګڼو ستورو حرکت چې موتر سترګو کيږي دغه ځمکه چې تاسې پرې اوسيږئ دغه سپوږمۍ چې دشپې راخيژي دغه لمر چې ګهيځ ځرک کوي دازهره مريخ ، عطارد ، مشتري او نور بې شميره ستوري چې دغونډوسکو په څير چورليږي . هغه ته وګورئ ددې ټولو په چورليدو

کې څرنګه يو بشپړ نظم پروت دی دا مو کله ليدلي دي چې شپه يا ورځ له خپل وخت نه دمخه راغلي وي ؟ايا کله يې له سپوږمۍ سره ټکر کړی دی ؟لمر کله خپله ټګلاره پرې ايښې ده ؟ ايا دامو هم اوريدلي ياليدلي دي چې ستوري ديو ويښته په اندازه له خپل مدار نه لرې شوي دي ؟ داګڼ ستوري چې ځينې يې له ځمکې نه په لکونه ځله لوی دي او ځينې يې له لمرونو نه هم زرګونه ځله غټ دي ، دساعت د پرزې په شان په يو بشپړ انتظام کې د يو ه تړل شوي تناسب له مخې په خپل خپل ټاکلي حرکت سره خپله خپله ټاکلې لاروهي نه د کوم يو په حرکت کې لږ غوندې توپير راځي او نه د يو ويښته په اندازه په خپله لار کې تم کيدلی شي دهغو تر مينځ چې کوم نسبتونه قايم شوي دي که ديوې شيبې لپاره هم په کې لږ شانته توپير راشي نو دنړۍ ټول نظام به ګډ وډ شي لکه څنګه چې اورګاډی ټکر کوي په دې ډول به ستوري يوبل سره ټکر شي .

د اخو ګرانې خبرې دي لږ څه دې خپلې ځمکې او خپل ځان ته نظر وکړئ د خاورې پردې غونډوسکې باندې چې تاسې دژوندانه داټولې لوبې ګورئ داټول د څو متناسبو قواعدو او اصولو په برکت سره کيږي دځمکې جاذبې داټول شيان په خپله دايره کې را ايسار کړي دي . که ديوې شيبې لپاره هم خپله جاذبه له لاسه ورکړي نو ټوله کارخانه به ړنګه او ګډوډه شي . په دې کې چې څومره پرزې په کار لويدلي دي داټولې له يوې قاعدې څخه پيروي کوي او هميشه په کې توپير نه راځي . هوا ، رڼا ، سړوخه او تودوخه هره يوه دخپلې خپلې قاعدې پيروي او پابندي کوي . خاوره ، تيږه ، معدني مواد ، بجلۍ ، بيړۍ ، ونه ، ژوبو او نورو ته دا . وس او واک نشته چې له خپل بريد نه

دې اخوا واوښتلی شي يا دې خپلو ځانګړتياؤ ته تغير ورکړي او ياهغه چاره چې ورسپارل شوي ده هغه دې پرېږدي .

بيا په خپل چاپيريال کې ددې کارخانې داټولې پرزې خپلې قاعدې ته په پابندۍ سره يو له بله په ګډه کارکوي او په نړۍ کې چې هرڅه هم واقع کيږي داله دې امله کيږي چې داټول شيان او ټول قوتونه په ګډه سره کار کوي .

د تخم يو کوچنی غوندې مثال راواخلئ او په ځمکه کې يې وکرئ که چيرې هغه ته هر څومره وده ورکړئ هيڅ کله ترې ونه نشي جوړيدی تر هغې پورې چې دځمکې او اسمان ټول ځواکونه دهغه په وده کې په ګډه برخه وانخلي . ځمکه له خپلو خزانو ځينې ورته غذايي مواد ورکوي او لمر دهغه دارتيا په اندازه حرارت څه چې له اوبو غوارې اوبه يې ورکوي او څه چې له هوا غواړي هغه ورته هوا ورکوي . له شپو ځينې سړوخه او پرخه ترلاسه کوي . دورځې تودوخه يې د پخوالي خواته راکاږي .

په دې ډول سره ترڅو مياشتو او کلونو پورې پرله پسې تريو نظم او قاعدې لاندې داټول په ګډه دهغه روزنه او پالنه کوي په دې توګه بيا ونه شي او ميوه نيسي . دغه ټول فصلونه چې دهغه په زور اوطاقت تاسې ژوندي يې نه يوازې داچې داد هماغو بې شميره بيلابيلو ځواکونو د اتفاقي کارکولو له امله تياريږي بلکې ستاسې د خپل ژوند لامل هم هماغه د ځمکې او اسمان واړه ځواکونه دي چې په ګډه توګه ستاسې په وده بوخت دي . که چيرې يوازې هوا له دې ګډ کارنه ډډه وکړي نو له منځه ځي که اوبه ، هوا او تودوخه له دې ګډې همکارۍ نه ګوښه شي نو دباران يو څاڅکی هم پر تاسې نشي اوريدلی که خاوره له اوبو سره توافق ونکړي نو بڼ به مو وچ شي .

کښتونه به مو هیڅکله پاخه نشي او کور مو هیڅکله نشي ودانیدلی که د اورلګیت له مښلو داور په پیدا ینت خوښ نه یې نو نغری به مو سوړ شي او ستاسې ټولې کارخانې به ټولې یو دم ځای پر ځای ودرېږي که چیرې اوسپنه له اور سره خپلې اړیکې وشلوي نو دا اورګاډي او موټرونه خو لاځه چې تربوې ستنې او چړې پورې شی هم نشي جوړیدلی لنډه داچې دغه ټوله دنیا چې تاسې په کې ژوند کوئ صرف له دې امله ټینګه ده چې له عظمت نه د ډکې ستري واکمنی ټولې ادارې په پوره پابندی سره په خپل منځ کې په ګډه کار کوي او د دې ادارو له هیڅ یوه کارکونکي سره هم دا توان نشته چې خپله دنده پریږدي یا له قاعدې سره جوخت د نورو ادارو کارکونکو سره لاس یونکړي.

هغه څه چې مې تاسې ته بیان کړي دي ایا کومه یوه خبره په کې غلطه یا دواقعیت پرخلاف شته ؟بنايي چې هیڅوک به ورته دروغ ونه وایئ ښه نو که چیرې رښتیا ده نو دا راڅرګنده کړئ چې ددغه ځواکمن انتظام اریانوونکو اصولو ، دغه په لوړه سویه برابرې ، دځمکې او اسمان دګڼو او بې شمیرو شیانو او ځواکونو ددې بشپړ یووالي او مطابقت لامل څه شی دی ؟

بې شمیره کلونه دغه کاینات په همدې توګه ټینګ دي او چلیږي لکونه کاله پر دغه ځمکه ونې رازرغونیږي ، ژوي راپیداکیږي او له ناڅرګندوخت نه راپه دیخوا انسان پردغه ځمکه باندې ژوند کوي خو هیڅکله دا ونه شول چې سپوږمی ځمکې ته رالویدلي وي یا ځمکه له لمر سره ټکر شوې وي . هیڅکله دهوا او اوبو دادارو ترمینځ جګړه ونشوه . داوبو او خاورې ترمینځ مرورتیا رانغله هیڅکله تودوخې له اور سره خپلې اړیکې ونه شلولې اخرد دغې واکمنی ټول ولایتونه ،

ټولې اداري او ټولې چارې او کارکونکي ولې دغه ډول قانون او اصولو ته په پابندۍ سره چلیږي ؟ ولې په خپلو کې سره نه جنګیږي ولې تري فساد نه راولاړیږي ؟ داکوم لامل دی چې داټول په یوه انتظام پورې تړلي شوي دي ؟

ددې پوښتنو ځوابونه تاسې له خپل ځان نه وپوښتئ ایا داګواهي تاسې ته نه درکوي چې یوازې یوذات ددې ټولو کائناتو واکوال دی یوا زې هماغه دی چې پیاوړي ځواک یي داټول په خپلو اصولو پورې تړلي دي ؟ که لس شل نه صرف دوه خدایان هم ددې کائناتو واکمن وی نو داانتظام هیڅکله په دې اصولیت سره نشو چلیدلی . یوې کوچنۍ مدرسې چې د دوو لویو استادانو د استادۍ سټروالی ونشو زغملی بنه نو بیا د دومره پراخې ځمکې او اسمان واکمني به د دوو لوېو خدایانو په خدایۍ سره څنګه وچلیدی شي ؟

واقعیت یوازې همدغه نه دی چې نړۍ پرته له معماره نه ده ودانه شوې بلکې داهم واقعیت دی چې یوازې هماغه یوه ذات ودانه کړي ده . حقیقت صرف داهم نه دی چې دنړۍ دغه انتظام بې له یوه واکواله ځینې چلیږي بلکې داهم حقیقت دی چې هغه په کې یودی . ددې انتظام اصولیت په ډاګه دارابنیې چې دلته له یوه ذات نه پرته دبل چا په لاس دحکومت اختیارات نشته داصولو پابندي دارابنیې چې په دې واکمنۍ کې بې له یوه واکواله بل دهیچا حکم نه چلیږي . دقانون ټینګښت شاهدي وهي چې یوازې دهماغه واکوال حکومت له ځمکې نه ترآسمانه پورې ټینګ او نافذ دی . سپوږمۍ ، لمر او ستوري دهغه د ځواک په ولکه کې دي ځمکه له خپلو ټولو شیانو سره دهغه د امر تابع ده ، هوا ، اوبه ، سیندونه او غر د هماغه ترحکم لاندې مرتیتوب او بندګي کوي ونه او ژوې دهماغه دامر منونکي دي . دانسان ژوند

او مرګ د هغه په واک کې دی. د هغه کلکې نیونې په پوره قوت سره دا ټول ټینګ نیولي دي. هیڅوک دومره زورنلر ي چې په دغې واکمنۍ کې دې خپل حکم وچلولی شي.

په دغه بشپړ تنظیم کې له اصله تریو د زیاتو واکمنانو ځای نشته د تنظیم فطرت داغواړي چې په حکم کې دې دیو بڅر ي په اندازه هم بل څوک برخوال نه وي. یوازې هماغه یو دې حاکم وي او له هغه پرته دې نور ټول ترحکم لاندې وي ځکه چې له نورو سره د حکم چلونې دادنې اختیاراتو معنی هم بې نظمي او فساد دی. د حکم چلولو لپاره یوازې طاقت نه بلکې علم هم پکار دی. دومره پراخ نظر پکار دی چې دا ټول کائنات په یوه وخت کې ولیدلی شي اوله هغو څخه د ښیګڼو په انګیرنه احکام جاري کړی شي. که چیرې بې له الله ځینې نور داسې واړه واړه خدایان وای چې نړۍ لید نظریې نه درلودی خو د نړۍ دیوې برخې، یا یوې معاملې په هکله د حکم چلونې واک د هغوی په لاس کې وای نو دا دې ځمکې او آسمان کارخانه به لاندې باندې او رنګه وی. یو معمولي ماشین په برخه کې هم تاسې ته څرګنده ده که په هغه کې یوه داسې شخص ته چې په پوره توګه ترې خبر نه وي د لاس وهنې واک ورکړی شي نو وران به شي ځکه نو عقل داپریکړه کوي او په بشپړ ډول د ځمکې او آسمان د واکمنۍ نظام چلیدنه داشاهدي وهي چې د دې واکمنۍ په شاهي اختیاراتو کې له ایکي یوه ذاته پرته بل هیڅوک دیوه بڅري په اندازه هم برخوال نه دي.

یوازې همدا یو واقعیت نه دی رښتیا خو داده چې دالله عزوجل په خدایي کې له الله نه پرته د بل هیچا د حاکمیت هیڅ لامل نشته. څوک چې د هغه د قدرت په لاس جوړ شوی دی څوک چې د هغه مخلوق دي کومه هستي چې د هغه په لورینه رامنځ ته شوې ده او څوک چې له

هغه نه په بيباکۍ سره ديوې شيبې لپاره هم په خپل زور ژوندی نشي پاتې کيدی نو له دوی څخه کله څوک دداسې جوړه کيدی شي چې د هغه په الوهيت کې دې برخوال شي.

ایا کوم مزدور مود بادار په ملکيت کې شريک ليدلی دی؟ ایا ستاسې ذهن ته داخبره رالويږي چې کوم مالک دې خپل نوکر له ځان سره برخوال کړی وي؟ ایا له تاسې څخه چا خپلو خدمتګارانو کې څوک په خپل جايداد يا خپلو اختياراتو کې شريک کړی دی؟ که چيرې دې خبرې ته لږ څه ځير شئ نو د زړه له کومې به شاهدي ووهئ چې دالله په دې واکمنۍ کې په خپل واک د حکمرانۍ هيڅ ډول حق هم هيچا ته نشته او که داسې وي نو نه يوازې داچې د واقعيت، عقل او فطرت پرخلاف دی بلکې د حق پرخلاف هم دي.

## دانسان دتباهۍ اصلي لامل.

بناغليو دا هم بنستيز حقيقتونه دي چې د نړۍ بشپړ نظام پرې راروان دی. تاسې له دې نړۍ جلا نه يې بلکې دهغې دننه ديو ټوک (جز) په توګه ژوند کوئ. په دې اساس دغه حقيقتونه ستاسې د ژوند لپاره هم هماغسې بنستيز دي لکه څنګه چې د ټول جهان لپاره دي.

نن دغه پوښتنه ستاسې د هرېوه او د نړۍ د ټولو انسانانو لپاره يوه ستونزمنه مسئله ګرزيدلې ده او هغه دا چې د انسانانو ژوندون څنګه له امن او سوکالۍ نه ليرې دی؟ ولې هره ورځ پر مونږ باندې مصيبتونه رانازليږي؟ ولې زمونږ دژوند ګل مړاوی دی؟ ولسونه يو تر بله سره جنګيږي. په هر ځای کې اخ وډب راروان دی انسان انسان ته ليوه شوی دی ګڼ شمير انسانان په جنګونو کې تباه کيږي دسلګونو زرو انسانانو کاروبار تالاترغې کيږي، کلي ترکلي ورانيږي

زورور کمزري ښوی ترستوني تيروي ، شتمن غريبان لوټوي ، په حکومت کې ظلم دی په عدالت کې بې انصافي ده ، په دولت کې بدمعاشي او لوچکي ده په اقتدار کې غرور دی په ملګرتيا کې بې وفايي ده په امانت کې خيانت دی په اخلاقو کې رهبنتينولي نه ده پاتې په انسان باندې دانسان اعتماد نشته دمذهب په جامه کې بې مذهبي راروانه ده . دادم او لادونه په بې شميره ډلو ويشل شوي دي او هره ډله له بلې سره د وکه ، ظلم ، بې ايماني په هره کيدونې طريقه زيان اړول دثواب کارګڼي اخر ددې ټولو ګډو ډيو لامل څه شئ دی ؟ دالله په الوهيت کې چې هرپلو ګورو سراسر امن په نظر راځي ، په ستورو کې امن دی په هوا کې امن دی په اوبو کې امن دی په نباتاتو او ځارويو کې امن دی د ټولو مخلوقاتو انتظام په پوره امن او ارامۍ سره روان دی هيڅيري دفساد او بې نظمۍ ننبه نه موندلی کيږي مګر ولې دانسان ژوند له دغه نعمت نه بې برخې دی ؟ دايو مهم سوال دی چې خلک يې په حلولو کې له سختې پريشانۍ سره مخامخ دي خو زه غواړم چې په پوره ډاډ ينه دهغه ځواب ورکړم لنډ ځواب يې له ماسره دادی

انسان دواقعيت او حقيقت پرخلاف خپل ژوند ته سمون ورکړی دی ځکه نو کړاوونه ګالي ، ترهغې پورې چې بيا هماغه حقيقت سره اړخ ونه لګوي هيڅکله به ارامي ونه مومي .په داسې حال کې چې اورګاډی روان وي او تاسې دهغه دروازه دخپل کور دروازه وګڼئ او له پرانستلو سره سم بې کړاوه لکه څنګه چې دخپل کور په غولي کې قدم وهئ راووځئ نو ستاسې په دې ناسمه انګيرنه به نه داورګاډي دروازه ستاسې د کور دروازه شي او نه به هغه ميدان چې تاسې په کې پريوتي

یې ستاسې د کور غولی شي . په دې خیال به مو یو بڅری هم حقیقت بدل نشي .

کله چې د چټک سرعت په وخت کې تاسې داورګاډي له دروازې څخه د باندې درومئ نو د هغه کومه نتیجه چې په لاس درځي له هغې پخپله ښرګندیږي چې څه موانګیرله هغه مو غلطه انګیرلې وه که څه هم د پښو او سر له ماتیدورو سته یې تاسې هم ونه منئ . که چیرې کټ مټ په همدې توګه دا وانګیرئ چې د دې نړۍ ښبنتن نشته یا پخپله خپل ځان خدای وګڼئ یا له الله نه پرته دبل چا الوهیت ومنئ نو په دې ډول انګیرنه هیڅکله حقیقت نه بدلیږي . هماغه الله به معبود وي دهغه په دې لويه واکمنۍ کې تاسې مازې درعیت په توګه ژوند کوئ له ټولو اختیاراتو سره دهغه په ولکه کې یاست . البته دخپلې غلط فهمۍ په اساس چې تاسې د ژوند کومه لاره غوره کوئ نو دهغې خورابده سزا به پرځان تیروئ که څه هم د کړاؤنو له تیرولو وروسته موخپل همدغه غلط ژوندون پرخپل ځای یوازې تاسې سم ګڼلی وي

څه چې مو دمخه بیان کړي یو ځل بیاهم هغه در په زړه کړئ . دمخلوقاتو رب دچا په ګڼلو د مخلوقاتو ښبنتن نه دئ ، هغه دې ته اړنه دی چې تاسې دهغه الوهیت ومنئ نو بیا دې هغه معبودوي . که تاسې هغه ومنئ یا نه هغه پخپله سپیڅلی واکمن ذات دی دهغه الوهیت دهغه پخپل ځواک ټینګ ده هغه پخپله واجب الوجود او هم یې دانړۍ جوړه کړې ده . داځمکه ، لمر ، او سپوږمۍ او نور ټول کائنات دهغه دحکم تابع دي . په دې کائناتو کې چې څومره قوتونه کار کوي ټول دهماغه تر حکم لاندې دي . ټول هغه شیان چې تاسې د هغه په زور ژوندي یې دهماغه د قدرت په ولکه کې دي ، ستاسې خپل وجود دهماغه په واک کې دی ، داواقعیت په هیڅ ډول سره نشئ

بدلولی . که یې نه منئ بیا هم هغه یو واقعیت دی . که چیرې تاسې
ترې سترګې پټوئ نو بیا هم واقعیت دی که چېرې له هغه پرته بل
څوک واقعیت ګڼئ خو بیا هم واقعیت هماغه دی . په هیڅ ډول سره
واقعیت څوک بدلولی نه شي البته توپیر یې دادی که چېرې تاسې
ددې واقعیت په منلو هماغه حیثیت قبول کړئ چې له اصله یې د دې
واقعیت په دننه کې لرئ نوژوند به مو، سم او جوړ شي ارامي به
وموميئ ، ډاډ (اطمینان) به مو په برخه وي او که چېرې مود واقعیت
پرخلاف کومه لاره غوره کړه نو انجام به مو هماغه وي چې داورګاډي
دچټک سرعت په وخت کې دهغه له دروازې نه د خپل کور ددروازې
په خیال دباندې قدم ږدئ . تاسې به پخپله کړاؤ ووینئ ، پښه به مو
ماته شي ، سربه مو ټپي شي ، ربړ او زحمت به درورسیږي خو واقعیت
چې څرنګه ؤهغسې به وي .

## زمونږ اصلي حیثیت .

اوس به داپوښتنه وکړئ چې له دغه واقعیت سره سم زمونږ اصلي
حیثیت څه دی ؟ غواړم په څوټکو کې یې تاسې ته تشریح کړم . که
چیري مو یو مزدور په خپله تنخوا پاللی وي نو دا ووایاست چې دهغه
اصلي حیثیت څه دی ؟ یوازې همدومره خبره ده چې هغه ستاسې
خدمت ، دحکم اطاعت او ستاسې له خوښې سره سم کارکوي . او د
مزدورۍ چوکاټ نه دباندې نه وځي نو دمزدورکار له مزدورۍ پرته
نور څه کیدی شي ؟ که چیري تاسې صاحب منصب واوسئ او یو څوک
مو لاس لاندې (عسکر) وي نو دهغه دنده به څه وي ؟ بس همدومره
خبره ده چې هغه خپل کاروکړي او د صاحب منصبۍ هوی اوهوس
ورسره نه وي . که چېرې تاسې د څه جایداد ښتنان یې نو په دغه

جایداد کې به ستاسې غوښتنه څهٔ وي ؟ صرف دومره خبره ده چې په هغه کې دې ستاسې په خوښه کار کیږي ، هرڅه چې تاسې غواړئ په هماغه شان سره دې وشي اوستاسې درضاء په خلاف دې یوه پاڼه هم بې ځایه نشي .

اوس نو که پرتاسې باندې کومه واکمنې مسلطه وي او ټول ځواکونه دهغه په لاس وي نو په دغسې واکمنۍ کې تاسې دڅهٔ شي جوګه کیدی شئ ؟ بیا هم بس دومره خبره ده چې هغه ته په سمه توګه خپل ځان رعیت کړئ او دپاچایې دقانون تابعیت نه پښه اخوا کښینږدئ . که تاسې دیوواکمن په واکمنۍ کې استوګن یئ او پخپله دهغې واکمنۍ دعوه وکړئ یاد کومې بلې واکمنۍ په منلو د هغې پرحکم کاروکړئ نو تاسې به باغیان یی او له باغي سره چې څه چلند کیږي هغه تاسې ته پخپله څرګند دی .

په دغو مثالونو سره تاسې ډیر ښه پوهیدلی شئ چې دالله په دې واکمنۍ کې ستاسې اصلي حیثیت څه دی ؟ تاسې هغه جلت عظمته جوړ کړي یی . په قدرتي توګه ستاسې یوکار دهغه له رضاءڅخه پرته نه ترسره کیږي . هغه ستاسې پالنه کوي او دهماغه له خزانو څخه تنخواه اخلی . ستاسې حیثیت تر دې اخواچې دهغه مزدوران یی بل څه نه دی . ستاسې او د ټولې نړۍواکمن اود امرځښتن همغه دی . دهغه په امریت کې ستاسې حیثیت تر دې پرته چې دهغه تر لاس لاندې یې نور څه نشي کیدی .

دغه ځمکه او ټول اسمانونه د هغه جایداد دي . دهغه په جایداد کې دهماغه رضایت چلیږي او چلیدل غواړي . تاسې ته دلته دخپلې رضاء د ترسره کولو هیڅ حق نشته . که تاسې دخپلې رضاء دترسره کولو لپاره هلې ځلې کوئ نو مخ به مو تور شي

په دې واکمنۍ کې دهغه پاچا هي د هغه په خپل زور سره ټينګه ده د ځمکې او اسمان ټولې اداري دهغه په لاس کې دي تاسې کولی شئ چې په دې باندې خوښ او يا ناخوښ اوسئ. په هرحال تاسې دهغه رعيت يې. تاسې هم اوهر هغه انسان که هغه وړوکی وي که لوی پرته له دې چې دهغه رعيت يې بل کوم حيثيت نلرئ. په دې واکمنۍ کې دهماغه قانون قانون دی او د هغه حکم، حکم دی. په رعيت کې هيچاته د دې دعوی چې زه واکمن، اعلی حضرت يا ديکتاتور او خپلواک يم، حق نشته، نه کوم يو شخص ياقانون جوړؤنکې جرګې يااسمبلې يا قونسل ته دااختيار شته چې په دغې واکمنۍ کې دالله (ج) پرځای دوی پخپله خپل قانون جوړ کړي او دالله(ج) رعيت ته ووايې چې زمونږ ددغه قانون پيروي وکړئ. نه کوم انساني حکومت ته داحق شته چې دالهي حکم نه په بې پروايۍ سره خپل حکم وچلوي او دهغه بندګانو ته ووايې چې زمونږ ددغه حکم اطاعت وکړئ. نه کوم انسان او اد انسانانو ډلې ته جايز دي چې دحقيقي واکوال پرځای د دروغژنې پاچاهۍ له مدعيانو څخه دکوم يورعيت ته غاړه کښېږدي، دحقيقي پاچاقانون پريږدي او د دروغژنو قانون پوهانو قانون ومني او له حقيقي حکمران څخه په مخ اړولو د دروغژنو حکومتونو د حکم په منلو پيل وکړئ.

دغه ټولې دسرغړونې شکلونه دي دخپل ځان لپاره دپاچاهۍ داختيار اتو دعوه کول يا د يو داسې مدعي دعوه قبلول دادواړه تحريکونه درعيت لپاره دسرغړونې حکم لري او دواړته يې سزا ورکول يقيني دي که ژر ترژره وي يا يو څه موده وروسته.

ستاسې او د هر انسان دتندي ويښته د الله په واک کې دي، کله چې وغواړي راوباسي يې دځمکې او اسمان له دغې واکمنۍ څخه د

تیبنستې وس پـه هیڅـا کـې نشـتـه . تاسـې پـه تیبنته لـه هغې نه هیڅیرې پـناه نشـي اخیسـتلی لـه خاورې سره پـه یوځای کیدو کـه سـتاسـې یـوه یـوه ذره هـم وشـنـل شـي ، پـه اور کـې پـه سـوزیدو سره کـه مـو ایره پـه هـوا کـې خپـره شـي ، پـه بهاندو او بوکـې کـه د کبانو خوراک شـئ یا د سـمندر پـه اوبـو کـې مـنحل شـئ پـه هرځای کـې چـې یاسـت اللّه (ج) بـه مـو پـه خپله ولکـه کـې راولـي . هـوا د هغـه خدمـتگاره ده ، ځمکـه د هغـه بنده ده . او بـه او کبان ټـول د هغـه د حکم تابع دي . پـه یوې نغوتي (اشارې) بـه لـه هرې خـوا نـیـول شـوي راشـئ . او بـیا بـه مـو هغـه د یـوه یـوه پـه رابللـو سـره وپوښتي چـې زمـا پـه رعـیت کیدو سره دواکمنـۍ د دعـوې حق تاسـې تـه لـه کـوم ځایـه دررسیدلی ؤ ؟ زمـا پـه ملک کـې مـو د خپل حکم د نافذولـو اختیارات لـه کـوم ځایـه ترلاسـه کـړي ؤ ؟ تاسـې څـوک وئ چـې زمـا پـه واکمنـۍ کـې مـو خپـل قانون جاري کـړی ؤ ؟ زمـا د بندگـۍ پـه منلـو تاسـې څرنگه د نـورو بندگـي کـولـو تـه رضـا شـوي وئ ؟ زمـا مزدور کیدل او د نـورو حکم منل ، لـه مـا څخه تنخوا اخیستل او نور واکوال او رازق گڼل زمـا مـرئیتوب کـول او د نـورو مربـي کـیدل ، زمـا پـه واکمنـۍ کـې اوسیدل او د نـورو قانون ، قانون گڼل او د نـورو د فرامینو اطاعت کـول څـنگه داسـر غـړونه تاسـې تـه رواگـڼل شـوي وه ؟ داو وایاسـت چـې پـه تاسـې کـې لـه څـا سـره د دې الـزام ځـواب شـتـه ؟ څرنگه وکـیـل صـاحـب بـه هلته پـه خپـل قانوني چـل ول سره سـتاسـې د خلاصون لار پیدا کـړي ؟

او تاسـې بـه څـه ډول سپارښـتنې تـه اسـره ولـرئ چـې هغـه مـو د دغـې سـرغړونې د جرم د سزاد ویرې نه وژغوري ؟

## د ظلم لامل (وجه)

ښاغليو: دلته يوازې د همدې حقيقت پوښتنه نه ده بلکې داپوښتنه هم ده چې ايا دالله(ج) په دغه الوهيت کې انسان دواکمنۍ ياقانون جوړونې يا حکمرانۍ اهل کيدی شي ؟ لکه څنګه چې همدااوس وويل شول چې ديو معمولي ماشين اړوند هم په دې پوهيږئ که چيري يو بې تجربې سړی چې په ماشين چلولو نه پوهيږي هغه وچلوي نو وران به يې کړي . لږ څه ديو ناخبره سړي موټرچلول وګورئ همدا اوس به در څرګنده شي چې دهغه دحماقت انجام به څه وي ؟

اوس لږ څه پخپله فکر وکړئ اود اوسپنې يو ماشين چې له پوره پوهې پرته نشي استعماليدی نو انسان چې نفسيات يې خورا ډير مغلق دي . دژوندانه معاملې يې بې شميره اړخونه لري او په هر اړخ کې يې لکونه پيچلتياوي دي ايا هغه خلک داماشين چلولی شي چې د نوروپيژندنه او پرې پوهيدنه خو لاپريږده چې پخپله هم خپل ځان په ښه توګه نه پيژني او نه پرې پوهيږي . دغه رازيو ناپوه چې کله قانون جوړ کړي او دغسې ناپوه چې دانساني ژوندانه د ډريورۍ لپاره چمتو وي نو ايا دهغه انجام به ديو نابلد سړي دموټر چلونې له انجام سره څه ناڅه توپير ولري ؟ همدالامل دی چې په کوم ځای کې دالهي قانون پرځای دبشر لاسي قانون منل کيږي او چيرته چې دالله د اطاعت نه په بې باکۍ سره انسان سرغړونه کوي او نور انسانان بيا دهغه حکم مني هلته هيڅکله هم امن نه شي راتلی . هيچرې هم انسان ته سوکالي نه وريه برخه کيږي او هيچرې هم په بشري ژوند کې سمه او بشپړه ارامي نه وي . وژل او وينې توبول په کې وي . ظلم او بې انصافي وي ، شوکې

ډاکې لوېږي ، انسان دانسان وېنې زبيښي اخلاق په کې نه وي روغتياوې له منځه ځي ، هغه ځواکونه چې انسان ته الله ورکړي ؤ انسان ته د ګټې پر ځای دهغه په هلاکت او بربادۍ کې لګيږي دغه بشپړ دوزخ چې انسان په خپلو لاسونو د ځان لپاره جوړ کړی دی دهغه لامل تر دې اخوا بل څه نه دی چې هغه د ماشومانو په شان په جذبه کې راتلو سره دماشين چلولو کوښښ کړی وي چې له ټولو پرزو ځينې يې پوره خبر نه ؤ . چا چې هغه ماشين جوړ کړی دی هماغه يې له رازونو خبر دی هماغه يې په فطرت باندې پوهه لري هماغه په بشپړه توګه پرې پوهيږي چې څرنګه صحيح چليدی شي . که انسان له خپل حماقت نه راوګرزول شي او دخپل جهالت په منلو سره دهغه قانون پابندي وکړي چې ماشين جوړونکی ورته تعين کړی دی نوبيابه خبره سمه شي که نه نو ددې مصيبتونو حل امکان نه لري .

## دا بې عدالتي دڅه لپاره ؟

که لږ نور هم په ژور نظر وګورئ نو ستاسې له جهالت سره سره دخپل ژوندانه دو يچاړتيا يو بل لامل به مو هم په نظر درشي . پدې خبرې د پوهيدلو لږ غوندې عقل هم کافي ده داچې انسان د کوم شخص اويا يوې قبيلې يا يو قام نوم نه دی په هرحال په ټوله نړۍ کې انسان انسان دی ټول انسانان دژوند کولو حق لري . ټول ددې څخه برخمن دي چې دهغوی اړتيا وې دې پوره وي ټول دامن انصاف عزت او شرافت مستحق دي انساني سوکالي که چيري دکوم شي نوم دی نو هغه ديو سړي يوې کورنۍ يا قام سوکالي نه بلکې د ټولو سوکالي ده . که يو تن شتمن وي او لس بې وزلې نودانشئ ويلی چې انسان سوکاله دی فلاح که چېرې کوم شي ته وايې نو هغه د ټولو انسانانو فلاح ده نه داچې هغه د کومې پاټکي (طبقې) يا يو قام لپاره

## فلاح څنګه ترلاسه کیدی شي؟

که چیرې داخبره صحیح ګڼو نو بیا وروسته څیرل شي چي انساني فلاح او خوشحالي څنګه ترلاسه کیدی شي؟ له ماسره بې له دې بل څه تجویز نشته چي د انساني ژوند لپاره دې هغه قانون جوړ شي چي دهغه په نظر ټول انسانان یوراز وي. د ټولو حقوق په دامې انصاف سره وټاکي چي نه په کې خپل ذاتي غرض ولري او نه د کومې کورنۍ، پاټکي یاد ملک او قام داغراضو له امله هغوی ته ځانګړې پاملرنه وي. سراسر ټول دهغه چاحکم ومني چي په حکم ورکولو کې نه دخپل جهالت له امله غلطي وکړي، نه د خپلې غوښتنې پراساس دحکمرانۍ اختیاراتو نه ناجایزه ګټه واخلي، او نه دیو دښمن اود بل دوست، دیو طرفدار او دبل مخالف یوې خوا مایل او بلې خوا نه منحرف وي او یوازې په همدې صورت کې عدالت ټینګیدلی شي.

په همدې توګه ټولوانسانانو، ټولو قامونو، ټولو پاټکیو(طبقو) او ټولو ډلو ته دهغوی روا حقوق ورسولی شي. یوازې په همدې یو صورت کې له هغوی نه ظلم لرې کیدی شي. که داخبره چیرې سمه هم ده نو بیا له تاسې څخه داپوښتنه کوم چي ایا په نړۍ کې د اسې یو بې رخې، داسې ناپیلی داسې بې غرضه او له دومره انساني کمزوریو نه لوړ انسان پیدا کیدی شي؟بنایي له تاسې څخه هیڅوک زما د دې سوال په ثبوتولو کې جرائت ونکړي. داشان یوازې د الله(ج) دی بل هیچاته داشان نشته. که انسان هرڅومره دلوی زړه او زغم څښتن وي په هر حال هغه یو څه ذاتي دلچسپي لري چا سره یې زیات تعلق دی. او چا سره کم، چاسره یې مینه ده، او چاسره نه. له دغو کمزوریو نه هیڅ یو انسان نشي ګوښه کیدی. همدالامل دی چي چیرته دالهي

قانون پر ځای دبشر قانون منل کیږي . او دالله(ج) دحکم پرځای دانسانانو دحکم اطاعت کیږي ، هلته ارو مرو یو نه یو ډول ظلم او بې انصافي موجوده ده . هغه شاهي کورنیو ته وګورئ چې هغوی دخپل پیاوړي ځواک په زور امتیازي حیثیت ترلاسه کړی دی . هغه عزت ، هغه سازو سامان ، هغه ګټه وټه ، هغه حقوق او اختیارات هغوی دځان لپاره خاص ګرزولي دي چې د نورو لپاره نشته . هغوی له قانون نه خورا پورته دي . دهغوی پرخلاف هیڅ یوه دعوه نشي کیدی . څه چې کوي دهغوی په مقابل کې باید غږ پورته نکړی شي هیڅ یوه محکمه دهغه په نوم حکم لیک (حکمنامه) نشي ورلیږلی .

نړیوال یې ګوري چې هغوی غلطي کوي خو بیا هم داویل کیږي چې پاچاله غلطی نه سپیڅلی دی او منونکی یې مني د نړی خلک یې ویني چې هغه یو معمولي انسان دی لکه څنګه چې نور انسانان دي . خو هغه له ځانه معبود جوړ کړی ، او چت ناست وي او خلک دهغه په وړاندې لاس په نامه دریږي ، سرټیټوي ، ویریږي په ریږدیدلي حالت ولاړوي ګواکي دهغوی روزي ، دهغوی ژوند ، دهغوی مرګ داټول دهغه په لاس کې دی . ددې رعیت شتمني په سمه او ناسمه طریقه ترې اخلي او پرخپلو ماڼیو ، خپلو سورلیو ، خپلو عیشونو او ارامیو او خپلو ساعت تیریو یې په بې باکی سره مصرفوي دهغوی سپیان هغه ډوډی مومې چې ګټندوی رعیت ته یې وریه برخه نه وي ایا دا انصاف دی ؟ ایا داطریقه دکوم عادل لخوا ټاکل کیدی شي چې په هغې کې د ټولو انسانانو حقوق یو شان وي ؟ ایا داخلک دانسانانو لپاره کوم منصفانه قانون جوړولی شي . دغو برهمنانو او پیرانو ته وګورئ . دغو نوابانو او رئیسانو ته وګورئ دغو ځمکوالو ته وګورئ . دغو پانګوالو او سوداګرو ته وګورئ . داټولې پاټکی خپل

ځانونه لـه عامـو انسـانانو نه ډیر لوړ ګڼي . ددوی په زور او اغیزه چې ځومره قـوانـین پـه نړۍ کـې جوړ شـوي دي دوی تـه په کې داسې حقوق ورکـړل شـو ي چې نورو انسانانو ته نه دي ورکړل شوي . دوی سپیڅلي دي او نـور نـه ، دوی شریف دي او نور رذیل ، دوی اعلی دي نور ادنی دوی دلـوټ کولـو لـپاره دي او نـور دلوټیدلو لـپاره ، دوی دنفسـي غوښـتنو لـپاره دخلکـو ځان ، مال ، پت ، عزت او نور هرڅه قربانیږي . ایـا کیدی شي چې داقوانین دې کوم منصف جوړ کړي وي ؟ ایاپه هغو کـې پـه څـرګند ډول خو د غرضـي او طرفداري نه لـیدل کیـږي ؟ ایا په هغـې ټولـنه کـې منصفانه قوانـیـن وضـع شـوي چې پرخلکو باندې نافذ شوي دي ؟

دغـو حاکمـو قامونـو تـه وګـورئ . دوی دخپـل ځـواک پـه زور نـور قامـونـه خـپـل مـریان جوړکـړي دي . د دوی کـوم ډول قانـون او کـومه قاعـده ده چـې پـه هغـې کـې خـو د غرضـي نشـتـه ؟ دوی خـپـل ځانـونه انسـانان ګڼي . د دوی پـه وړانـدې کمزوري خلک یا خوانسانان نه دي او کـه وي نـو پـه ټیـټه پـوړۍ کـې واقـع دي . دوی پـه هر لحاظ له نورو نه خپـل ځـان لوړ ګڼي او د خپلو شخصي غوښتنو په خاطر د نورو ګټې تر پښـو لاندې کول خپـل حق بولي . د دوی پـه زور او اغیزه چې په نړۍ کې څومـره قوانـیـن او اصـول جوړ شـوي دي پـه هغـو ټولو کې همدغه رنګ پروت دی

داڅو مثـالونه مـې محضـې د اشـارې پـه توګه ورکړي دي دزیات تفصیـل لـپاره یـې دلـته موقـع نشـتـه زه غـواړم چـې صـرف دغـه خبره ستـاسـې پـه ذهـن کـې کښـینـوم چې په نړۍ کې چې هر چیرې هم انسان قانـون جوړ کړی دی ارو مرو هلته بې انصافي وي . یو شمیر انسانانو تـه دهغـوی لـه روا حقوقـو نـه زیـات ورکـړ شـوي دي او د ځینـو نـورو

حقوق نه يوازې داچې تر پښو لاندې شوي بلکې دانسانيت له درجې نه دهغوی په راغورځولو کې يې هم تامل نه دی کړی . له دې امله دانسان کمزوري داده چې کله هغه د يوې معاملې د پريکړې لپاره کښيني د هغو پر زړه او دماغ باندې دخپل ځان يا دخپلې کورنۍ ، يا دخپل نسل ، يادخپلې پاټکۍ ، يا دخپل قام دګټو خيال مسلط وي او د نورو دحقوقو او ګټو د ساتنې لپاره له هغوی سره هغه ځوا خوږي په نظر کې نه وي لکه څنګه چې د خپل ځان لپاره يې په نظر کې نيولې وي .

اوس نو ووايې ايا ددې بې انصافۍ د علاج لپاره تر دې اخوا بل څه کيدی شي چې انساني قوانين دې سيند ته وغورځول شي او دالله (ج) قانون ته دې غاړه کيږدو ځکه چې دهغه په نظر ديو انسان او بل تر منځ هيڅ توپير نشته . که توپير شته نو هغه دانسان داخلاقو ، اعمالو او د هغه د اوصافو له مخې دی نه دتوکم (نسل) پاټکۍ ، قوميت يارنګ په اساس .

## امن څرنګه ټينګيدی شي ؟

ښاغليو : په دې معامله کې يو بل اړخ هم شته چې هغه له نظره نشم غورځولی . تاسې پوهيږئ چې يوازې دمسئوليت په احساس سره انسان کنترو ليدی شي . که چيرې يوڅوک په دې يقين او باور ولري چې هغه څه غواړي کولی يې شي او څوک پوښتونکې نشته او نه له هغه اوچت يو داسې ځواک شته چې هغه ته سزا ورکړي نو تاسې پوه شئ چې له هغه نه به بې مهاره اوښ جوړ شي . داخبره لکه څنګه چې ديو شخص په معامله کې سمه ده په دې توګه ديو کهول ، يوقام او د نړۍ د ټولو انسانانو په معامله کې هم سمه ده . يو کهول ، ته چې کله

محسوسیږي چې څوک تري پوښتنه نشي کولی نو له خپلې ولکې اخوا پښې غځوي . یو ې پاتکې سره هم چې کله د مسئولیت او ځواب ورکولو څخه ویره نه وي نو پر نورو باندې له ظلم کولو ځیني ډډه نه کوي . یو قام یا یو واکمن هم چې کله خپل ځان دومره ځواکمن وګوري چې دخپل زور زیاتي د ناوړې نیتجې ویره ورسره نه وي نو د ځنګله دلیوانو په څیر د کمزورو میږو په داړلو پیل کوي . لامل یې دادی چې تر څو پورې انسان له ځان نه لوړ قدرت ته غاړه کښېښېږدي او دا یقین ورسره نه وي چې له مانه اوچت یو داسې څوک شته چې هغه موږ ته دخپلو اعمالو غبرګون راکوي او له هغه سره دومره زور او طاقت شته چې سزا راکولی شي تر هغه پورې ممکنه نه ده چې د ظلم دروازه وتړله شي او رښتیني امنیت قایم شي .

اوس نو راته ووایاست چې بې له الله(ج)نه داسې ځواک له بل چاسره شته ؟ په انسانانو کې څو هیڅوک دارنګه نشته ځکه چې که کوم انسان یا کومه انساني ډله ځان ته داحیثیت ورکوي نو د بې مهاره اوښ کیدو امکان یې شته . پخپله له هغه سره دافکر شته چې د ټولو فرعونانو فرعون شي او له هغه ځیني داخطره هم شته چې له خود غرضۍ او پیپلتوب (جانبداري) نه په کار اخیستو سره به ځیني انسانان راټیټ او ځیني لوړ کړي .

اروپا ددې مسئلې دحل لپاره دملګرو ملتونو جرګه جوړه کړې خو ډیر ژر د سپین پوستو قامونو جرګه پاتې شوه او تر اوسه پورې شته او د یو څو ځواکمنو واکمنیو په لاس د لوبو اله شوه او کمزورو قامونو سره یې بې انصافي شروع کړه .

اوس هم دملګرو ملتونو همداغه حالت دی د سترو قامونو په مقابل کې یاد هغوی د غوښتنې پر خلاف وړو قامونو سره هیڅ ډول انصاف نه کیږي.

له دغې تجربې راوروسته په دې معامله کې هیڅ شک نشته چې پخپله دانسانانو په منځ کې ددغسې ځواک راپیدا کیدل ناممکن دي چې د هغه د مؤاخذې ویره له فرد فرد یو یو شخص نه یې راواخله د نړۍ قامونو او واکمنیو پورې ټول د هغه په کابو کې وي. داسې ځواک ناچاره له انساني دایرې نه اوچت دی او په کار هم دی چې ترې اوچت وي. نو هغه یوازې دلوی ذات ځواک کیدی شي.

مونږ که چیرې دځان ښیګړه غواړو نو تردې اخوا بله چاره مونشته چې پرالله ایمان راوړو دهغه د حکومت په وړاندې خپل ځان دفرمانبردار رعیت په توګه وسپارو او په نړۍ کې داسې ژوند تیر کړو چې دایقین راسره وي چې هغه زمونږ په پټو او ښکاره کارونو باندې خبر دی او یوه ورځ به مونږ ته دهغه په محکمه کې د خپل بشپړ ژوند دکار نامو حساب راکول کیږي. د شریف او امن نه ډک انسان دجوړښت لپاره همدا یوه لارده او بس.

## یوه اشتباه

مخکې له دې چې خپله وینا پای ته ورسوم دیوې خبرې څرګندونه ضروري بولم چې غالباً به ستاسې په زړونو کې به وي او پیدا کیږي به. تاسې به وایاست چې د الله عزوجل حکومت دومره زورور دی دخاورې یوې ذرې نه یې راواخله ان سپوږمۍ او ستورو پورې هرشی د هغه په ولکه کې دي نو کله چې انسان دهغه په حکومت کې مازې د رعیت حیثیت لري اخرڅرنګه کیدی شي چې انسان دهغه دحکومت پرخلاف سر غړونه وکړي او د خپلې پادشاهۍ په اعلانو لوسره دهغه پر رعیت باندې قانون وچلوي ؟ ولې الله جل جلاله دهغه مخه نه نیسي ولې سزا نه ورکوي ؟

ددې سوال په ځواب کې به تاسې ته یو ډیر ښه مثال وړاندې کړم. فرض کړئ چې یو واکمن (پاچا) دخپل هیواد ولایت ته یو څوک دوالي په توګه لیږي. واک دهغه واکمن دی رعیت هم د هماغه دی. او رګاډي، تیلیفون، تار، فوځ او نور ټول امکانات هم د هماغه په لاس دي. واکمني (پاچاهي) یې له څلورو خواؤ پر هغه ولایت باندې داسې مسلطه ده چې دهغه وړوکي ولایت والي دهغې په مقابل کې بیخي کمزوری دی. که چیرې واکمن وغواړي هغه په پوره توګه اړ ایستلی شي چې دده له حکم پرته دیو ویښته په اندازه خوله ونشي خوځولی خو هغه غواړي چې د دې والي د عقل، ظرفیت او لیاقت ازموینه واخلي له دې امله پرهغه باندې خپله مؤاخذه دومره ځنډوي چې هغه یې په خپل ځان محسوسه نکړي.

اوس نو که هغه والي عقلمن، شکرګزار دنده پیژندونکی او وفادار وي نو سره له دې اوږدې مؤاخذې به یې خپل ځان رعیت او

خدمتګار ګڼلی وي دواکمن په ټاټوبې کې به دهغه له قانون سره سم حکومت کوي او کوم اختیارات چې ده ته واکمن ورکړي دي دهغه له خوښې سره سم به یې په کار اچوي . په دې توګه به د هغه له دې وفادارانه کړنلارې نه د هغه اهلیت ثابتیږي او واکمن به هماغه تر ټولو زیات دښې درجې خاوندمومي او لازیاته ترقي به ورکړي .

خو فرض کړئ که چیري یو والي ناپوه ، ناشکره کم ظرف او شریر وي اود رعیت هغه وګړي چې په دې ولایت کې اوسیږي جاهل ویرېدونکي او ناپوه وي . او دواکمنۍ د مؤاخذې په ځنډیدلو سره د سرغړونې لپاره چمتو کیږي . دهغه په دماغ کې دخپلواکۍ هوس ګرزي . هغه پخپله خپل ځان د هغه ولایت واکمن (پاچا) ګڼي . په خپلسرۍ سره په حکومت کولو پیل کوي او د رعیت جاهل خلک مازې ددغه حال په لیدو سره دهغه خپلواک حکومت ته غاړه ږدي چې معاش هغه ورکوي . پولیس له هغه سره دي فوځي او ملکې ادارې ، دبنداتکړۍ او د سولۍ تختې دهغه په واک او اختیار کې دي او هماغه زموږ د نیکمرغه کولو او بدمرغۍ توان لري .

واکمن دغسې ډانده رعیت اود باغي والي کړنلارې ته ګوري هغه کولی شي چې ژر ترژره یې راونیسي او داسې سزا ورکړي چې عقل یې سرته راشي خو هغه ددې ولایت د والي او رعیت دواړو پوره ازمویل غواړي له دې امله یې په پوره زغم او تحمل سره ځنډوي دا ددې لپاره چې ټول ناپوهان چې د هغوی په منځ کې دي په پوره توګه ځرګند شي . له هغه سره دومره ستر طاقت دی چې داویره ورسره نشته چې یو وخت به هغه زور پیداکړي او دده تخت به په بل مخ واړوي . هغه سره داند یښنه هم نشته چې دغه باغي او ناشکره وګړي به د هغه له مؤاخذې نه وتښتیدلی شي . ځکه نو له هغه سره ددې خبرې

دسمدستي پريكړې څه اړتيا نشته هغه يې تر كلونو كلونو پورې ځنډوي ان تردې چې په څرګندونه كې يې هيڅ نيمګړتيا پاتې نه وي نو بيا يوه ورځ هغه ربړوي او په هيڅ يوه تدبير سره په دې ترڅ كې له دې عذابه نشي ګوښه كيدى .

اوس موږ هريوه ته په كار دي چې خپل ځان داصلي واكوال شكر كوونكى او يارعيت ګرزيدل غواړو او كه ناشكري كوو ؟ ما په دې برخه كې داپريكړه كړې ده چې شكر كونكى به يم او له هر هغه چانه به باغي يم چې هغه له الله عزوجل څخه باغي دى . تاسې په خپله پريكړه كې اختيار لرئ چې دالار غوره كوئ كه هغه ؟ يوې خواته هغه زيانونه او ګټې دي چې له خدايه دغه باغي مزدوريې در اړولى شي ، بلې خواته هغه زيانونه او ګټې دي چې پخپله الله جلت عظمته يې را اړولى شي ، په دې دواړو كې چې هريو تاسو انتخابوئ هغه ټاكلى شئ .

# اسلام
# او
# جاهليت

دمولنا رحمةالله عليه دغه وينا په ۱۹۴۱ ميلادي کال دفبروري دمياشتې په درويشتمه نيټه دپيښور پوهنتون داسلامي علوموډ ښانګې په بلنه په يوه لويه غونډه کې اورول شوېده

*ترحمد اوثنا وروسته:*

دژوند په ډ ګرچې انسان له کومو شيانو سره مخا مخ کيږي ترهغې پورې نه شي کولی له هغوی سره تعامل وکړي ترڅو يې دهغوی په حقيقت ماهيت او له هغوی سره داړيکو په هکله کومه رايه ټينګه کړې و نه اوسي هغه په طبيعي ډول مجبور او مکلف دی ترڅو خپله ځانګړې رايه دهغوی په هکله وړاندې کړی برابره خبره ده چې هغه رايه صحيح وي او که ناسمه هغه نه شي کولی نتيجې ته له رسيدلو مخکې خپل دريز غوره اوبيا هغه لاره انتخاب کړي چې ګام پر ګام بې تعقيبول پر هغه لازم وي

ورځنی تجربې او واقعيتونه همدغه حقيقت څرګندوي چې څه وخت له يو چاسره مخامخ کيږئ زړه مو غواړي ترڅو پوه شئ داشخص څوک دی ؟ په ټولنه کې دکومې مرتبې اومقام څښتن دی او له ده سره يې څه اړيکه ده ؟دغوپوښتنو ته له ځوابه پرته هيڅکله نه شو کولی له دغه شخص سره دتعامل په هکله پريکړه وکړئ . البته دپورتنيو معلوماتو دنشتوالي په صورت کې مجبور ياست چې له تخمين او اټکل څخه کار واخلئ .دمسئلې دزياتې څرګندونې لپاره له هغه خوراک نه چې تاسو بې په مصرف رسوئ يومثال راوړو

هغه څه چې تاسې يې دخپل ځان لپاره دخوړو په مقصد غوره کوئ له پوهې او اټکل ځينې وروسته مو معلومه کړې ده چې دغه خواړه ستاسې اړتيا وې بشپړوي او خوراکې توکي يې ستاسو دژوند دپايښت لپاره لازم دي په همدې توګه ډير نور شيان دي چې لرې بې غورځوئ او يا ورڅخه کټه اخلئ او په ساتنه يې لاس پورې کوئ دغه

بیلابیل نظریات او عملي کړنلارې د هغوشیانو دحقیقت او ماهیت په هکله داختلاف څخه سرچینه نیسي . له دې نه وروسته هغه رایه چې ددې شیانو په هکله یې غوره کوئ ، صحت او فساد یې ستاسې ترتګلارې پورې اړه لري .مطلب دادی چې ایا تاسو په خپله رایه کې په علم او پوهې اتکا کړې ده او که په تخمین ، وهم، او یوازې په حسي لیدنې کتنې اوداسې نورو

دمثال په توګه اور ترکتنې او غور لاندې نیسو هرکله چې دیوماشوم سترګې پرې ونښلي دخپلو حواسو په ګواهی سره ګومان کوي چې داد لوبو ډیره ښایسته وسیله ده له همدې کبله خپل لاس ورغځوي ترڅو یې راونیسي او لوبه پرې وکړي .په همدې توګه یوبل شخص اور وینې دخپل وهم او اټکل پراساس پریکړه کوي چې په هغه کې دالوهیت او خدایې څه نښې نښانې موجودې دي او یاداچې اور دالوهیت دمظاهرو له جملې څخه دی . همدغې رایې دده په فکر او عمل اغیزه کړې ده له خپل ځان سره پریکړه کوي لازمه یې بولې چې داور په وړاندې دعاجزۍ سر ښکته کړي .

دریم سړی اور وینې دده لیدل اوس جلاحیثیت لري . هغه داور په حقیقت کې سوچ او په ماهیت کې یې بشپړ فکر کوي ترڅو یې ښه وپېژني تر دې را وروسته یې په صفاتو کې په څېړنې لاس پورې کوي او دې نتیجې ته رسیږي چې اور دپخلي ، سوځولو او ګرمولو لپاره پکاریږي لازمه ده چې دده او اور ترمینځ اړیکه دې دبادار او خدمتګار په توګه وي .په همدې اساس دغه سړی له اورڅخه نه دلوبو داسبابو په توګه کار اخلي او نه یې خداې بولي بلکې د پخلي ، سوځولو او تودولو لپاره ورڅخه استفاده کوي له همدې امله دهغه ماشوم او اور پالونکي کړنلاره جاهلي ده داځکه چې په تجربې سره ثابته شوه چې دماشوم نظریه باطله ده په همدې ډول د اور پالونکي رایه چې اور دالوهیت دمظاهرو څخه بولي هم په کوم علمي تحقیق ولاړه نه.بلکې پر، وهم او اټکل ابښودل شوې ده البته دریمه تګلاره چې اور دګټې اخیستلو وسیله بولي په یو علمي اصل ولاړه ده .

## دژوند بنسټيزې پوښتنې او دحل لارې چارې يې

دپورتنۍ سريزې په ذهن کې کښېنولو سره مسئلې ته نوره پراختيا ورکوؤ او له جزئياتو نه دکلياتو پرلورې ور درومو .هرکله چې انسان په نړۍ کې خپل ځان ويني ګوري چې دجسم او ځان ښېښتن او بيلا بيل ځواکونه لري له پاسه هسک اسمان او په خپل مخکې هواره غوړېدلې ځمکه ويني او په هغې کې ډيرېې شميره اريانونکي شيان او په خپل ځان کې له نورو شيانو څخه دګټې اخيستنې ځواک ګوري په همدې ډول دده په چاپېريال کې انسان ، څاروي ،نباتات ، جامدات ، مايعات او نور شيان دي چې دده ژوندورپورې تړلي دی اوس ستاسو په وړاندې داخبره دغور وړ ده چې ددغو شيانو په وړاندې څنګه چلند غوره کوئ

* مخکې له دې چې دخپل ځان په باره کې يوه غوڅه پريکړه وکړئ بايد خپل ماهيت اوحقيقت وپېژنئ چې زه څوک او څه شی يم؟ ايا چاته مسؤل يم او که نه ؟
* خپلواک يم او که دبل چا تر سرپرستۍ لاندې يم که چېرته تابع واوسم چاته غاړه کښېږدم ؟
* ايا په خپل ژوند کې څه هدف لرم او که نه ؟ که هدف ولرم نو هغه کوم دی ؟
* ايا کولی شم دخپلو ځواکونو داستعمال لپاره کوم قانون وړاندې کړم

* دده جسماني ځواکونه دده ملکیت دی او که دبل چا ورکړه ده ؟
* ایا له ده څخه څوک پوښتنه کولی شي او که نه ؟
* دخپلو جسماني ځواکونو داستعمال لپاره به پخپله قانون جوړوي او که بل څوک به یې ورته ټاکي ؟
* ایا کولی شي دخپل چاپېریال داشیاؤ په اړه کومه تګلاره غوره کړي په داسې حال کې چې ورته معلومه شوې نه وي چې ایاپخپله ددغو شیانو څښتن دی او که بل څوک ؟
* پر دغو شیانو دده واک محدود دی او که غیر محدود ؟
* که چېرې محدود وي نو دحدودو ټاکونکی یې څوک دی ؟
* ایا داسې څوک شته چې له ده سره محاسبه وکړي ؟
* ایا له خپلو ځواکونو څخه دکار اخېستنې قانون به پخپله غوره کوي او که به یې بل څوک ورته ټاکي ؟
* ایا هغه کولی شي دهغو شیانو په باره کې چې دده په چاپېریال کې پراته دي کومه عملي کړنلاره وټاکي مخکې له دې نه چې دې نتیجې ته ورسیږي چې ایا هغه ددغو شیانو څښتن دی او که دبل چا په ملکیت کې دي .
* مخکې له دې نه چې دانسانیت په هکله خپل نظر څرګند کړې او په حقیقت او ماهیت یې پوه شي ایا کولی شي دبشري نوعې دتنظیم لپاره تشکیلات او قوانین وضع کړي چې خلک دهغې پر اساس یو له بل سره معامله وکړي ؟
* دبیلا بیلو وګړو ترمینځ دامتیاز عناصر څه شی دي ؟
* د دوستۍ او دښمنۍ دیو والي او بیلتون بنسټونه کوم دي .

هغه څه چې پورته ذکر شول له غور او فکر نه پرته په بشپړ تاکید سره ویلی شو چې دپورتنیو چارو په اړه د رایې ورکولو نه پرته کوم چلند نه

شي غوره کیدی په واقعیت کې هرانسان چې په نړۍ کې ژوند ترسره کوي دهغو مسایلو په باب په شعوري او غیر شعوري توګه خپله رایه لري دراییې درلودل هم دهغه لپاره ضروري ده داځکه چې هغه د رایې له درلودلو نه پرته چې هغې ته رجوع وکړي نه شي کولی دژوند په ډګر ګام کنبېږدي البته ددې خبرې معنا دانه ده چې هر شخص دهغو مسئلو په هکله په فلسفیانه توګه له غوراو دقت څخه وروسته خپل نظر څرګند کړي

دډیرو خلکو په اذهانو کې ددغو مسایلو دحل صحیح شکل وجود نلري یاخو به یي په اصولي توګه ورته توجه او پام راړولی نه وي او نه به یې دهغې په باره کې په څه فکر لاس پورې کړی وي خو له دې سره سره هر انسان دهغو پیښو په هکله یوې مثبتې او یا منفي اجمالي رایې ته ور رسیږي هغه تګلاره چې په خپل ژوند کې یې دخپل ځان لپاره غوره کوي په لازمي توګه به دهغه درایې دغوښتنې په برابر وي.

هغه څه چې موږ دافرادو په باره کې ورڅخه یادونه وکړه دټولنو په هکله هم صدق کوي دغه ذکر شوې پوښتنې دبشري ژوند دبنسټیزو پوښتنو له جملې څخه شمیرل کیږي. له همدې امله دتمدن ، فرهنګ او دټولنیز تشکیل لپاره هیڅ یوه دکار لایحه نه شي جوړیدلی ترڅو دغو پوښتنو ته ځواب نه وي ورکړل شوی.

دهمدغې مفکورې په برابر به دژوند بیلا بیلې څانګې جوړښت مومي او په بشپړ ډول به ټول تمدن هغه رنګ غوره کوي څنګه چې دهغه ځواب غوښتنه وي

حقیقت دادی چې په دغه مسئله کې هیڅ بدلون نه شي کیدی برابره خبره ده چې دفرد تعامل وي او که دټولنې په هرحال به هماغه نوعیت غوره کوي چې څنګه ددغو پوښتنو دځوابونو وي .تردې پورې

که تاسې وغواړئ ديوشخص او يا ديو ټولګي کړنلاره تحليل کړئ په ډيرې اسانتيا سره به څرګنده شي چې ددغې کړنلارې په تل کې ددغو بنسټيزو پوښتنو ځواب څنګه ورکولی شي داځکه چې هيڅکله کيدی نه شي ديوشخص او يادټولنيزې ټګلارې نوعيت دبل څه وي او ددغو پوښتنو دځوابونو نوعيت دې بلـه بـڼه غـوره کـړي دژبنـی دعـوی او واقعي رويې ترمينځ اختلاف ارو مرو کيدی شي البته ددغو پوښتنو ځوابونه چې په حقيقت کې څنګه کيږي ددې دنوعيت او عملي رويې ترمينځ هيڅکله اختلاف امکان نه لري هرکله چې په دې خبره پوه شوې دادی په بحث کې وړاندې درومو

دبشري ژوند د بنسټيزې مسئلې حل چې مخکې مو ترې يادونه وکړه دغه ټول مسايل په حقيقت کې دغيب ترچارو پورې اړيکه لري او ځواب يې څرګند نه دی ليکل شوی هرانسان چې نړۍ ته رادرومي په ډير لږ دقت او فکر سره يې پيداکولی نه شي او په همدې توګه ددغو پوښتنو ځوابونه دومره څرګند هم نه دي چې هر انسان يې له تدبر او فکر نه پرته حاصل کړي.

له همدې امله ددغو پوښتنو دحل لپاره ټول بشريت په يوه خوله هم نه دی بلکې دتاريخ په بيلا بيلو پړاؤنو کې تل يوله بل سره اختلاف لري اوپه بيلا بيلو ټګلارو سره يې ددې دحل لارې لټولې دي پردې اساس څنګه کولی شو دهغو مسايلو په حل کولو بريالي شو چې په نړۍ کې يې تراوسه پورې دحل کومه لاره نه ده غوره شوې .دحل هغه لارې چې تراوسه په بيلا بيلو اشکالو او ټګلارو سره په لاس راغلې په لاندې توګه دي

دحل لومړی لاره دادی چې انسان په خپلو حواسو اعتماد او بروسه وکړي او هغه څه چې په حواسو سره احساس کیږي دهغې پر اساس دهغو چارو په برخه کې خپله رایه ټینګه کړي.

دویمه لاره دادی چې تخمین او اټکل هم دحسي مشاهدې سره یوځای کړی شي او نتیجه په لاس راوړله شي.

دریمه لاره یې داده هغه څه چې پیغمبرانو دغو پوښتنو ته ځوابونه وړاندې کړي قبوله کړی شي ځکه چې پیغمبرانو ویلي دي دغیب پردې چې د دوی له سترګو لرې کړای‌شوې دي او هغوی له خپلې اصلي او حقیقي سرچینې څخه پوهه ترلاسه کړې ده.

په نړۍ کې ددغو مسایلو دحل په لاره کې همدغه درې لارې انتخاب شوي دي اوغالب اټکل دادې چې په دې هکله دحل څلورمه لاره وجود نه لري دغه درې واړه شکلونه دغه مسایل په ځانګړې ډول حل کوي او له هریو څخه دعمل ځانګړې تګلاره په لاس راځي او داخلاقو او تمدن دجلا نظام اساس اوبنسټ ږدي چې هریو پروګرام اونظام دخپلو ځانګړتیاؤ له غوښتنې سره سم څرګندیږي .دادی موږ دحل بیلا بیلې لارې چارې وړاندې کوو او هغه تګلارې چې ددغو مسایلو دحل له بیلا بیلو تګلارو څخه په لاس راځي توضیح کوو.

## لومړی لار خالص جاهلیت

کله چې انسان په دغو مسایلو کې دخپلو حواسو په وسیله خپله رایه څرګندوي دداسې فکر غوښتنه یې دي ته اړ کړخوي ترڅو دې نتیجې ته ورسیږي چې دکایناتو په بشپړ نظام کې کوم هدف او مصلحت له سره شتون نه لري بلکې دنړۍ موجوده شکل په تصادفي توګه رامینځته شوی او له هدف نه پرته پرمخ درومي دغه نړۍ نه خالق

لري او که چېرې فرضاً موجود هم وي له بشري ژوند سره یې هیڅ اړیکه نشته او نه په بشري ژوند څه سلطه او واکمني لري انسان هم دحیواناتو له جملې څخه یو حیوان دی چې په تصادفي توګه رامینځته شوی دی نه پوهیږي چې چا پیدا کړی او پرته له کوم پیدا کونکي یې دنړۍ ډګرته قدم ایښی

په هرحال داسې پوښتنې زموږ له بحث څخه بهرون دي موږ یوازې دومره پوهیږو چې انسان ځمکې ته راغلی یو لړ غرایز او غوښتنې لري هغه ځمکه چې انسان پرې استوګنه لري له رنګارنګ اسبابو او دژوند له بې شمېره وسایلو څخه ډکه شوې ده چې کولی شي دخپلو فطري غوښتنو دپوره کولو لپاره ورڅخه ګټه واخلي دده ژوند بل هدف نلري یوازې بشري غوښتنې یې ستره غایه ده نړۍ هیڅ څښتن نه لري انسان کولی شي کله چې وغواړي او څنګه چې وغواړي خپلې غوښتنې پوره کړي ددې چارو په سرته رسولو کې هیچاته مسؤل نه دی او نه له سره دعلم او هدایت سرچینه شته چې انسان ورڅخه دژوند قانون ترلاسه او خپله معنوي تنده پرې ماته کړي

په حقیقت کې انسان پخپلو چارو کې خپلواک دی نه ورڅخه څوک پوښتنه او نه ورسره څوک حساب کولی شي انسان پخپله دقانون جوړونې دچارو مسؤل دی او دخپلو ځواکونو داستعمال اندازه پخپله ټاکي په خپل چاپېریال کې بې چې کوم شیان دي له هغوی سره دتعامل په هکله به پخپله کړنلاره جوړوي .که چېرته دده لپاره دهدایت کومه سرچینه وي هغه به هم دحیواني ژوند په شان او یاد تاریخ ترخې تجربې وي که چېرې هغه د چا په وړاندې مسؤل او ځواب ورکونکی وي خپل ځان او یا به بشري ظالمانه واکمنۍ ته وي چې دنوروخلکو په برخلیک کې خپل ځان حاکم بولي، ژوند هم

دنیوي بنه لري او داعمالو نتایج نېک مرغي او بدمرغي هم یوازې په همدې ژوند پورې اړیکه لري داچې داکار سم دی او که ناسم د منلو وړ دی او که نه ؟ ګټور دی او که زیانمن ټول دهماغو نتایجو په برابردې چې په دې نړۍ کې څرګندیږي.

موږ به اوس همدغه تګلاره تر څېړنې لاندې ونېسو چې یوشخص یې ددې پورتنیو څوابونو پربنسټ غوره کوي ترڅو یې دژوند په بیلا بیلو اړخونو کې اغېزې څرګندې کړو.

الف :دانسان په فردي ژوندانه ددغې نظریې دطبیعي اغیزو له جملې څخه دادی چې هغه دژوند په ټولو اړخونوکې خپل ځان خپلواک او خپل سری ګڼي هغه چارې چې دی یې سرته رسوي دهیچا په وړاندې مسؤل نه دی او نه یې څوک مخه نیولی شي .او نه داسې څوک شته چې دده سرکښې غوښتنې کنترول کړي خپل ځان دخپلو جسماني او طبیعي ځواکونو واکمن ګڼي دژوند دهرې برخې دوسایلو په تصرف او استعمال کې خپلواک دی په.هرچا چې یې واک ترلاسه کړ دجابرانو او ظالمانو په شان به ورسره دنوکرپه شان معامله کوي دجابرانو او دکتاتورانو په سلطه او واکمنۍ کې هیڅ باک نشته هیڅ خنډ شتون نه لري چې دهغوی د شخصي غوښتنو دطغیان مخه ډب کړي یوازې هغه فطري قوانین او ځینې قیودات دي چې دانسان په ټولنیز ژوند کې ضروري دي .اوهم دخپل ځان او وجدان په وړاندې ملامتیا او اخلاقي احساس له سره څه ارزښت نه لري

ب :دداسې عقیدې څښتن ، ظالم ، بدعمله ، شریر ، او مفسد وي چې هیڅ اعتماد پرې نه شي کیدی په فطري ډول به ځان غوښتونکی ماده پالونکی او شهوت پال وي چې په ژوند کې به دځاني او حیواني غوښتنو نه پرته بل هدف ونلري .دده په سترګو کې چې کوم شی

ارزښتناک دی هغه یوازې دحیواني غوښتنو پوره کول او ځاني ګټه ده .ایا کیدی شي چې یوڅوک دداسې عقیدې په درلودلو سره د خپلو ګاونډیانو په درد دردمن او په بیوزلو زړه سواند او دهیواد دپرمختګ او نیکمرغۍ لپاره به خپل مال او وخت ځار کړي..؟ که چېرې دغې مسئلې ته ځغلنده نظر وکړو او دهغه عملي کړنلاره ترڅېړنې لاندې ونیسو وبه مومو چې له دې کار څخه دده هدف د دنیوي خوندونو دحاصلولو او ځانځانۍ څخه پرته بل څه نه دي داځکه چې داسې شخص دخپل قام په پرمختګ او دهغوی دغوښتنو په اشباع کې خپلې هیلې وینې پردې اساس کوښښ کوي چې دهغوی د ښیګڼوپه حاصلولو کې هلې ځلې وکړې داسې انسان له یو نشنلسټ او قام پرست څخه پرته بل څه نه وي .هغه تولنه چې له داسې خلکو څخه تشکیل شوې وي مهمې ځانګړتیاوې یې په لاندې توګه دي .

۱ : داچې دسیاست بنسټ به یې د بشري حاکمیت پر اساس اېښودل شوی وي برابره خبره ده چې دفرد حاکمیت وي او یادکومې کورنۍ او یادیوې خاصې طبقې او یا دعام ولس ،څرګنده خبره داده چې په داسې هیواد کې دقانون جوړولو واک دانسان په لاس کې وي هلته قوانین دخلکو دغوښتنو اوګټو پر اساس ایښودل کیږي .

په همدې توګه دژوند اساسي نقشې دشخصي ګټو دپالیسی پر اساس تاکل کیږي.دهیواد په پولو کې یې داسې خلک واک ته رسیږي چې څواکمن ، چالاکه ، مکار ، دروغژن ، سخت زړي دخبیث او ناولي زړه څښتنان وي په دې توګه باطل اوظلم دقانون اوحق په بڼه تبارز کوي .ددې په خاطر چې حق مرستندوی نه لري دباطل منګولو ته سپارل کیږي

۲ :- دتمدن ټولنیز نظام به دځان پالنې او شهوت پرستۍ پر بنسټ ټینګښت مومي په داسې ټولنه کې به انسان د ځاني خوندونو او لذتونو په خاطر چې له هر اخلاقي قید څخه ازادوي پرمخ درومي اخلاقي معیارونه له سره وضع کیږي په دې ترتیب چې دجنسي لذتونو او د دنیوي سامان داسراف په وړاندې هیڅ مانع په سترګو ښکاره نه شي

۳:- په همدې توګه ادب ، هنر ، هم له دغه ذهنیت څخه ا غیز من کیږي او په خپل رنګ یې رنګوي ورځ په ورځ بربنډتوب او فحشاء زیات والی مومي .

۴:- داقتصادي ژوند په برخه کې به فیوډالي سیستم واکمن اوځینې وخت به یې پانګوال‌ه نظام پرځای قایم وي . او ځینې مهال به کاریګر په پاځون لاس پورې کوي اودپرولتاریا دکتاتوري به رامینځته کوي .

لنډه داچې اقتصادي نظام یې په هیڅ صورت کې دعدالت پر اساس ټینګښت نه مومي داځکه چې دټولنې دهر فرد تصور او مفکوره به دې څرخیږي چې نړۍ څښتن نه لري ژوند یوازې همدغه دنیوي ژوند دی انسان دخپل واک څښتن دی دخپلې خوښې سره سم به ژوند سرته رسوي .

۵:- دهمدغه حالت او همدغه نړۍ لید په برابر دنوي نسل دروزنې نظام ترتیبیږي پر همدې اساس نوي نسل ته په نړۍ کې دانسان مقام اوله بو بل سره د مرستې ښوونه نه ترسره کیږي په شعوري او غیر شعوري توګه یې په همدغه ماده پالونکي الحادي تصور او فکر روزنه کوي په همدې ډول ددغه روزنیز نظام کړنلاره نوي نسل ته په همدې شکل دی چې هغوی دیته مجبور وي ترڅو دهمدغې لارې په رڼا کې خپل ژوند غوره کړې او په خپله خوښه پدغه نظام کې منحل شي .

زه دلته په دې هڅه کې نه یم چې د دغه نظام په ځانګړي تعلیمي نظام او دهغې په نتایجو څرګندونې وکړم داځکه چې تاسو له دې څخه ډیر ښه پوهیږئ او هغه مو تجربه کړې دي .په دغو پوهنځیو او پوهنتونونو کې چې تاسو خپله علمي ذخیره ترلاسه کوئ دهمدغې نظریې پر بنسټ ولاړدي دي سره له دې چې ځینې داسلامي کالج او اسلامي پوهنتون په نومونو نومول شوې دي .

ددغه نظام عملي تګلاره چې مو توضیح کړه سوچه جاهلي کړنلاره ده ددوی مثال هغه ماشوم ته ورته دی چې په حسي مشاهدې تکیه کوي په اور باندې دلوبو ګومان کوي له ماشوم څخه یې دغه امتیاز دی چې دماشوم اشتباه ژر ترژره دتجربې پر اساس څرګندیږي داځکه هغه اور چې دی یې د لو بو وسیله بولي ژر تر ژره پوهیږي چې اور دلوبو آله نده .مګر بل لورته دجاهلي کړنلارې پیروان په یو دوه ورځو کې نه پوهیږي بلکې ددوی لپاره ډیر اوږد وخت په کار دی داځکه دغه اور چې دوی ورسره لوبې کوي سوځول نه کوي

حقیقت دادی چې بشریت به اوږده کلونه او پیړۍ پیړۍ په دې اور کې سو ځیږي دوی هغه ښشه یې انسان ته ورته دي چې په درد نه پوهیږي که یو څوک پیداشي او دخپل ژوند ترخو تجربو ته متوجه شي کولی شي په پراخه پیمانه دورځینې ژوند له دردناکو پېښو څخه درس واخلي .

هغه څوک چې هره ورځ دخلکو خیانت دچار واکو زرو زیاتی دقاضیانو بې عدالتي . دپانګوالو ځان غوښتنه عامه بداخلاقي ، نشنلستي او دقام پالنې استعماري جذبات او احساسات په سترګو وینې پوهیږي چې داټول دجاهلي ټولنې ثمره اونتیجه ده .دقامونو ترمینځ تلپاتې شخړې ، ګډوډي ، په ځمکه کې فساد ، دکمزورو او

بیچاره ؤ ملتونو ځپل او راښکیلول ټول په دې ګواهي ورکوي چې دغه دخالص اوسوچه جاهلیت کړنلاره ده. چې له علم او پوهې نه په لرې واټن کې قرار لري. داهغه خبیثه او چټله مفکوره ده چې انسان یې دخپل ځان او کاینا تو په اړه لري چې له حقیقت او واقعیت نه ډیر لرې موقعیت لري. که چېرې یې له واقعیت سره سمون درلودلی نو هیڅکله به یې دغه خبیثه ثمره او میوه نه راوړه او نه به یې دغه خطرناکه عواقب له ځان سره درلودل.

## دویمه لار

د ژوند دبنسټیزو مسایلو دستونزو دحل دویمه لاره داده چې موږ اټکل او شک له مشاهدې او حس سره یوځای کړو او له هغو څخه دخپلو چارو دستونزو په حل کولو کې کاروا خلو. او خپله رایه ددې دوؤ وسیلو په استناد څرګنده کړو. له دغې تګلارې څخه درې ډوله جلا جلا نظریات سرچینه نیسي چې هره یوه یې ځانګړې عملي تګلاره لري.

*الف: شرک*

ددې درې واړو نظریاتو له جملې څخه یو دادی چې نړۍ باید خالق، څښتن او مدبر ولري البته یونه بلکې دګڼو خدایانو ترمینځ دنړۍ واک ویشل شوی وي دانسان نیکمرغي او بدمرغي، بری او زیان دګڼو افرادو ترخوشالۍ او خپګان پورې ارتباط لري څوک چې دې نتیجې ته ورسیدل او دغه رایه یې دنړۍ په نظام کې دخپل ځان لپاره غوره کړه دناپوهۍ اوجهالت له امله یې د الوهیت څواک دبیلا بیلو وګړو ترمینځ وویشلو. پردې اساس کوم شی چې ورته عجیبه څرګند شو هغه یې په الوهیت کې شریک کړ هغه عملي کړنلاره چې په دغې

رايې اتکاء لري او په هغې باوري انسان يې دخپل ځان لپاره غور کوي لاندې ځانګړتياوې لري .

لومړی :- دانسان ټول ژوند داوهامو او خرافاتو محور ګرځي هغه په ډيرو شيانو کې دخپل نفسي توهم اوشک په نتيجه کې پرته له دې نه چې په کوم دليل استناد وکړي ګومان کوي چې دده په نيکمرغۍ او بدبختۍ کې به رغنده رول او اغېزه ولري .

پردې اساس هغه خپل ډير ځواکونه ضايع کوي دګټو دلاس ته راوړلو او د زيان دويري له امله هغوی ته طمع کوي او د وهم او اټکل په رنځ اخته وي په خپلو چارو کې له څېړنې څخه کار نه اخلي له همدې امله به ځينې وخت هغه وينې چې يوقبر ته مخه کوي او له هغه نه دخپلو هيلو پوره کيدل غواړي . بل ځل بيا دبت په وړاندې دعاجزۍ سر ټيټوي . بل ځل چې له چا سره راشه درشه لري پرهغه دمرستندوی او کار جوړونکې ګومان کوي دهغه دخوښۍ دلاس ته راوړلو په لار کې هلې ځلې کوي . او ځينې وخت بيا له بل شي څخه بدشاګوني ګوري دويري او يا له خطرنه دتيښتې په خاطر په خپل عزم او تصميم کې بدلون راولي دغه ټول بې کاره افکار او کوښښونه هغه له طبيعي او فطري هلو ځلو څخه بې لارې کوي داسې لارې ته يې راکاږي چې له انساني طبيعت او فطرت سره ترون ونه لري .

دويم :- دغه رايه يوشخص د نذر او نياز اوړدو پړګر امونو ته هڅوي چې له ورځيني ژوند سره به يې هيڅ تړاؤ نه وي او نه به يې په دين کې کوم اساس او بنسټ وي دمثال په توګه دقبرونو په وړاندې قرباني او يو لړ عادات او دندې چې دبشري ژوند ډيرې هلې ځلې او کوښښونه له مينځه وړي .

دریم :- په دغه شرک اخته وګړي چې ، وهم او خرافانو ښکار ګرزیدلي دهر حیله ګر چل باز اوچالاک انسان لپاره تیاره مړی ده هغه چې دساده او بې عقلو انسانانو په عقل لوبې کوي له همدې امله خلک یوسړی ګوري چې خپل ځان پادشاه بولي او دخپل نسب لړی لمر او سپوږمۍ او دروغژنو خدایانو ته رسوي خلک دیته مجبوروي چې ترڅو باوري واوسي چې دالوهیت مقام ته رسیدلی دی او هغوی دده بندګان دي دهغوی له جملې څخه ځینې کسان ددغو خدایانو دکورونو سرپرستان او متولیان ګرزیدلي او یا ددغو بزرګانو دقبرونود منجاوری دنده پرمخ بیایې او خلکو ته څرګندوي چې زما او ددوی ترمینځ اړیکه او پیوند دی له مانه پرته هغوی ته نه شئ رسیدلی ددوی له جملې څخه ځینې دکاهن او یا دیوې طریقې دشیخ او پیر په شکل څرګندیږي ، او خلکو ته په چالاکۍ او جادو ګریو لاس پورې کوي ترڅو دده دکړو وړو په لیدلو سره خلک باوري شي چې هغه ګواکې دخلکو غوښتنې او مقاصد تر سره کوي چې دبل چاله وسې پوره نه دي

بیا هغه دجالان او فریب ورکونکي خلک دخپل نفوذ ، امتیازاتو او وظائفو دایره خپلو او لادونو او لمسیانو ته ورغځوي دوخت په تیریدلو سره دغه اصل مجد او عظمت ددې کورنیو حق وګرزي چې هیڅوک یې ورڅخه نه شي اخېستلی په دې ترتیب سره دغه عقیده دبادشاهانو ، دجالانو او مکارانو په وړاندې دغلامۍ اونوکرۍ لامل ګرزي دغه دروغژن خدایان هم دهغوی له سادګۍ څخه استفاده کوي دخپلو غوښتنو په وړاندې ورڅخه کار اخلي ته به وایې چې بار وړونکي څاروی او ددغو دروغژنو خدایانو سورلي ده .

څلورم :- دغه نظریه دعلومو ، فلسفې ، ادب تمدن او سیاست سره سروکار نه لري او نه دهغو دروغژنو خدایانو له خوا دوی ته کوم هدایت او لاربنوونه متصوره ده ترڅو بشریت دهغې په رڼا کې لاره ومومي او دهغوی نقش قدم تعقیب کړي .دانسان اړیکه له دغو دروغژنو خدایانو سره په دومره تنګه کړی کې محدوده ده چې دعبادت او بندګی ځومراسم دهغوی دمرستې او مهربانی دلاس ته راوړلو په خاطر ترسره کوي البته دژوند په ډګر دګړ کیچونو دحل په خاطر انسان پخپله دنده او مسؤلیت لري چې دهغې لپاره قوانین جوړ کړي او دهغې عملي کړنلاره وټاکي . کومې ټولنې چې دشرک پر بنسټ تینګښت لري هماغې لارې ته ادامه ورکوي چې سوچه جاهلي ټولنې پرې پل ایښی او په عملي ژوندکې کړې لارې تربښو لاندې کوي هغه چې مخکې مو ورځخه یادونه کړې وه

پر دې اساس دشرک او سوچه جاهلیت تر مینځ په اخلاقو کړو وړو تمدن ، سیاست ، اقتصاد اوټولنیز وضعیت، فرهنګ او اخلاقو کې دومره اساسي توپېرپه سترګونه ښکارې

## ب: رهبانیت

دویمه لار چې له حدس تخمین او مشاهدې اوحس سره یوځای په لاس رازي داده چې دبشر ژوند له غوښو او وینو څخه جوړ شوی دی چې انسان ته در دونه او بدبختي له ځان سره لري دانسان په بدن کې دروح موجودیت هغه بندي ته ورته دی چې په تیاره زندان کې پروت وي دزندان دردونه دخپلو هغوګناهونود ارتکاب له امله تېروي چې سرته یې رسولې دي . انسان چې هرڅومره د دنیوي لذتونو او خوندونو څخه ګټه اخلي په هماغه اندازه ددنیا په ځنځیرونو کې تړل کیږي او

دنیوي عذاب او دردونه یې په برخه کیږي. دنجات اوخلاصون یوائینی لاره داده چې انسان ددنیا دټولو اسبابو څخه ګوښه کړی شي خپلو نفساني غوښتنو ته دپای ټکی کښیږدي اوله دنیوي لذتونو او خوندونو څخه لرې والی غوره کړي دنفس غوښتنې ونه مني او له مادي ژوند سره هیڅ غرض ونه لري په داسې نفسي او روحي ریاضتونو لاس پورې کړي ترڅو دوه دښمنه نفس او بدن یې له درد څخه په ژړا او ارنګولاو له سختیو سره لاس او ګریوان شي او په دې وسیله دنفس او ځان واکمنی ته پر روح باندې دپای ټکی کیښودل شي ترڅو روح پاک او سوتره پاتې شي او دنفس تیارې ورته زیان ونه رسوي او وکولی شي چې داسمان هسکو څوکو ته دنجات لاره پیدا کړي او هلته والوزي. له دغې نظریې څخه چې کومه عملي تګلاره په لاس رازي لاندې ځانګړتیاوې لري.

لومړی: ټولې انساني هیلې او طبیعي غوښتنې یې داوي چې له ټولنې څخه لرې واوسي دفردي ژوند په لوري مخه کوي او له تمدن نه دوحشت او بربریت په لوري ګامونه اخلي ددنیا له ژوند څخه مخ اړوي او له ټولو غوښتنو څخه فاصله نیسي او په دې توګه دژوند له مکلفیتونو څخه تیښته کوي له یو پیاوړي انسان څخه کمزوری او له ټولنې ګوښه شخص جوړوي چې خویونه یې سلبي بڼه غوره کوي.

دویم: دغه فکري نظریه دالله جلت عظمته پرهیزګار بندګان دې ته مجبوروي چې دخپل ځان دنجات او ددې نړۍ له دردونو څخه له خلاصون نه پرته بل هیڅ شي ته پاملرنه ونه کړي. پر دې اساس هغوی غارونو او سمڅو ته مخه کوي چې په نتیجه کې دنړۍ دچارو واګې

دداسې خلکو په لاس کې پريوزي چې دځمکې پرمخ له فساده پرته بل هدف نلري.

دريم: ددغې مفكورې داغېزو له جملې څخه دتمدن او ابادۍ په هکله دادی چې دخلکو په مينځ کې سلبي اخلاقو ته وده ورکوي او په زړونو کې يې له ټولنې څخه دګوښه اوسيدلو احساس زياتيږي. زړه يې ناامیده او عملي ځواک يې ويده دکبر جنو ظالمانو په وړاندې سرټيټې وي هرمتجاوز او ظالم کولی شي په ډيرې اسانۍ سره يې په شا وټمبوي حقيقت دادی چې د رهبانيت نظريه او مفکوره يو شخص دهر ظالم او مستبد ځواک دسورلۍ وسيله جوړوي.

څلورم: درهبانيت مفکوره دتل لپاره له بشري فطرت سره په جنګ اخته وي چې تل په شکست او تمبولو محکوم او په پای کې پخپله ناکاميږي له همدې امله ځينې راهبان په خپلو تمايلاتو او قلبي عواطفو پرده غوړوي او ځينې وخت بيا له مجازي پاک او سپيڅلي عشق څخه خبرې اترې کوي. ځينې نور يې بيا په هماغه غارونو او ځيله ځايونو کې دداسې شهوت ناکو ناکاره چارو مرتکب ګرزي چې په يادولو سره يې دانسان د بدن غوني زيږيږي هغوی بيا د دنيا دترک او زهد په جامه کې داسې کارونه ترسره کوي چې، دنياپرسته خلک يې له سرته رسولو څخه دخجالت او شرم احساس کوي

## ج: وحدت الوجود

دريمه نظريه چې دتخمين او مشاهدې له مينځ نه دهغو پښتنو په حل کولو کې رامينځته کيږي دادی چې انسان او هغه څه چې په کايناتو کې موجود دي په نفس الامر کې نه حقيقت لري او نه مستقل

وجود بلکې واحد او لاشریک ذات دخپل وجود دظهور وسیله ګرزولې دي

ه‍ نده داچې دالله پاک ذات نعوذ باالله دکایناتو په هره ذره او برخه کې حلول کړی دی دغه نظریه په خپل تفصیل کې بیا په ګنو نظریاتو ویشل شوې ده خو مشترکه نقطه دټولو هماغه ده چې مخکې مو دهغې وضاحت وکړ او هغه داچې ټول موجودات دیوه ذات دخارجي مظهر جیثیت لري .

هغه لار چې انسان یې دذکر شوې نظریې پر اساس انتخابوي پدې منتج کیږي چې انسان په خپل وجود شکمن ګرځي پرته له دې چې کوښښ وکړي او یا دژوند په ډګر یوکار ترسره کړي هغه خپل ځان دلویو وسیله بولي هغه چې له لرګیو جوړ شوی وي چې دجوړونکي لاس یې په خوځښت راولي او هغه دخپلو خیالاتو او خوبونو په میدان کې ورک وي هغه دژوند هدف نه پېژني چې سترګې ورپورې ونښلوي او نه دخپلو چارو دپرمختګ لپاره پروګرام لري ترڅو یې په ورځیني ژوند کې عملي کړي بلکې هغه ګومان کوي چې یو بشپړ ذات دغه نړۍ احاطه کړې ده اووجود یې ددغې نړۍ په وجود کې جریان لري ټولې چارې هغه ته رجوع کوي او هغه چې څه وغواړي سرته یې رسوي او په هرشي حکم کوي . نو که چیرې هغه شی په کمال متصف وي له شکه پرته چې دده وجود به هم کامل وي . پردې اساس ښه نو دادومره کوښښونه دڅه لپاره ؟

هرکله چې لویه هستي او لوړ ذات دکمال په لوري روان دی نو دهماغه عالمګیر حرکت پر اساس چې هغه کلي وجود یې دکمال او بشپړتیا لورو پوړیو ته روان کړی دی په یقیني توګه دخپلو وزرونو ترمینځ دغه کوچنی وجود هم نیسي پرته له دې ځینې چې دی حرکت

او هلو ځلو ته اړتيا پيدا کړي دکمال لوړو پوړيو ته يې رسوي، دی په دغه لويه هستۍ کې يوجزء دی نه پوهيږي چې دغه کل چېرته روان دی ددغې نظريې عملي نتايج درهبانيت سره مشاهبت لري بنايې ځينې وخت هغه څوک چې دغه نظريه غوره کوي دهغو وګړو له چلند سره چې دخالص جاهليت کړنلاره يې غوره کړې وي ډير نژدې والی پيدا کړي داځکه چې دغه مفکوره دچارو واګې نفساني خواهشاتو ته سپاري پردې اساس په ډيرې خوښۍ سره هرچېرته چې درومي نفساني خواهشات يې بيايې هغه ګومان کوي هغه شی چې يې له ځان سره بيايې هغه کلي وجود دی پردې اساس مسؤليت دکلي وجود دی نه دده ځکه چې وجود يې جزيې دی

پورته ذکر شوې درې ګونې نظريې دجاهليت محض (خالص جاهليت) په شان دي کړنلارې اوعملي پروګرامونه چې ددغو نظرياتو څخه په لاس راځي هماغه جاهلي تګلارې او پروګرامونه دي او هغه ددوؤ لاملونو له کبله.

لومړی لامل:هيڅ يو ددغو نظرياتو څخه په علمي حقايقو ټينګښت نه لري بلکې دغه ټولې په خيالي او وهمي بنسټونو ولاړې دي چې وهم او اټکل تيار کړې دي.

دويم لامل :په تجربې سره ثابته شوې ده چې دغه نظريات له حقيقت او واقعيت سره سمون نه لري که چېرې يې يوه رايه هم له حقيقت سره سمه وی هيڅکله به يې ناوړه پايلې نه درلودلې

دغه قضيه موږ ديومثال په ترځ کې څرګندوو که چېرې تاسې يوسړی وګورئ چې په هرځل يومعين شی خوري درد يې په خيټه کې رامينځته کيږي دې نتيجې ته رسيږئ چې هغه شي دده له مزاج اوطبيعت سره سمون نه درلود

داچې دشرکي نظریاتو ، رهبانیت او وحدة الوجود په غوره کولو سره بشرله ډیرو زیانونو سره مخامخ دی له دې څخه موږ دې نتیجې ته رسیږو چې له دغو ذکر شویو نظریاتو څخه هیڅ یوهم له حقیقت او واقعیت سره سمون نه خوري.

## دریمه لار: اسلام

اوس دریمه لار دبشري ژوند دبنسټیزو مسئلو او ستونزو دحل وروستنی شکل ترڅیړنې لاندې نیسو د اکار هلته کیدی شي چې موږ په هغه شي ایمان او باور ولرو چې پیغمبرانو علیهم السلامو دهغو بنسټیزو مسئلو دحل په خاطر بشریت ته وړاندې کړي دي.موږ یې دیومثال په توګه داسې څرګندوؤچې فرض کړئ تاسو یوې سیمې ته ورځې هلته نابلد یاست دهغوی له کلیو ،لارو، تمدن او اقلیمي ظروفو څخه په څه نه پوهیږئ پردې اساس دهغې سیمې یوشخص ته اړتیا لرئ ترڅو دهغه په لارښوونه له هغې سیمې څخه لیدنه وکړئ. په دغه صورت کې لومړی ترهرڅه دهغه چا پلټنه کوئ چې ددغې سیمې په پیژندنه کې بشپړه اشنایي ولري .بیا دهغه څېرې او حرکاتو ته پاملرنه کوې ترڅو دهغه په امانت ډاډحاصل او پرکفایت یې اعتماد وکړئ. که چیرې پورتنی. ځانګړتیاوې په دغه سړي کې شتون ولري دهغه دپل او نقش تعقیبوې هرکله چې په تجربو سره درته ثابته شوه دهغو لارښوونو په رڼا کې چې هغه یې درته کوي یوکار موسرته ورسولو ښه نتیجه مو ترلاسه کړه او له هغه سړي نه ډاډه او باوري شوې چې دهغې سیمې په اړه ښه پوهه لري او تاسو یې هدف ته ورسولئ په داسې حال کې چې له دغې لارې پرته بله لاره له سره شتون نه لري یوازینې لاره همدغه ده چې دبشري ژوند په بنسټیزو مسایلو کې پرې استناد کیږي.

دادی مـوږ دنړۍ په مسـایلو کې چې مخکې مو ورڅخه یادونه وکړه دقت کوؤ فرض کړئ چې نړۍ زموږ لپاره یو نااشنا کور دی دهغې له حقیقته او له هغه نظم څخه چې دهغې دمصالحو په تدبیر کې وجود لري علم او پوهه نه لرو نه پوهېږو چې په هغې باندې کوم قانون جاري دی او نه پوهېږو چې په نړۍ کې زموږ حیثیت څه دی ؟ او کومه تګلاره غوره کړو ؟

په لومړي پړاؤ کې باوري وؤ چې دکایناتو حقیقت هماغه دی چې په سترګو ښکاري او په هماغه رایه موعمل وکړ خو په نتیجه کې څرګنده شوه چې زموږ رایې صحت نه درلود او په بطلان محکومه شوه بیامو نورو وسایلو ته چې له اټکل او تخمین څخه عبارت دي پناه وړه او هریو مو تجربه کړ خو بیا یې هم نتیجه ناسمه وه له دې نه وروسته همدغه یواځینۍ لاره پاتې کېږي ترڅو ددغې ستونزې په حل کولو کې دالله جلت عظمتهٔ پیغمبرانو ته رجوع وکړو داځکه چې هغوی وایې دچارو له حقیقت څخه پوهه لري په همدې توګه هرڅومره چې دهغوی حالاتو ، کړو وړو اودهغوی سپیڅلي ژوندته وګورو وبه وینو چې په چارو کې یې امانت ، په وینا کې یې ریښتینولي ، باطني صفا ، او له شخصي اهدافو څخه لرې والی به ددوی په ژوند کې مشاهده کړو . په بشپړه توګه به ومومو چې پیغمبران علیهم السلام دعقل او پوهې له اړخه وتلي خلک ؤ په رایه او فکر کې له ټولو خلکو دلوړې مرتبې څښتنان ؤ دهغوی درایې په سرسري توب هیڅکله پوښتنه نه راولاړیږي دلته یوازې دغه مسئله باقي پاتې کیږي او هغه داچې که چیرې هغو معلوماتو ته ښه ځیر شو چې هغوی یې موږ ته له نړۍ او دبشر له حیثیت څخه څرګندوي چې ایا له حقیقت سره سمون لري ؟ ایا کوم عملي دلیل له هغو سره تناقض او ضدیت لري ؟دهغوی دتګلارو

صحت په تجربې سره ثبوت ته رسیدلې او کنه؟ په هغه صورت کې چې پدغو مسایلو کې زموږ دتحقیق او پلټنې نتیجه د ډاډ وړ وه لازمه ده چې موږ دهغوی په رسالت او نبوت ایمان راوړو اودهغوی دلارښوونو په رڼا کې خپل عملي ژوند تنظیم کړو.

دغه کړنلاره لکه چې مخکې مو څرګنده کړه دجاهلیت دتګلارې په مقابل کې عملي لاره ده په هغه صورت کې چې یوشخص ددغه علم په وړاندې دتسلیم سرښکته کړي خپله خپل سري پریږدي او دهمدغه علم پیروي غوره کړي په حقیقت کې یې دهغې کړنلارې پیروي غوره کړې ده چې اسلامي تګلاره ورته ویل کیږي.

## دکایناتو او انسان په اړه دپیغمبرانو عقیده

پیغمبران علیهم السلام وایې دانسان په چاپیریال کې چې څومره شیان موجود دي چې په انسانانو او بې شمیره موجوداتو مشتمل دي. په ناڅاپې او تصادفي توګه نه دي رامینځته شوي بلکې نړۍ دنظم څخه برخمنه ده چې الله جلت عظمته پیدا کړې او له عدم څخه یې دوجود ډګر ته راویستلې ده هغه یې څښتن دی او دنړۍ ټولې چارې یوازې دهغه په واک او قدرت کې دي دایو کلي اصل دی چې دقانون جوړونې مسئله او دهغې اجزاء یوازې هغه پورې اړه لري

دلته له هغه پرته واکمن پاچا دامر او نهې څښتن له سره څوک نشته نو رڅوا کونه چې وینئ په نړۍ کې تصرف کوي او یا دنړۍ دچارو په تنظیمولو کې یو کار پرمخ وړي. ټول یې تر واک لاندې دي هیڅوک په دغه پراخه نظام کې ددې واک نه لري چې له خپل ځانه او دهغه له اجازې پرته یوساکن جسم ته حرکت ورکړي.

دالله جلت عظمته په خپور ژر نظام کې هیڅوک او هیڅ شی دخپل اختیار څښتن نه دی دا ددې نظام طبیعت او برخلیک دی چې الله جلت عظمته پرهغه اساس پیداکړی دی او انسان په دغه لویه نړۍ کې دالله (ج) رعیت دی چې خپلواکي نه لري بلکې دهغه حیثیت دنوکر او بنده په توګه دی پر دې اساس حق نلري چې خپل ځان ته قانون جوړ کړي او خپل مسؤلیتونه او دندې پخپله ځان ته وټاکي . هغه دهیڅ شي څښتن نه دی ترڅو دهغې دتصرف او استعمال په هکله قانون جوړ کړي بلکې دده بدن او هغه ټول ځواکونه چې ده ته ورکړل شوي دالله عزوجل ورکړې دي. ده بشر حق نلري چې دخپلو غوښتنو او واک سره سم پرته له هیڅ رنګ قید او شرط څخه هغه استخدام کړي بلکې باید په هغه لارو چارو ور څخه کار واخلي چې دهغه جل جلاله له خوښې سره برابروي په همدې توګه انسان چې په خپل چاپېریال کې ځمکه . غرونه . ځاروي . اوبه ونې او کانونه ویني ټول دالله جلت عظمته ملکیت دي په دغو شیانو کې هرڅه دالله حقیقي ملکیت او انسان یې مجازي مالک دی حق نلري چې دخپلې خوښې سره سم په کې تصرف وکړي ده ته په کار دي چې دهغه قانون پر بنسټ چې حقیقي څښتن وضع کړی دی عمل وکړي په دې ترتیب ټول بشریت چې په دې ارته ځمکه ژوند سرته رسوي ټول دالله عزوجل بندګان او په دغه پراخه ځمکه کې دالله (ج) درعیت حیثیت لري حق نه لري چې خپلسري اصول، اساسات او قوانین وضع کړي لازمه ده چې خپل ټول معاملات دهغو قوانینو او اصولو پر بنسټ برابر کړي چې الله جلت عظمته وضع کړي دي .

* هرڅوک حق لري چې دغه پوښتنه مطرح کړي الهي قانون څه شی دی ؟ او له کوم ځایه یې په لاس راوړو ؟ ددغې پوښتنې په وړاندې دالله عزوجل درېښتینو پیغمبرانو ځواب داؤ الله تعالی موږ ته علم راپه برخه کړی او

موږ يې دهغه په تبليغ مكلف ګرزولي يُو نو پر تاسو لازمه ده چې پر موږ اعتماد وكړئ او زموږ پر رسالت ايمان راوړئ او په دې پوه شئ چې موږ ټول ستاسو دښېښتن استازي يُو . پردې اساس له موږ نه هغه قانون واخلئ او خپلې منګولې پرې ولګوئ چې الله جلت عظمته ستاسو دخلاصون او نجات په خاطر وضعه كړى دى ـه همدې توګه پيغمبرانو څرګند ه كړې وه . پرته له دې نه چې [illegible] كې ددې نړۍ پر منتظم اومدبر ونبسلي ددغې ارتې او پراخه [illegible] نظام له پوره تدبير او انتظام سره سم پرمخ درومي .

* تاسو چې په خپلو زړونو كې دخپلواكۍ احساس كوئ او اټكل كوئ چې هرڅه وغواړئ په يوازې ځان يوكار غوره او يا خپل ځان دروغژنو خدايانو ته تسليم كړئ او دخپل ځان دچارو واګې جابرو ، كبرجنو بادشاهانو ته وسپارئ چې په ناحقه دالله په ځمكه كې په سرغړونې لاس پورې كوي .

* تاسې وينئ چې ستاسو رزق او روزي په پوره وسعت سره په هرحالت تاسو ته را درومي دالله عزوجل دنافرمانۍ سره سره دكار او كوښښ لپاره مناسب شرايط ترلاسه كوئ او ژر ترژره دخپلو كړو وړو سزا نه مومئ . هرڅه چې ددغوشيانو له جملې څخه په سترګو وينئ دالله عزوجل له خوا ازموينه ده هركله چې الله پاک تاسو ته عقل ، داستنباط او انتخاب ځواک او له خير او شر نه دبيلتون پوهه درپه برخه كړې ستاسو او دالله عزوجل دسپيڅلي ذات ترمينځ يې په دغه ارته نړۍ كې دغيب پرده غوړولې داځكه چې هغه غواړي تاسې وازمايي او وګوري چې څنګه له دغو وركړل شويو ځواكونو څخه ګټه اخلئ هغه تاسو ته عقل او په كارونو كې يې دانتخاب حق در په برخه كړ او يو ډول خپلواكي يې هم درسپارلې ده . له

نورو مخلوقاتو سره چې دالله (ج) په پراخه نړۍ کې استوګنه لري څه معامله کوئ

* په هغه صورت کې چې خپل حقیقت مو وپېژندلو او زړه ته مو راوستله چې تاسو دیولوی پادشاه رعیت یاست او دغه مرتبه مو په خپلې خوښې سره دخپل ځان لپاره غوره کړې ده په هغه ازموینه کې چې الله عزوجل غوښتله بري ته ورسیدلئ.

* ددې پرعکس که چېرې تاسو داخبره له یاده وویستله چې په دې ارته نړۍ کې دهغه لوی پادشاه رعیت یاست دهغه له قوانینو او اوامرو څخه مو په سرغړونې لاس پورې کړ په ازموینه کې ناکام شوې له پښیمانتیا او زیان څخه مو پرته بل څه ترلاسه نه کړل دهمدغې ازموینې په خاطر یې په دنیوي ژوند کې تاسو ته پوهه واک او اختیار درکړی او زیات مخلوقات یې ستاسو دواک په موټي کې درکړي او ترڅه وخته یې په دغه فاني نړۍ کې مهلت در په برخه کړی دی.

* له دې نه وروسته پیغمبران علیهم السلام مونږ ته لاربنوونه کوي چې په دنیوي ژوند کې مجازات وروستنۍ سزا نه ده له دې امله چې نړۍ دازموینې ډګر او انسان دامتحان لپاره پیداشوی دی هغه نعمتونه چې انسان یې په دغه فاني نړۍ کې په لاس راوړي لازمه نه ده چې دکوم نیک کار عوض وي په همدې توګه په دې دلالت نه کوي چې ګواکې الله عزوجل له دوی څخه راضي او خوښ دی او یا داچې څه سرته رسوئ هغه ټول صحیح دي هیڅکله داسې نه دی په حقیقت کې دغه ټول ازمایښتونه دي چې الله پاک دهغې په وسیله خپل بندګان ازمایي. دپانګې، شتو، اولادونو او دژوند دوسایلو لکه حکومت، دژوند وسایل او نوکران ټول ددې په خاطر دي چې الله پاک ددې نعمتونو په وړاندې ستاسو ازموینه واخلي چې په کوم ډول هغه په کار راولئ او ورڅخه استفاده کوئ.

* په همدې توګه په ژوند کې چې بشریت له کومو کړاؤنو او ستونزو سره لاس او ګریوان اوربړونه ګالي لازمه نه دی چې دکوم بد کار او ګناه سزا اوسي

بلکې امکان لري چې پر بندګانو الهي ازمیښت وي لنډه داچې نړۍ دامتحان کوردی هغه نتیجې چې دلته څرګندیږي امکان نه لري چې معیارشي او ټول کارونه او لارې چارې پرهغې وسنجول شي او یادهغو لارو صحت او حقانیت پرهغې قیاس کړی شي او دهغې په پرېښودلو او یا ترک کولو حکم وشي حقیقي معیار خو هماغه نتیجه ده چې په اخرت کې به څرګندیږي ، اخرت خو ددنیا دژوند له پای ته رسیدلو او ددغه مهلت له تیریدلو وروسته راتلونکی دی هلته چې دبشرد ټولو کړو وړو محاسبه به صورت نیسي او په دې هکله به فیصله کیږي چې ایا په ازموینه کې بري ته ورسیدلۍ او که نه ؟ په اخرت کې دانسان نیکمرغي او زیان په دوو شیانو پورې مربوط دی

* ایا تاسو دالله تعالی دقدرت په بې شمیره نښو نښانو کې فکر کړی او پدې هکله مو معلومات حاصل کړی دی چې داسمان او ځمکې په مخلوقاتو کې الله تعالی دتاسو حقیقي حاکم دی او هغه لارښووني او هدایات چې دالله عزوجل سپیڅلو پیغمبرانو له ځان سره راوړي پیژندلي مو دي او ایمان مو پرې راوړی ؟

* وروسته له هغه نه چې تاسو حقیقت وپیژندلو ایا په بشپړې مینې او خوشالۍ سره مودخپلې ازادۍ سره سره دالله عزوجل حاکمیت ته ځان سپارلی او دهغه په شریعت موعمل کړی دی اوکه نه؟

## اسلامي عقیده دقضاوت په تله کې

دغه عقیده چې پیغمبرانو او الهي استازو دانسان اود نړۍ په اړه وړاندې کړې یو بشپړ نړۍ لید دی چې ټول اجزاء یې یوله بل سره تړلي دي او دهغې دبیلا بیلو اجزاؤ ترمینځ پخه او ټینګه اړیکه موجوده ده .تاسو کولی شي په خپلو دوربینونو او نویو وسایلو سره دنړۍ ټولې پیښې ترکتنې لاندې ونیسي او دکایناتو دپیدا ایښت په عجایباتو کې هراړخیز قناعت بخښونکي دلایل په خپلو سترګو مشاهده کړئ .هرهغه شی چې تاسو یې په نړۍ کې ګورئ او یا یې دتجربې پر اساس پېژنئ نه شي کیدی چې توجیه یې ددغې عملي نظریې پر اساس امکان ولري پردې اساس دایوه علمي نظریه ده او دغه اصطلاح او یا تعریف له هرحیثیته پرهغې صدق کوي پردې باید داهم ورزیاته کړو تراوسه پورې دتجربې او مشاهدې پر اساس ثابته شوې نه ده چې یوشی به ددې عقیدې حقیقي ضد وي او ددې عقیدې بنسټونه به ونړوي دغه عقیده پرخپل ځای ټینګه او ثابته ده نه شوکولی هغه دمړو شویو او یا هغو عقایدو له جملې څخه یې وشمیرو چې بنسټونه یې وراسته شوې دي (۱)

---

(۱):- دلته یې باید له یاده ونه باسو چې د تاریخ په بیلا بیلو پړاؤنو کې له دغې عقیدې سره دعلمي نظریاتو مخالفت چې پیغمبرانو بشریت ته دسوغات په توګه راوړی پردې دلالت نه کوي چې ګواکې دغه عقیده باطله او یا یې بنسټونه نړیدلي دي داځکه چې علمي نظریات یوازې حقیقتونه په بطلان محکوموي . په داسې حال کې هغه ثابت او ټینګ علمي حقایق چې وکولی شي دغه عقیده چې پیغمبرانو علیهم السلام دانسان او کایناتو په اړه وړاندې کړی په بطلان محکومه کړې له سره وجود نه لري . پردې اساس هیڅ یو عاقل انسان ته نه ښایي چې هغه دباطلو عقایدو په زمره کې وشمیري . او که چیرې یې ددې خبرې جرات او ددارنګه ویناؤ ادعاء وکړه خبره به یې بې اساسه او په لجاجت به بناء وي نه په کوم علمي دلیل

په همدې توګه په دې نړۍ کې سم تدبير ، هماهنګي او بشپړ انسجام وجود لري . هغه نظم او ترتيب چې دکايناتو په هره برخه کې يې په سترګو وينوز موږپام دې خبرې ته راګرزوي چې په کايناتو کې يو مدبر ذات موجود دی دپوهې څښتنانو ته په کار دي چې له دې نه پرته بله عقيده ونه مني دکايناتو دچارو دنظم او تدبير څخه دې نتيجې ته رسېږو چې دکايناتو نظام دواحد او لاشريک لايزال ذات لـه لوري وضعه شوی يوازې هغه يې مدبر دی چې څه وغواړي ترسره کوي يې په همدې اساس دپوهې اوعقل څښتنانو ته په کار نه دي چې داسې نتيجه ترلاسه کړي چې دنړۍ نظام ديوه ذات څخه پرته ډير مدبرين لري موږچې ددې نړۍ عجايبات وينو ټول ددغې عقيدې صحت ثابتوي په همدې توګه هغه څه چې دکايناتو په نظام کې دحکمت څرګندونه کوي له عجايباتو څخه يې عقل حيرانيږي او موږ ته لارښوونه کوي چې دکايناتو نظام پرحکمت اينبودل شوی او ترشا يې هدف او غايه وجود لري ايا داخبره دعقل له څښتنانو سره ښايي چې ووايي دکايناتو نظام دهدف څخه برخمن نه دی ددې مثال دماشومانو دلوبو په څېر ګرځي چې هدف يې له لوبو څخه پرته بل څه نه وي . په هغه صورت کې چې دکايناتو نظام په حقيقت کې يوه لويه نړۍ ده او انسان دهغه جزء تشکيلوي موږ له دغه لوري دغه مسئله ترغور او څېړنې لاندې نيسو په پوره ډاډ سره موږ ته څرګنديږي چې انسان نه ښايي په دغه نظام کې خپلسری او په خپلو چارو کې غيرمسؤل واوسي په حقيقت کې دانسان صحيح او اصلي مرتبه په کايناتو کې دالله جلت عظمته بندګي او اطاعت دی له همدې نقطه نظره موږ ته څرګنديږي

چې همدغه عقیده دعلمي منطق او سلیم عقل تمثیلونکې ده که چېرې له عملي اړخه ورته وګورو کولی شو په ډیرې اسانتیا سره دهغې په مقتضا عمل وکړو داځکه چې دهمدغې عقیدې پربنسټ دژوند دهر اړخیز نظام پروګرام ټینګیدی شي په همدې توګه دغه عقیده یو صحیح او مستقل بنسټ دعلم ، ادب ، فرهنګ ، صنعت ، سیاست ، مملکت ، جنګ ، سولې او دنړۍ والو اړیکو لپاره دي.

لنډه داچې دغه عقیده دژوند دټولو اړخونو لپاره یومستقل بنیاد دی چې دانسان دټولو ضروروتونو لپاره ځواب ورکونکې ده . انسان دژوند په هیڅ اړخ کې نه مجبوریږي چې ددغې عقیدې له چاپېریال څخه بیرون نورو لار ښوونو ته اړتیا پیداکړي دلته یوازې دومره پاتې ده چې موږ ددغې عقیدې عملي اغېزې او نتایج په خپلو سترګو ووینو دغه سپېڅلې عقیده یوازې دبشر فردي ژوند نه تنظیموي بلکې دجاهلیت دټولو نظریاتو پر خلاف دژوند ټول اړخونه رهبري کوي .

په دغې عقیدې ایمان اوباور یې په انسان لازموي چې خپل بدني ځواکونه او دژوند ټول وسایل خپل ملکیت ونه بولي او په هغه شان ورڅخه ګټه وانه خلي چې ګواکې دهغې په استعمال کې خپلواک دی بلکې هغه ته لازمه ده چې داټول شیان دواحد او لاشریک ذات ملکیت وګڼي او په هغو حدودو کې یې استعمال کړي چې الله جلت عظمته ورته ټاکلي دي او هغه ټول نعمتونه چې دده په تصرف او واک کې دي دالله عزوجل امانت وبولي او په هغو کې داسې تصرف وکړي چې بشپړ باور ولري چې ددغو امانتونو له کبله به ورسره یوه ورځ دالله په نزد محاسبه وشي په داسې حال کې چې الله تعالی دده په ټولو

اعمالو دعلم ځينبنتن اوهغه سپيڅلی ذات دده دزړه په پټو رازونو پوه دی

څرګنده ده چې يو شخص له داسې باور سره دتل لپاره دمحدود نظام په وړاندې تسليم وي هيڅکله هم دبې مهاره اوښ په څير خپلسری ژوند نه ترسره کوي چې هيڅ شي پورې مقيد نه وي او دمخنيوي لپاره يې هيڅ خنډ شتون ونه لري . هيڅکله نه شي کيدی چې داسې انسان ظالم او خاين واوسي بلکې هغه دداسې خلکو له جملې څخه به وي چې په امانت يې ډاډ او په لوړو اخلاقو يې بشپړ اعتماد او باور کيدی شي هغه دالهي قوانينو او اوامرو په پيروۍ کې کوم بېروني عامل ته اړنه وي بلکې دهغه په زړه کې يواخلاقي انضباط وي چې دحق لوري ته يې رهبري کوي ، دحق په اتباع او دباطل نه په لري والي کې ثابت قدم وي تردې پورې چې په ټولو حالاتو او شرايطو کې دهيڅ ملامتي کونکې له ملامتيا او دظالمانو او کبرجنو خلکو له تيري څخه دويرې احساس نه کوي .او نه شک او تردد ته په خپل زړه کې ځای ورکوي په ټولنه کې داماتنګرو خلکو دروزنې او پالنې په خاطر چې ټولې چارې په امانت او ديانت سره پرمخ بوزي او ټولنيز درانه بارونه په اوږو واخلي په پټه اوښکاره توګه له الله تعالی څخه وويريږي بله کومه مضبوطه وسيله په سترګو نه ښکاري .

برسېره پردې دغه عقيده نه يوازې داچې ديوشخص همت اوقوت دهلو ځلو او کوښښ په لوري متوجه کوي بلکې له دې څخه لوړ دهغه کوښښونه او هلې ځلې دځانځانۍ اود نفرت اچونکې قام پرستۍ څخه يې پاکوي . هغه خپلې ټولې هلې ځلې دحق دپيروۍ او دسمې لارې په غوره کولو چې يوشخص لوړو اخلاقو او اهدافو ته رسوي په کار ګوماري هغه په دې پوهيږي چې عبث او بې هدفه نه دی پيدا شوی

بلکې الله تعالی جلت عظمته نږی، ته دکاراو مسؤلیتونو دسرته رسولو لپاره رالیږلی دی دهغه ژوند دشخصي اهدافو اومقاصدو دترسره کولو لپاره نه دی بلکې دژوند ستره اسره او مطلب یې دداسې چارو سرته رسول دي چې دالله پاک رضا او خوښې تر لاسه کړي او په دې یې کلک باور وي چې کومې چارې یې سرته رسولې دي ورسره به دقیقه محاسبه وشي ایا له داسې شخص نه پرته بل داسې څوک پیداکیدی شي چې هلې ځلې یې زیاتې او کارونه یې ګټور وي ؟

هغه څه چې مخکې مو وویل څرګندیږي چې داسې عقیده داسې شخصیتونه جوړوي چې په فردي سیرت او لوړو اخلاقو کې له ده نه لوړ هیڅوک په فکر کې نه راځي که چیرې یې موږ ټولنیز اړخ ته وګورو وبه وینو لومړی کار چې دغه عقیده یې ترسره کوي هغه دادی چې دبشري ټولنې بنسټ ته بشپړ بدلون ور بخښي . ددې عقیدې په سیوري کې ټول بشریت دالله تعالی رعیت اوبندګان په حقوقو او مراتبو کې سره برابر دي اسلام په نژادي او ژبنیو توپیرونو د بطلان کرښه راکاږي هیچاته دا اجازه نه ورکوي چې ځینې حقوق او امتیازات خپل ځان ته ځانګړي کړي اودنورو خلکو حقوق له مینځه یوسي

په دې ترتیب دغه عقیده دبشر دحاکمیت او یوپربل دسلطې او واکمنی ټغر ورټولوي او دټولو مفاسدو ریښې له بیخه نړوي ، هغه فسادونه او زیانونه چې پادشاهي ، فیوډالی پاپائیت ، برهمنیت او اروستوکراسی رامینځته کړي دي له مینځه وړي . په همدې توګه دغه عقیده په قبیلوي ، نژادي ، ملي، سیمه ئیزو درنګ او وینې تعصباتو ته دپای ټکی ږدي ټولې شخړې او دښمنی چې په نتیجه کې یې دلکونو انسانانو وینې وبهیدلې پای ته رسوي ځکه چې دا عقیده یې

اعلانوي چې ټوله ځمکه دالله جلت عظمته مخلوق اوټول انسانان دادم اولاد او دالله بندګان دي دانسان غوره والي په شرف ، نسب ، نژاد ، رنګ ، ژبې او شتمنۍ کې نه بلکې دشرف او لوړتیا چورلیزېي دالله په ویره او نیکو اخلاقو کې رانغښتی دی . دټولو خلکو ویاړمن او عزتمن هغه څوک دی چې له الله جل جلاله څخه ویریدونکی او دنیکو خویونو څښتن وي . په همدې توګه ددې عقیدې په چاپېریال کې ټولنیزی اړیکې او دلوړتیا معیارونه دخلکو ترمینځ بشپړ بدلون مومي داځکه داړیکو کوم معیارونه چې انسان له خپل ځانه جوړکړي او هغه یې دخلکو ترمینځ دیو والي او بیلتون معیار ټاکلي دي بشریت یې په بیلا بیلو برخو وویشلو او دهغوی ترمینځ یې خنډونه او فاصلې رامینځته کړې داځکه چې نژاد ، وطن، قام، رنګ او ژبه داسې مظاهر دي چې بدلون نه مومي هیڅکله نه شي کیدی چې یوڅوک یوه قبیله پریږدي او یوې بلې قبیلې پورې ځان وتړي البته اسلامي عقیده ددې نظریې پرخلاف ده داځکه چې دغه عقیده دالله جلت عظمته بندګي او دهغه دقانون پیروي دوحدت بنسټ اودحق اوباطل دپېژندلو معیار بولي . هغه څوک چې دبندګانو بندګي پریږدي الله عزوجل خپل څښتن ، اسلام خپل قانون او دژوند تګلاره وبولي او له ټولو باطلو قوانینو څخه سرغړونه اعلان کړي هغوی ټول یوه ډله او یو ټولګی دی او هغه څوک چې له دوی سره په مخالفت لاس پورې کوي هغوی بله ډله ګڼل کیږي .

پردې اساس بیلتونونه له مینځه درومي او یوازې په یوه شي کې اختلاف پاینت مومي چې دهغه پلې کول له کومې ستونزې نه پرته په هروخت کې اسانه بریښي داځکه چې په هر وخت کې یوشخص ته سهولت شته که وغواړي خپلې عقیدې ته تغیر اودخپل ژوند نظام ته بدلون وبخښي او له یوې ډلې خپل ځان غوڅ اوبلې پورې یې وتړي هرکله چې یوه ټولنه ددغې عقیدې پراساس اصلاح اوپریښو ودرول شي دټولنې په روح ، ذهنیت اوټولنیز بنسټ کې بشپړ بدلون رامینځته کیږي په دغسې ټولنه کې حکومت دالله عزوجل دحاکمیت پر اساس ټینګښت مومي هلته دبشر دحاکمیت ټغر

ټوليږي . دواکمنۍ اوقانون جوړونې صلاحيتونه يوازې دالله جلت عظمته سره وي او په دغه حق کې ورسره هيڅوک شريک نه دي انسان ددغسې دولت په اداره کې خپلې چارې او دندې دالله عزوجل داوامرو پر اساس سرته رسوي ددې کار په وسيله هغه مفاسد چې دانسان دحاکميت اوقانون جوړونې څخه رامينځته کيږي له بيخه ويستل کيږي هغه ډيرلوی امتياز چې ددغې عقيدې پر بنسټ په پښو درول شوی نظام يې په نورو لري دادی چې دعبادت اوتقوی روح ددې دولت دنظام په رګ رګ کې جريان لري .حاکم اومحکوم ټول باور لري چې موږ ټول دالله عزوجل په پراخه پادشاهي کې قرارلرو او زموږ ټولې چارې هماغه لوی اوسپيڅلي ذات پورې مربوطې دي چې په پټو اوښکاره ؤ ټولو پوه دی .

نو هرهغه څوک چې خپله دنده ترسره کوي په دې باور لري چې دالله جلت عظمته دسپيڅلي ذات درضا اوخوښې لپاره يې سرته رسوي پردې اساس دحکومت کارکونکي له پوليسو نه نيولې تر عادي افرادو ، قاضيانو او واليانو پورې ټول خپلې چارې په ديانت او صداقت سره دپينځه ګونه لمونځونو په شان عملي کوي داځکه چې دادواړه کارونه دده په نزد عبادت دي او په دواړو کې دتقوی روح چلند لري

دهيواد استوګن چې دخلافت اوحکومت دچارو لپاره څوک ټاکي هغه ستر معيار چې د دوی په ژوند کې يې پلټنه لاس پورې کوي يوازې الهي ويره ، صداقت ، امانت او سپيڅلتوب دی په دې ترتيب په ټولنه کې هغه څوک دچارو واکې په لاس کې اخلي او دهيواد داداره کولو لوی اودروند بار يې پر اوږو اېښودل کيږي چې اخلاق او امانت داري يې تر نورو غوره اوسي دغه عقيده دتقوی او لوړو اخلاقو روح په تمدن او ټولنيز ژوند کې خپروي دځان غوښتنې اوشهوت پالنې پرځای تقوی اودالله جلت عظمته څخه ويره غوره کوي او خپلې اړيکې دالهي قانون په برابر تنظيموي .

څرنګه چې دغه قانون هغه ذات وضع کړی دی چې له ناپوهۍ اونقصان څخه پاک اوسپيڅلی دی . هغه ذات چې په علم اوحکمت متصف دی پردې

اساس دبشري فطرت په ټولو اړخونو کې هغه شيان مراعات شوې چې انسان ورته اړتيا لري دغه قانون دټولو فتنو اوبدو چارو مخه نيسي .

په تاسف سره بايد ووايم داځای ماته ددې اجازه نه راکوي چې زه دلته داسلام دټولنيز نظام هغه نقشه وړاندې کړم چې ددې عقيدې پر بنسټونو تينګښت مومي البته کومې ځرګندونې چې مې مخکې کړې دي له هغې څخه تاسو اندازه لګولی شئ چې پيغمبرانو عليهم السلامو چې دکايناتو او انسانانو په هکله کوم تصور وړاندې کړی وو هغه په انسان کې کوم بدلون رامينځته کړ ، دهغې نتايج څه ؤ او څه وشو ه اوڅه کيدی شي ؟ بيا يوازې داخبره نه ده چې دايوه خيالي نقشه ده په حقيقت کې تاريخ ګواه دی چې ددغې عقيدې پربنسټ دټولنيز نظام تاداؤ ايښودل شوی او يو عظيم الشان رياست پرېښو دريدلی ؤ نه داسې وګړي چاليدلې اونه به وليدل شي او نه له داسې حکومته پرته بل حکومت دانسان لپاره رحمت ثابت شوی دی ددې حکومت په افرادو داخلاقي ذمه واری اومسؤليت احساس دومره پياوړی ؤ چې يوې باندې چې ښځې څخه دزنا عمل سرته و رسيد ، هغه په دې پوهيدله چې زما ددې جرم سزا پرما د تيږو اورول اووژل دي خو هغه پخپله راځي او غوښتنه کوي چې پرهغې دقتل سزا جاري کړی شي هغې ته ويل کيږي چې دماشوم تر زيږيدنې وروسته دې مراجعه وکړي له ضمانت نه پرته پرېښودل کيږي دماشوم ترزيږيدنې وروسته بيا رادرومي او دسزاعملي کولو غوښتنه کوي هغې ته ويل کيږي چې هرکله دغه ماشوم دشيدو رودلو موده بشپړه کړي دحد دقيام لپاره دې راستنه شي . ترد ې وينا وروسته بيا دباندې په لورې رهي کيږي او درضاعت دمودې ترپای ته رسيدلو وروسته بيا پخپله دحد د قايميدلو غوښتنه کوي چې له هغې ګناه څخه يې پاکه کړي چې له دې څخه سرته رسيدلې ځرنګه چې په هغې حد قايميږي او په مړينه محکوميږي هغې ته درحمت دعا کولی شي هرکله چې ديو سړي له خوا ناڅاپه دا وينا په خوله رادرومي چې دابې شرمه او بې حيا ښځه وه په ځواب کې ورته وويل شوه

دالله په ذات سوګند چې داسې توبه يې وکړه که چېرې دناروا محصول (ټکس) ټېښتن داسې توبه ويستلې وی بخښل شوې به وی.

داددې ټولنې دافرادو حال وو دحکومتي مسؤلينو اومشرانو يې داحالت وو چې دحکومت عوايد يې ميليونونو روپيو ته رسيدل چې خزانه يې دايران ، شام او مصر له غنايمو څخه ډکه وه ولسمشر به يې پنځوس روپۍ تنخواه اخيسته په ښار يانو کې به يې په ډېرې سختۍ سره داسې څوک پيداکيده چې دخيرات اخيستلو مستحق به ؤ .

له دغې تجربې نه وروسته که چېرته چاته دغه ډاډ په برخه نه وي چې پيغمبرانو عليهم السلامو دکايناتو دنظم په حقيقت او په هغه کې دانسان دحيثيت په اړه کومه نظريه وړاندې کړې ده هغه حق ده نو دداسې شخص داطمېنان او ډاډ په خاطر به بله کومه لاره شتون ولري ؟ داځکه چې دالله عزوجل دسپيڅلي ذات ، پرښتو او داخرت دژوند په سترګو ليدل خودوی ته په برخه کيدی نه شي چې مشاهده امکان ونه لري هلته له تجربې نه لوی دصحت بل معيارشتون نه پيدا کوي ددې مثال هغه ډاکټر ته ورته دی چې په رنځور کې يې دننه هيڅ نه دي کتلي چې دده دبدن په نظام کې کومه خرابتيا رامينځته شوې ده نو بيا بيلا بيلې دواګانې ورکوي اوګوري چې دده دبدن په تيارو کې کومه دوا په صحيح ننبه لګيږي او رنځ له مينځه وړي داددې خبرې غوڅ دليل دی چې په بدن کې کومه خرابتيا وه دوا ورسره جوړښت پيداکړ .

په همدې توګه کله چې انساني ژوند نن له بلې نظريې سره سمون نه خوري يوازې او يوازې دپيغمبرانو تګلاره ورسره جوړښت لري دا ددې خبرې دليل دی چې دغه طرزفکر له حقيقت سره سمون لري

په واقعيت کې دغه ټول کاينات دالله عزوجل سلطنت او پادشاهي ده له دې ژوند نه وروسته واقعاً بل ژوند شته چې هلته به انسان دخپل ټول ژوند حساب ورکوي .

# دين حق

داد مولـنا مـودودي رحمـة الله علـيه د ۱۹۴۳ مـيلادي کـال دمـارچ دمياشتې دهغې تاريخي وينا متن دی چې دډهلي په جامعه مليه کې يې وړاندې کړې وه .

# د ين حق

قران عظيم الشان چې له كومې دعوى سره بشريت ته دخپلې تګلارې په لوري بلنه وركوي په خپلو الفاظو كې يې داسې بيانوي: ان الدين عندالله الاسلام ) دغه كوچنۍ جمله ځما دوينا موضوع ده .

زه به په لنډ ډول ددې جملې معنا واضحه كړم ترڅو څرګنده شي چې په دې جمله كې دكوم شي دعوى وړاندې شوېده بيا به په دې بحث وكړم چې ايا ددې دعوى منل په كار دي او كه نه ؟ او په پاى كې به داخبره بيان كړم چې كه چېرې دغه دعوى ومنل شي.نو بيا ددې منلو غوښتنې څه دي ؟

په عمومي توګه ددې جملې مفهوم په ساده الفاظو كې داسې بيانولى شي چې(دالله عزوجل په نزد ريښتينى دين يواځې اسلام دى) داسلام دسپيڅلي دين تصور چې دعامو خلكو په ذهن كې ځاى نېولى دادى چې دادهغه مذهب نوم دى چې له نن نه ديارلس سوه كاله وړاندې رامينځته شوى او د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم په وسيله يې دبنسټ ډېره اېښودل شوې ده

دبنسټ ايښودلو لفظ زه په قصدي توګه وايم داځكه نه يواځې داچې نامسلمان وګړي يې وايې بلكې ډير مسلمانان، دعلم او پوهې څښتنان حضرت محمد صلى الله عليه وسلم داسلام دسپيڅلي دين بنسټ ايښودونكى بولي ګواكې ددوى په فكر داسلام پيل دحضرت محمد صلى الله علي وسلم له رسالت نه شوى او هغه ددې دين Founder مؤسس بلل كيږي .

نو هر کله چې يونامسلمان شخص دقران عظيم الشان په مطالعه لاس پورې کړي دغې جملې ته په رسيدلو له دې ځايه په ډيرې بې پروايې سره تيريږي او ګومان کوي لکه څنګه چې هريو دين دخپلې رينښتينولۍ دعوه لري او نور اديان باطل ګني نو په همدې توګه قران کريم هم له خپل لوري دخپل وړاندې کړې شوي دين درينښتينولۍ دعوه کوي.

هر کله چې يو مسلمان ددين د لفظ په لوستلو لاس پورې کوي نو له همدې کبله دغه کلمه دځه ځانګړي غور او فکر وړ ،نه بولي. داځکه دهغه په فکر کې چې کوم دين برحق ګڼل شوی پخپله هغه رينښتينی او حق دی او که چېرې دهغه په ذهن او فکر کې دغور لپاره څه تحريک رامينځته هم شي نو په عمومي توګه هغه دغه لاره غوره کوي چې له عيسويت ، يهوديت ، بودائيزم او هندوئيزم سره دې پر تله او ددې دين رينښتينولي دې ثابته کړی شي.

خو حقيقت دادی چې په قران کريم کې دغه داسې ځای دی چې ډير غور او فکر ته اړتيا لري البته تراوسه پورې چې په دې جمله کې څه غو راوفکر شوی ښايې چې يو پوه انسان پرهغې باندې ډير زيات غور او فکر وکړي ، که چيرته موږ د قران کريم په دې دعوی پوهيدل غواړو نو موږ ته د الدين او الاسلام د مفهوم تاکل ضروري دي.

## دالدين مفهوم

په عربي ژب دود کې ددين لفظ ګڼې معنا ګانې لري يوه معنا يې غلبه او برلاسی دی دويمه معنا يې غاړه اېښودل اوغلامي ده دريمه معنا يې جزا او بدله او څلورمه معنا يې لاره ، مسلک او د ژوند نظام دی. په دې ځای کې دغه لفظ دڅلورمې معنا يعنې د لارې او ژوندانه

دنظام او قانون په مفهوم راغلی يعنې ددين څخه هدف دژوند ، فکر او عمل هغه لاره ده چې دهغې پيروي دې وکړی شي .

البته دلته بنه سوچ وکړئ چې قران کريم يواځې ددين لفظ نه دی ويلی بلکې الدين يې بللی مطلب داچې دقران کريم دادعوه نه دی چې دالله جلت عظمته په وړاندې اسلام دژوند لاره ده بلکې اسلام دژوند رېښتينې حقيقي او عملي تګلاره ده

له دې نه وروسته داخبره هم په ذهن کې کښېنول په کار دي چې په قران کريم کې دغه لفظ ډير وسيع او ارت مفهوم لر ي . دژوند له لارې څخه دژوند يو خاص او ځانګړی اړخ هدف نه دی ، بلکې دټول ژوند لاره ورڅخه مطلوب ده . په انفرادي توګه ديو سړي دژوند لاره نه بلکې په مجموعي توګه دټولوولسونو لاره همدغه ده . په همدې توګه ديو ځانګړي هيواد ، قام او ولس او يو ځانګړي وخت لاره نه بلکې په هروخت کې دټول بشريت، ټولو ملتونو او تمدنونو دځانګړي او ټولنيز ژوند دتنظيمولو او لارښوونې لاره ده په هم دې اساس دقران عظيم الشان دمدعا مفهوم دانه دی چې دالله عزوجل په وړاندې لمونځ ، اودس او دمغيباتو عالم او دفکر اخرت دمجموعي عقيدې نوم يوازې اسلام دی په همدې توګه ددې مفهوم داهم نه دی چې دبشري افرادو په ځانګړي ژوند پورې دې مختص شي او په ټولنيز ژوند کې دې بې وا کړ وي لکه چې اوسني مغربي طرزفکر همدغه نظريه وړاندې کړ بده په همدې توګه دغه دين او نظام ترکوم ټاکلي وخت او ځای پور ې اختصاص هم نه لري بلکې تر قيامته پورې دټولې نړۍ دملتونو ، ولسونو او تمدنونو دټول ژوند سمه او رېښتينې لاره اسلامي نظام دی زه دهغه چاخبر ې ته ډير حيران شوم چې داروپا او اسيا ترمينځ په مينځګړي ځای کې يې دقران کريم دادول نوی تفسيروړاندې کړ ی دی (۱)۔

---

له دې خبرې څخه دمولنا هدف دترکي ژورنالستانو هغه وفد ته اشاره ده چې په ۱۹۴۳ م کال هندوستان ته راغلی ؤ دهغوی دپلاوي مشر دهمدغه خيالاتو څرګندونه کړې وه.

دهغوى په و ړاندې ددين مفهوم يواځې دبنده او رب ترمينځ انفرادي اړيكې د ي دتمدن ، دولت ، حكومت او سياست نظام ورڅخه مستثنى ګرزي زه نه پوهيږم چې ددين دغه تفسير دوى له كوم ځايه ترلاسه كړى دى ؟ په باوري توګه ويلى شم چې دايې داسلام له سترو كينه كښو سرسختو دښمنانو څخه اوريدلى او په ناپوهى سره يې داسلام ساده دوستان هم زمزمه كوي

دقران كريم داوږدې مطالعې نه ماته معلومه شوې ده چې ددين لفظ په محدوده معنا كې استعمالول ګمراهي او ضلالت دى حقيقت دادى چې دين ترقيامته پورې دټولو انسانانو دټول ژوند دتنظيم په خاطر دفكر او عمل دبشپړ نظام نوم دى .

## دالاسلام مفهوم:

په عربي ژبه كې داسلام دلفظ معنا دډال او سپر اېښودل ، ټيټيدل ، او ځان سپارل دي البته قرانكريم يواځې اسلام نه بلكې الاسلام يې ويلى او دايوه ځانګړې اصطلاح ده ددغې مخصوصې اصطلاح څخه دقران عظيم الشان هدف دالله عزوجل په مخكې ټيټيدل ،دهغه بندګي قبلول او دهغه عزوجل په وړاندې دخپلې ازادۍ نه لاس اخيستل او خپل ځان ورته سپارل دي .ددې منلو ، غاړه اېښودلو او ځان سپارلو معنا دانه دى چې دكايناتو دقانون( Law of Nature) په وړاندې دې ډال كېښودل شي لكه چې ځينو خلكو ددې مفهوم داخيستلو كوښښ كړى دى

په همدې توګه يې معنا داهم نه ده چې انسان دخپل فكر او تجربې پر اساس دالله درضاء او خوښۍ دلاسته راوړلو په خاطر له خپل

ځان نه یو تصور ،فکر او دژوند لاره جوړه او اطاعت يې پيل کړي لکه چې ځينو خلکو دخپلې ګمراهۍ او ضلالت له کبله دارنګه فکر او نظر وړاندې کړی بلکې ددې معنا دادی چې الله پاک په خپله د پيغمبرانو په وسيله دانسان لپاره چې دفکر او عمل دکومې لارې په لور لارښوونه کړې هغه دې ومنلی شي او دخپل فکر او عمل ازادي نه بلکې په صحيحو الفاظو يې واېم دفکر اوعمل بې لارتيا دې پريښودله شي او دالله عزوجل پيروي او بندګي دې اختيار کړی شي.

قران کريم دغه لفظ دالاسلام په لفظ سره تعبير کړی .حقيقت دادی چې داد نوې زمانې ديومذهب نوم نه دی چې ګواکې دهغې دبنسټ ډبره له نن نه څوارلس سوه کاله وړاندې په عرب قام کې دحضرت محمد صلی الله عليه وسلم په وسيله ايښودل شوې بلکې له کومې ورځې نه چې دځمکې پرمخ انسان راڅرګند شوی له هماغه وخته الله جلت عظمته انسان ته دابنودلې ده چې ستا لپاره يوازې الاسلام دژوند صحيح تګلاره ده

تر دې وروسته دنړۍ په بيلا بيلو برخو کې چې وخت په وخت کوم پيغمبران دبشر دلارښوونې لپاره رالېږل شوې ؤ دهغو ټولو بلنه بلا استثناء دهمدغه اسلام په لورې وه چې په پای کې دهغې په لورې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم نړۍ والو ته دعوت ورکړ

البته دايوه بيله خبره ده چې د حضرت موسی عليه السلام پيروانو ډير شيان ورسره يوځای کړل او ديهوديت په نوم يې مسمی کړ په همدې توګه دحضرت عيسی عليه السلام پيروانو يوبل نظام دمسيحيت په نوم او په دې توګه دهند ، ايران ، چين او دنورو هيوادونو دمشهورو انبياؤ پيروانو له نورو نظامونو سره په بل نوم ديوګډ نظام دبنسټ ډبرې کيښودلې

البته حضرت موسی او عيسی عليهم السلام او نورو ټولو مشهورو او غير مشهورو پيغمبرانو چې دکوم دين لورته بلنه ورکړې وه هغه سوچه او خالص اسلام ؤ نه نور څه .

## دقران عظيم الشان مدعا څه شی دی؟

له دې څېړنې و روسته دقران کريم دعوی په څرګنده توګه زموږ مخې ته راځي او هغه دا چې ( دبشريت دلاربنوونې لپاره دالله عزوجل په وړاندې يوازې او يوازې دژوند صحيح لاره هغه ده چې دهغه عزوجل په وړاندې دتسليم سر کيښودل شي او دفکر او عمل په هغه لاره ګامونه واخيستل شي چې هغه عزوجل يې دخپلو پيغمبرانو په وسيله لاربنوونه کړې ده ) دغه دقران عظيم الشان دبلنې لنډيز دی

اوس موږ ته ددې خبرې څېړنه په کار ده چې ايا موږ دغه دعوی ومنو او که نه؟ په خپله قران کريم دخپلې مدعا په تائيد کې چې کوم دلايل وړاندې کړي په هغو خو به موږ ارومرو غور کوو خو داسې ولې ونه کړو چې لومړی دخپلې څېړنې او پلټنې په رڼا کې داخبره معلومه کړو چې ايا موږ ته ددې دعوی دمنلو نه پرته بله لاره شته ؟

## دژوند تيرولو لپاره دلارې ضرورت

دايوپه ډاګه حقيقت دی چې په نړۍ کې هر انسان د ژوند تيرولو په خاطر يوې لارې غوره کولو ته اړتيا لري . انسان څه سيند نه دی چې دځمکې لوړې ژورې به دده لپاره لاره ټاکي په همدې توګه يوه ونه هم نه ده چې دفطرت قوانين به ورته لاره غوره کوي او همدارنګه حيوان هم نه دی چې دهغه دلاربنوونې لپاره به يوازې حيواني غرايز کافي وي انسان دخپل ژوند په لويه برخه کې دطبيعي او فطري قوانينو محکوم دی هيڅکله کيدی نه شي چې دځناورو په شان بې اختياره په مخه روان وي

حقيقت دادی چې انسان خو به په خپله خوښه دخپل ځان لپاره يوه لاره خوښوي دده لپاره خو دفکر يوه داسې لاره ضروري ده چې پر هغې باندې دخپل ځان او کايناتو ډيرې مسئلې حل کړی کومې چې بشري فطرت يې دهغه په مغزو کې راولي خو دهغې څه حل ورته په ځرګنده ژبه کې نه ورښئ

هغه ته دعلم يوه لاره په کار ده چې دهغې په وسيله خپل معلومات تنظيم کړي کوم چې بشري فطرت يې دحواسو په ذريعه دده ترذهنه ور رسوي خو په يو منظم او مربوط شکل يې ورته نه سپاري دشخصي ژوند دتنظيم په خاطر ورته ديوې لارې اړتيا ده چې پرهغې باندې خپلې غوښتنې تر سره کړي خو دهغې دپوره کولو لپاره ورته څه مهذبه ټاکلې لاره په لاس نه ورکوي .

انسان دخپل کورني ژوند دکورنيو اړيکو او اقتصادي معاملاتو ، دحکومتي نظام او دنړۍ والو اړيکو او دژوند دډيرو نورو اړخونو لپاره هم يوې لارې ته ضرورت لري چې په هغې باندې يوازې ديو فرد په توګه نه بلکې ديوې ټولنې ، ولس او بشري نوع په حيث چلند وکړي او هغو اهدافو ته ورسيږي چې فطرتاً له ده څخه مطلوب دي .

البته بشري فطرت خو هغه مقاصد نه په ځرګند شکل دده ترمخه ځرګند کړي او نه يې هغو ته درسيدلو لپاره ورته لاره ټاکلې ده .

## بشري ژوند ويش نه مني

دژوند په بيلا بيلو اړخونو کې دانسان لپاره ديوې لارې انتخاب يو ضروري چاره ده دژوند ګن اړخونه څه ځانته مستقلې ځانګې نه دي چې يو بل ته يې اړتيا ونه اوسې پردې اساس هيڅکله کيدى نه شي چې ددې بيلا بيلو ځانګو دسمبالښت لپاره جلا جلا لارې انتخاب کړي چې دهرې يوې لارې توښه او په هغې دتللو او راتللو طريقه او په هغو باندې دسفر کولو غوښتنې او ضروريات او دهغوی منزل مقصود دې هم سره جلا وي

که چېرې دعقل او پوهې په رڼا کې دانسانانو دژوند په مسايلو دپوهيدلو لپاره شان کوښښ وکړی شي نو څرګنده به شي چې ژوند په مجموعي توګه يو کُل دی چې هره برخه اوهر اړخ يې له يو بل سره ټينګ تړاؤ لري داسې تړون چې پرانستلی نه شي هره يوه برخه په بلې برخې اغيزه غورځولی شي او په ټولو کې يوشان روح چلند لري دټولو له مجموعي څخه انساني ژوند جوړيږي .

په واقعيت کې دانسان لپاره چې دکوم شي ضرورت دی هغه دژوند اهداف نه بلکې يو هدف دی چې دهغې په ترڅ کې کوچني اولوی مقاصد په بشپړ سمون سره خپل خپل ځای نيولی شي او چې هغه حاصل شو نو ګواکې ټول اهداف ترلاسه شوه . هغه ته ډيرې لارې نه بلکې يوه داسې لاره ضروري ده چې په تعقيبولو سره يې دژوند هدف ته ورسيږي .او دژوند په ټولو اړخونو کې يې ديوبل ترمينځ بشپړه هم اهنګي رامينځته شي هغه ته دفکر ، علم ،ادب ، ښوونې ، مذهب ، اخلاقو ، ټولنيز ژوند ، اقتصاد ، سياست قانون او داسې نورو چارو لپاره جلا جلا نظامونه نه بلکې يوداسې بشپړ نظام په کار

دی چې دهغې په دننه کې داټول په پوره پوره برابرۍ سره ځای ونيسي . او چې په هغه کې داسې مناسب اصول او قواعد موجود وي چې مزاج او طبيعت يې سره يوشان وي چې په بشپړې پيروۍ سره يې بشريت خپل لوړ مقصود ته ورسيږي . دجاهليت هغه توره تياره دوره تيره شوې ده چې په هغې کې دژوند په هکله دغه تصور ؤ چې ژوند دې په بيلا بيلو څانګو وويشل شي او که چېرې ددې بې کاره تصور او فکر څښتنان شتون هم ولري نو هغه بې چاره ګان خو په ډېر اخلاص دزړو افکارو په نړۍ کې قرار لري له همدې کبله دترحم وړ ګڼلی شي او يا خو دغه ظالمان حقيقت ښه پيژني ولې قصداً دغه خبرې ، اترې کوي داځکه کوم نظام چې دوۍ په يو هيواد کې جاري کول غواړي . نو دهغه نظام له اصولو او بنسټونو سره اختلاف لرونکووګړو ته ډاډګيرنه ورکول ضروري بولي چې زموږ ددې قانون په سيوري کې به ستاسو دژوند هغو او دغو څانګو ته چې پرتاسو ډيرې دقدر وړ دي تحفظ حاصل وي په داسې حال کې چې دا تحفظ دعقل او فطرت له مخې محال او په عملي توګه ناشونی دی .۱

داځکه چې هريو واکمن نظام دژوند په ټولو څانګو کې دخپل مزاج په برابر دخلکو سمون غواړي لکه څرنګه چې دمالګې په يولوښي کې يوشی ولويږي نو ښا له هغه سره مالګه مالګه شي ۲.

(۱):- يعنې دقوميت دين چې په هغې کې دالله جل جلاله دکتاب او دهغه دپيغمبر دسنتو هيڅ واک نه وي يوازې ددنيوي مادي ګټو په بنسټ ديو هيواد داستوګنو لپاره دژوند يو نظام جوړيږي .

(۲):- ددې مسئلې دتفصيلي څيړنې لپاره دمصنف دکتاب دهند د ازادۍ خوځښت او مسلمانان، مطالعه ګټوره ده .

## دژوند سیمه ئیز او توکمیز ویش

څرنګه چې داخبره بې اهمیته ده چې ژوند دې په سیمه ئیزو حلقو او یا قامي دایرو کې وویشل شي جوته ده چې انسان دځمکې په داسې برخو کې استوګن دی چې په خپل مینځ کې سیندونو ، غرونو ، ځنګلونو سمندرونو او یا مصنوعي سرحدونو سره جلا کړی دی په انسانانو کې بیلا بیل قامونه اوتوکمونه هم موجود دي چې دهغوی ترمینځ دتاریخي او نفسیاتي وجوهاتو له امله دبشریت ودې او ښېرازتیا بیلا بیل شکلونه غوره کړې دي اوس که چېرته یو څوک دغه اختلاف ددلیل په توګه ومني او یوشخص دا ووایې چې دهرتوکم او قام او دهرې سیمې لپاره دې جلا جلا دژوند نظامونه وي داخبره په بشپړه توګه بې اساسه او بې بنسټه ده او د لنډ ، تنګ نظر دمظاهرو او عوارضو په بدلونونو کې اغېزل شوي له دې امله هېڅ دې ښکاره کثرت کې دبشري جوهروحدت له سترګو پناه شوی .

که چېرې په واقعیت کې دااختلاف دومره داهمیت وړ وی چې له امله یې دبیلا بیلو دینونو ضرورت رامینځته شي په زغرده ویلی شو چې دیو هیواد او بل هیواد او دیو توکم او بل توکم تر مینځ چې څومره زیات بدلونونه موندلی شي څومره چې ستاسې زړه یې وغواړي په بشپړې مبالغې سره هې په خپل فکر کې راولئ او بیا ددغو بدلونونو علمي جایزه واخلئ کوم چې په نارینه او ښځینه او دیو مور او پلار په دوو اولادونو کې موندلی شي دعلمي تحلیل په رڼا کې که چېرې دغه مسئله وڅېړو ښایې مبالغه به مونه وي کړې چې دلومړي ډول اختلاف او بدلون څخه دویم ډول اختلاف ډېرزیات دی نو بیا داسې څنګه نه

شو ویلی چې دهر شخص لپاره دې دژوند جلا قانون او نظام وي .
هرکله چې تاسې دانفرادي ، نژادي او خانداني کثرت دننه د وحدت
یوداسې دایمي عنصر موندلی شئ چې دهغې پر بنسټ دیوقام او
یادیو هیواد دلویې برخې داستوګنو لپاره دژوند یو نظام ممکن ګڼلی
شي نو په پای کې کوم شي ستاسې په وړاندې بندیز اچولی دی چې
دقامي، نژادي ، وطني او سیمه ئیزو کثرتونو ترمینځ د یولوی بنسټیز
وحدت عنصر نه شئ موندلی دبنسټیز وحدت یو داسې عنصر چې پر
هغې دانسانیت او بشري تمدن تصور ټینګ او پر اساس یې دټولې
نړۍ د ولسونولپاره یودین او دژوند یو نظم شوني وګڼل شي .ایا دایـو
واقعیـت نـه دی چـې دټولـو سیـمه ئـیزو ، نـژادي او قامـي ا
ختلافاتو او بدلونونو سره سره په بنسټیزواموروکې ټول انسانان سره
برابردي .ایا طبیعي او تکویني قوانین په یو ډول نه دي دکومو تر
سیوري لاندې چې په نړۍ کې انسان ژوند تیروي؟ ایاانګړتیاوې چې
دهغې پر اساس انسان له نورو موجوداتو څخه دیوې مستقلې نوعې
حیثیت موندلی سره مساوي نه دي ؟ ایا دبشر فطري غوښتنې سره
شریکې نه دي؟ کومې چې دانسان په ختـه کې اغږل شوې دي ایا هغه
څواکونه چې دهغوی مجموعې تـه مـوږ انساني نفس وایو یوشان نه
دي؟ایا پـه بنسټیزه توګـه دا نسانانو طبیعي، روحاني ،تاریخي،
تمدني او اقتصادي ارزښتونه چې دانسان په ژوند اغیزه پرې باسې
سره یو رنګ نه دي؟

که چیرې حقیقت همدغه وي چې پـه دې ټولـو امـورو کـې انسانان
سره برابر دي نو بیاخو ښایې هغه اصول او قوانین هم نړۍ وال واوسي
کوم چې دانسان دتکامل او ښیګڼې په خاطر په بشپړه توګه صحیح
دي ددې هیڅ جواز نه شي کیدی چې هغه دې قام ، وطن او یانسل

پورې تړلې وي قامونه او توکمونه ددې اصولو په رنګ کې دخپلو ځانګړتياؤ څرګندونه او په جزيې ډول دخپل ژوند دمعاملاتو انتظام په بيلا بيلو لارو چارو کولی شي او هغوی ته داسې شان کړنه ضروري هم ده خو انسان ته دانسان په حيثيت چې دکوم صحيح دين او دژوند دنظام ضرورت دی هغه پر هرحال کې يو او ارومرو يو په کار دی عقل داخبره نه مني چې کوم شی ديوقام لپاره حق وي هغه دې دبل قام لپاره باطل وګرځي او يا چې ديو قام لپاره باطل ؤ دبل لپاره دې حق شي

## دژوند زماني ويش

په دې عبثياتو او دنوې وخت په عالمانه بې ځايه ويناؤ کې يوه بله خبره چې دحقيقت له مخې په ټولو کې زياته بې ارزښته ده خود حيرانتياخبر ه ده چې په بشپړ ډاډ او يقين سره وړاندې کولی شي هغه دبشري ژوند دزماني ويش مسئله ده يعنې داسې ويل کېږي چې دژوند يو نظام په يو وخت کې حق وي بيا دبل وخت لپاره هغه باطل ګڼلی شي داځکه چې دژوند مسايل او چارې په هر وخت کې بدلون مومي او دژوند ديونظام حق او يا باطل ګڼل کيدل په يقيني توګه ددې مسايلو او چارو په نوعيت پورې اړيکه لري دغه دار تقا د نظريې دځښتنا نو مفکوره ده چې دهغې په تاريخ کې دکارکونکوقوانينو پلټنه هم لګياده ترسره کيږي او بيا دتيرو تجربو څخه دحال او راتلونکي لپاره احکام راويستلی شي اود هغې لپاره دانساني فطرت نوم هم ثابتولی شي.

زه داپوښتنه کوم چې ايا تاسوسره د هيڅ کولو لپاره داسې يوه پيمانه شته چې پر هغې باندې دبشري نوعې ددې مسلسل تاريخي

حرکت ترمينځ دوخت او زمـان حد وټاکلی شي او ايا داکيدی شي چې ددې واټن پـه حدودو تاسې دصحت ګوته کښيږدی ؟ او يا داوويلی شي چې ددې کرښې څخه وراخوا چې دژوند کومې مسئلې وي هغو او س تغير وموند اوهغه پيښې دلته شتون نه لري کـه چېرې واقعيت همداسې وي او بشري تاريخ په بېلا بيلو وختونو وويشل شي نو بيا خو داسې ويل په کار دي چې دتاريخ کومه برخه تيره شوې ده هغه دراتلونکې لپاره په کارنه راځي دتير شوي وخت هرڅه عبث شول دانساني ژوند پـه هغه اړخ کې چې بشر کومې تجربې لاسته راوړې وې دراتلونکي وخت لپاره پـه کې څـه سبق او درس پاتې نـه شـو ځکه چې هغه حالت او مسايل په فناء محکوم شول چې په هغې کې انسـان دځينو لارو چارو اوځينو اصولو او قواعدو لپاره دهلو ځلو تجربې کړې وې نـو بيا دارتقـاء داغالمغـال او شـور دڅه لـپاره دی ؟ دژوند دقوانينود څيړنې هدف څه شی دی ؟ او تاريخي استنباط په کومو بنسټونو ولاړ دی ؟ هرکله چې تاسې دارتقاء نوم اخلئ نو اورمرو داخبره په دې کې پټه ده چې هلته اورمرو څه شته چې هغه ددې ټولو بدلونونو موضوع ګرځيدلې ده او ددې بدلونونو دننه دخپل ځان دپايښت لپاره په يو مخ حرکت کوي ؟ هرکله چې تاسې دژوند دقوانينو څخه بحث کوئ نو له دې سره داخبره تړل شوې ده چې د دې ناپايښته حالاتو پـه روانو زغليدونکو مظاهرو او په دې ورانيدونکو او جوړيدونکو صورتونو کې څه داسې ژوندی او تلپاتې حقيقت موجود دی چې هغه ذاتي فطرت او خپل مستقل قوانين لري .

هـرکله چـې تاسـو دتـاريخ نـه استنباط کوئ نـو ددې معـنا دادی چـې دتاريخ په دې اوږده واټن چې کوم مسافر دبيلا بيلو مرحلو څخه تير شوی او پـه مخـه روان دی او لـه يومنزل نـه بـل تـه رسيږي هغـه دخپل شخصيت او مستقل مزاج څښتن دی او دهغه په هکله داحکم کولی شي چې په ځانګړو حالاتو کې په ځانګړي ډول کارکوي په يووخت کې چې ځينې شيان قبول کړي نو په بل وخت کې يې رد کولی او دځينو نورو شيانو غوښتنه هم کولی شي

نو داژوندی حقیقت او دبدلونونو تلپاتي موضوع او دتاریخ دلويې لارې مستقل مسافر څوک دی ؟

ځواب به يې داوي چې داخو هماغه څوک دی چې تاسو ورته انسان وايې البته دایوه نااشنا خبره ده چې کوم وخت تاسو دلارې د دې پړا ؤنو او په دې منزلونو کې دپيښيدونکو حالاتو او د دې حالاتو په نتيجه کې دپيداشويو پيښو په هکله خبرې اترې پيل کړې نو پدې خبرو اترو کې داسې ډوب شئ چې مسافر غريب مو له ياده ووځي ايا داحقيقت دی چې د پړاؤ نو او حالاتو او د مسئلو په بدليدوسره مسافر او دهغه حقيقت هم بدليدی شي ؟موږ خو په خپلو سترګو ګورو چې دبشريت دپيل نه واخله تر نن ورځې پورې دهغه کړه وړه نه دي بدل شوي له کومو عناصرو څخه يې چې جوړښت موندلی هغه هم هغه دي چې زرګونه کاله وړاندې ؤ دهغه طبيعت او مزاج هم په هغه ډول دی کوم چې په پيل کې ؤ دهغه دفطرت غوښتنې او دهغه ځانګړتياوې او صفتونه هم هغه شان دي کوم چې پخواؤنه دهغه خواهشاتواو تمايلاتو بدلون موندلی او نه دهغه په صلاحيتونو او ځواکونو کې څه بيلتون رامينځته شوی دهغه کمزورتيا او قابليتونه هم هغه دي کوم چې پخوا ؤ دهغه دفعل انفعال دتاثير او تاثرقواعد هم په زاړه دستور دي، په ده باندې چې کوم ځواکونه اغيزه کوي هغه هم هماغه دي کوم چې پخوا ؤ ، دکايناتو چاپيريال هم نه دی بدل شوی.په دې ټولو شيانو کې دانسانيت دپيدايښت له پيله ترننه پورې ديوې ذرې په اندازه بيلتون نه دی راغلی هيڅوک دادعوی نه شي کولی چې دتاريخ په جريان کې دحالاتو او له هغه څخه دراپيښو شويو پيښو په بدلون ګواکې انسانيت هم بدلون موندلی دی او يا په هغو بنسټيزو شيانو کې څه بدلون رامينځته شوی کوم چې دبشريت سره تړاؤ لري .

نو اوس چې هر کله حقيقت په دې ډول دی نو بيا په دې دعوه کې څومره وزن کيدی شي چې دانسان لپاره پرون کوم شی ترياک ؤ هغه ورته نن زهر شوه او ياچې کوم شی ورته حق ؤ هغه ورته نن باطل وګرځيدل .

## دژوندتېرولو لپاره انسان څرنګه لارې ته اړتيا لري؟.

حقيقت دادی چې بشري افرادو او ټولنو دتاريخ په اوږدو کې په انساني روحياتو او په هغې پورې اړوندو شيانو باندې بشپړه پوهه نه ده ترلاسه کړې بلکې په اشتباه او غلطۍ کې پريوتي دوی دځينو حقيقتونو په منلو کې مبالغه او دځينونورو په منلو کې يې له نېمګړتيا څخه کار اخيستی دی او په دې ډول يې وخت پروخت دخپل ژوند دتنظيمولو لپاره له خپل ځان نه غلط نظامونه غوره کړي ، هغه دستر انسانيت HumanityLage دتحقيق او څېړنې نه وروسته غلط ثابت شول نو ځکه دنورو نظامونو په پرېښودلو مجبور شول ددوی دحالاتو دمشاهدې نه وروسته چې کومه نتيجه اخيستل شوې ده هغه داچې دبشريت لپاره په يقيني توګه دتاريخ په هر پړاؤ کې دژوند دتنظيمولويوجلانظام ضروري دی چې يوازې دهماغه وخت دحالاتولپاره رامينځته شوې پيښې حل کړي .حال دادی چې ددې تاريخي پيښو نه که چېرې زياته څه صحيح نتيجه اخيستل کيدی شي نو هغه دادی چې دبشر په لاس دجوړوشويو نظامونو په ازمويلو دانسان ژوند او وخت بربادېږي او هغه په خپل منزل غمولی شي دهغه په وده او پرمختګ او دهغه دمطلوبه کمال او دهغه دترقۍ په لار کې بنديزونه اچولی شي .

حقيقت دادی چې هغه دژوند ديوداسې نظام لپاره اړتيا لري چې پخپله دی او په ده پورې اړوند ټول حقايق وپېژني او په نړۍ والو تلپاتي او دايمي اصولو باندې يې دبنسټ ډبره اېښودل شوې وي او

## دژوند تېرولو لپاره انسان څرنګه لارې ته اړتيا لري؟.

حقيقت دادی چې بشري افرادو او ټولنو دتاريخ په اوږدو کې په انساني روحياتو او په هغې پورې اړوندو شيانو باندې بشپړه پوهه نه دی ترلاسه کړې بلکې په اشتباه او غلطۍ کې پريوتي دوی دځينو حقيقتونو په منلو کې مبالغه او دځينونورو په منلو کې يې له نېمګړتيا څخه کار اخيستی دی او په دې ډول يې وخت پروخت دخپل ژوند دتنظيمولو لپاره له خپل ځان نه غلط نظامونه غوره کړي ، هغه دستر انسانيت HumanityLage دتحقيق او څېړنې نه وروسته غلط ثابت شول نو څکه دنورو نظامونو په پرېښودلو مجبور شول ددوی دحالاتو دمشاهدې نه وروسته چې کومه نتيجه اخيستل شوې ده هغه داچې دبشريت لپاره په يقيني توګه دتاريخ په هر پړاؤ کې دژوند دتنظيمولويوجلانظام ضروري دی چې يوازې دهماغه وخت دحالاتولپاره رامېنځته شوې پيښې حل کړي .حال دادی چې ددې تاريخي پيښو نه که چېرې زياته څه صحيح نتيجه اخيستل کيدی شي نو هغه دادی چې دبشر په لاس دجوړوشويو نظامونو په ازمويلو دانسان ژوند او وخت بربادېږي او هغه په خپل منزل غمولی شي دهغه په وده او پرمختګ او دهغه دمطلوبه کمال او دهغه دترقۍ په لار کې بنديزونه اچولی شي .

حقيقت دادی چې هغه دژوند ديوداسې نظام لپاره اړتيا لري چې پخپله دی او په ده پورې اړوند ټول حقايق وپيژني او په نړۍ والو تلپاتې او دايمي اصولو باندې يې دبنسټ ډېره اېښودل شوې وي او

چې دهغې په ملګرتيا کې دحال او استقبال دټولو بدليدونکو حالاتو
څخه په پوهې دتيريدلو وړ وګرزي او هغه پيښې حل کړي کومې چې
ددې حالاتو څخه رامينځته شوې دي او په دې توګه دژوند په لاره کې
دټکر څخه پرته دهدف په لور روان وي .

## ايا انسان دژوند دارنګه نظام پخپله جوړولی شي؟

داهغه دين او دژوند لاره او يا دژوند دلارې نوعيت دی چې انسان
ورته اړتيا لري .اوس موږ ته کتل په کار دي چې که چېرې انسان دالله
دمرستې پروا ونه ساتي او دخپل خان لپاره همداسې يو دين جوړول
وغواړي نو ايا هغه به پدې کوښښ کې بريالی شي ؟ زه به له تاسو
څخه داپوښتنه ونه کړم چې ايا انسان تردې وخته پخپله ديو داسې
دين په جوړولو کې بري ته رسيدلی دی ؟ ددې خبرې څواب خو په
بشپړه توګه منفي دی پخپله هغه وګړي چې نن دلويو لويو دعوو سره
خپل نظا مونه وړاندې کوي او په دې لړ کې ديو بل ګريوانونو ته لاس
اچوي هيڅکله دادعوه نه شي کولی چې ددوی له خوا پدې ټولو
وړاندې شويونظا مونو کې دبشرټول ضرورتونه پوره کيدلی شي دکوم
لپاره چې انسان ديو انسان په حيثيت ديو دين محتاج دی داځکه چې
دځينو خلکو ددين بنسټ په توکم ، قام ، په سيمه ئيزو او طبقاتي
اساساتو اينبودل شوی او ځينې نور بيا دهغه وخت دغوښتنو محصول
دي کوم چې اوس اوس تيرشوې دي پاتې شو هغه وخت چې سبا ته به
رادرومي دهغو حالاتو او مسايلو په هکله خو په بشپړه توګه څه نه
شي ويل کيدی چې هغه به په کار راتلی شي او که نه ؟ البته چې کوم
وخت اوس روان دی تراوسه خو دهغې دتاريخي غوښتنو جاج

اخیستل پاتې دي نو ځکه زه داپوښتنه نه کوم چې انسان د داسې دین په جوړولو کې بریالی شوی او که نه ؟ داپوښتنه ستر اهمیت لري او سرسري څېړنه کول پرې مناسبه نه ده دادانساني ژوند له پریکنده اوغوڅو پوښتنو څخه ګڼل کیږي له همدې کبله په دې بنه غور او فکر په کار ده هغه کوم شی دی چې جوړول یې رامینځته شوې او دهغه شخص لیاقت څومره ده دچا په برخه کې چې داپوښتنه لګیا ده کیږي چې هغه داجوړولی شي او که نه ؟

## دالدین نوعیت

دانسان دلارښوونې لپاره چې دکوم یو دین اړتیا ماثابته کړه له هغه نه هدف څه تفصیلي ظابطه نه ده چې په هغې کې دې دهروخت او دهررنګه حالاتو لپاره تول لوی او واړه جزئیات مرتب شوي واوسي او دهغې په موجودیت کې دې دانسان کار یوازې دومره وي چې په هغه عمل وکړي .بلکې په حقیقت کې له دین نه هدف داسې شامل تلپاتې ازلي او ابدي قوانین دي چې په ټولو حالاتو کې انسان ته لارښوونه کولی شي او دهغه دفکر ، نظر ، زیار ، کوښښ او پرمختګ لپاره لاره تاکلی او په غلطو تجربو کولو کې یې دوخت ، کوښښ او زیار دلګولو نه ژغورلی شي . ددې هدف لپاره له ټولو نه ضروري خبره داده چې انسان دې نه یوازې په تخمین او اټکل بلکې په بشپړ علم سره اګاهانه په دې خبره پوه وي چې دهغه او کایناتو حقیقت څه شی دی ؟ او په کایناتو کې دده خپل حیثیت څه ده ؟ او بیا دهغه لپاره په دې خبره علم راوستل ضروري دي چې ایا انساني ژوند یوازې دنیوي ژوند دی ؟ او که دټول ژوند یوه پیلیزه برخه ده ؟ ایا سفر له پیدا ینبت نه واخله د مرګ ترسلګۍ پورې دوام لري او که نه دادټول سفر یو پړاو

دی ؟ بيا دهغه له دې نه هم خلاصون نه شي کيدی چې دهغه لپاره دژوند يو داسې هدف وټاکلی شي کوم چې دحقيقت پر بنسټ وي نه دخواهش په بنياد ، دواقعي انساني ژوند هدف وي هغه هدف چې دهغې په خاطر انسان رامېنځته شوی. له هغې سره سره هر فرد او دافرادو هره مجموعه او په مجموعي حيثيت دټول بشريت ټول هدفونه په ټولو وختونو کې دتصادم او ټکر له ويرې څخه پرته هم اهنګ کيدلی شي بيا هغه ته داخلاقو داسې قوي او هراړخيز اصول او قواعد ضروري دي کوم چې دهغه دفطرت دټولو ځانګړتياؤ سره سمون ولري او په ټولو ممکنو حالاتو کې نظري او عملي لحاظ نه جوړښت ولري ددې په خاطر چې هغه ددې اصولو پر بنسټ خپل سيرت او عملي ژوند جوړ کړي او دهغو په لارښوونه دژوندانه دسفر په هر پړاؤ کې درا پيښوشوېو مسئلو دحل کولو صلاحيت ولري . او هيڅکله له دې خطر سره مخامخ نه شي چې دبدلېدونکو رابدلېدونکو حالاتو او پيښو له کبله دې دهغه اخلاقي اصول هم بدلون ومومي او هغه دې بې اصوله ابن الوقت جوړ شي .

بيا هغه ته دتمدن دداسې هراړخيزو پراخو اصولو اړتيا ده چې دبشري ټولنې ، حقيقت ،هدف او دهغې فطري غوښتنې وپيژني چې نه په کې افراط وي او نه تفريط او نه څه لوړه او ژوره اوچې په هغو کې دټول بشريت دمجموعي ښېګڼې او مصلحت لحاظ ساتل شوی وي چې په پيروي سره يې دبشري ژوند دهراړخ تنظيم او دتعمير او پرمختګ لپاره زيار ويستل ممکن وي .بيا هغه ته د داسې حدودو او پولو ضرورت دی چې دهغه شخصي کړنه او ټولنيز چلند دهغه انفرادي او ټولنيز کوښښ ته دمنزل په صحيح لوري مخه ورکړي اوله بې لارې کيدلو يې وژغوري داسې حدود او پولې چې له بې لارتيا څخه

یې ساتنه وکړي داسې حدونه او پولې چې دژوند په لویه لار کې دنښو نښانو رول ولوبوي او په هر کږلیچ او هرې دوه مخېزې لار او په هرخطرناک موړکې هغه ته لار ښوونه وکړي چې ستا لاره دانه بلکې هغه ده .

بیا هغه ته دیو څه داسې عملي ظو ابطو او قوانینو ضرورت هم ده چې هغه دخپل نوعیت له مخې دنړۍ والې اوتلپاتې پیروۍ وړتیا ولري چې دهغې له کبله بشري ژوند دهغه نفس الامري حقیقت، دژوند دهیلو ، اخلاقي اوتمدني اصولو او دعمل له هغو حدودو او پولو سره دتل لپاره تړلی وساتي کوم چې په (الدین) سره نوموړل شوی دی .
داهغه څه دي چې وضع کول یې موږ ته په مخکې پراته دي اوس فکر وکړئ چې له انسان سره څه داسې وسایل شته چې دهغې په مرسته به دخپل ځان لپاره دژوند لاره او (الدین) جوړکړي .؟

## دبشري وسایلو ارزیابي

له انسان سره ددین او یاژوند دلارې دجوړښت لپاره څلورګونه وسیلې دي . لومړۍ وسیله دنفس غوښتنې اوخو اهشات دي ،دویمه وسیله عقل ،دریمه مشاهده او تجربه او څلورمه وسیله د تېرو تجربو تاریخي ریکارډ دی له دې نه پرته دپینځمې وسیلې څرک نه لیدل کیږي ددې څلورو واړو وسایلو چې تاسو پوره جاج واخلئ نوتاسو ته به څرګنده شي چې ایا داوسیلې له انسان سره د الدین په جوړولو کې مرسته کولی شي ؟

ماخو دخپل ژوند لویه برخه ددې خبرې په څېړنه کې تېره کړې ده او په پای کې دې نتیجې ته رسیدلی یم چې دغه وسیلې د الدین په ایجادولو کې هیڅ مرسته نه شي کولی البته که چېرې یو څوک مافوق

انساني لارښوونې (اسماني تعليمات) موږ ته راوړاندې کړې نو په هغې پوهېدل ،او بيا دهغې په برابر دژوند نظام مرتب کول ددې وسايلو په مرسته کيدی شي.

## نفسي غوښتنې (خواهش)

اوس به لومړی خواهش راواخلو پوښتنه داده چې ايا خواهش دانسان لارښود جوړيدی شي؟ اګر دغه دانسان دننه دعمل اصل هڅونکی دی خوددې په فطرت کې چې کومې نيمګړتياوې پرتې دي دهغو پر بنسټ په بشيړه توګه دلارښوونې ور نه شي کيدی. لاره ښودل خو پريږده عقل او علم هم زياتره وخت دده له لاسه بې لارې شوي دي که چېرې دروزنې او تربيې له امله هرڅومره روند اندی هم شي په هرحال وروستنی پريکړه چې ده ته وسپارلی شي نو له مبالغې پرته به په يوکم سل فيصده حالاتو کې غلطه او ناسمه وي داځکه چې دده په دننه کې چې کومې غوښتنې پرتې دي دهغو له کبله ديوې سمې پريکړې پرځای يوې داسې فيصلې کولو ته اړکيږي چې دهغې له کبله مقصود ژر ترژره او په اسانه حاصل شي دغه دانساني خواهش ځانې او طبيعي کمزوري ده نو ځکه برابره خبره ده که چېرې ديو فرد خواهش وي او که دکومې طبقې خلکو په هرحال هررنګه انساني خواهش ذاتاً ددې صلاحيت نه لري چې د (الدين) په وضع کولو کې دهغه مرستيال وګرځي .دډيرو لوړو مسايلوپه هکله FUltimate problems لکه دانساني ژوند حقيقت بشري غوښتنو او اهدافو په اړه هيڅ مرسته نه شي کولی.

# عقل

اوس نو عقل ته فکر وکړئ داخبره منو چې عقل لوړ صلاحيتونه لري په انساني ژوند کې يې له اهميت څخه سترګې نه شي پټيدلی داهم منو چې دانسان په بدن کې ډير ستر لاربنوونکی ځواک دی خو داپوښتنه هيڅکله له نظره نه شو غورځولی چې دانسان لپاره به دچا عقل د (الدين) دبنسټ ډبره ږدي . دزيد ، داحمد او که دمحمود او که دټولو انسانانو ؟ اويا دانسانانود يوځانګړي ټولګي؟ او يا داوسني وخت دخلکو او که د تېر وخت دخلکو ؟اويا د راتلونکي وخت دخلکو ؟ پوښتنه يواځې دومره ده چې که چېرې تاسو دبشري عقل دچاپېرېال جاج واخلئ نو ايا له دې نه وروسته تاسو دا ويلی شي چې د (الدين) په وضع کولو کې په ده باور کيدی شي ؟

دعقل پريکړې خو په هغو شيانو کې منحصرې دي کومې چې دحواسو په وسيله ده ته رسيږي .که چېرې حواس خراب وي نو پريکړه به هم ارومرو ناسمه وي او که چېرې يې دامواد نيمګړي وي نو پريکړه به يې هم نېمګړې وي .يوداسې عقل چې د دومره لنډ ، تنګ چاپېريال په بنديزونو کې پروت وي څنګه ددې وړتيا پيداکولی شي چې دبشري نوعې لپاره يې د (الدين) په وضع کولو مکلف وګرځوو ؟د کومو سترو پېښو په حل کولو کې چې د(الدين) جوړول منحصرد ي په هغې کې حواس په بشپړه توګه څه مواد نه شي راټولولی نو بيا ددې پيښو پريکړه به دتخيلاتو ، بې هوده قياسونو او سوچه توهماتو او اټکلونو په رڼا کې کولی شي .داسې مستقل ارزښتونه تاکل چې د(الدين) دوضع کولولپاره ضروري دي دهغو لپاره دحواسو له خوا موږ ته ډير نېمګړي مواد په لاس راځي نو بيا دعقل څخه داهيله څنګه کيدی شي

چې هغه به د ښمګړي په وسيله صحيح او بشپړ ارزښتونه انتخاب کړي.

په همدې توګه د (الدين) چې کوم ترکيبي اجزاء مابيان کړې دي په هغو کې ديو جزء لپاره هم دحواسو له خوا صحيح او بشپړ مواد په لاس نه شي راتلی چې دهغې پر بنسټ عقل يو هر اړخيز او بشپړ نظام جوړ کړي له دې نه پرته له عقل سره دخواهش عنصر په مستقل ډول پيوستون لري نو ځکه يې دپريکنده عقلي فيصلې څخه منحرف کوي که چېرې عقل هرڅومره په نيغه لار روان هم شي نفساني غوښتنې (خواهش) يې تر هغه نه پريږدي ترڅو يې بې لارې کړی نه وي ، پردې اساس که چېرې ومنو چې بشري عقل ته دحواسو له خوا کوم مواد په لاس ورځي دهغو په ترتيب اوله هغو څخه په استدلال کولو کې به څه اشتباه ونه کړي له دې سره سره دخپلو کمزوريو پر بنسټ په ده کې دومره وس نشته چې دادومره لوی درونډ بار به اوچت کړي دومره لوی بار اچول په ده هم ظلم دی او په خپل ځان هم.

## ساينس

اوس دريمه وسيله راواخلئ يعنې هغه شی چې دعلم دمشاهداتو او تجربو څخه حاصليږي زه ددې علم دقدر او منزلت په اعتراف کولو کې له هيچانه وروسته نه يم او دذرې په اندازه سپکاوی يې نه خوښوم . خو له دې سره سره دساينس محدوده لمن له مانه پټه نه ده او هغه وسعت او پراختيا ده ته ورکول چې ور څخه برخمن نه دی ځما په اند او فکر جهالت او ناپوهي ده .

کوم شخص چې دانساني علم په حقيقت نظر لري هغه به له دې علم څخه هيڅکله انکار ونه کړي ترکومې اندازې پورې چې دسترو مسايلو اړيکه ده

دهغې ترحقيقت پورې رسيدل اسان کار نه دی ځکه چې انسان هغه وسايل او اسباب په بشپړه توګه نه لري چې په هغو سره سرې ور رسيدلی شي اونه خو يې په مستقيمه توګه مشاهده کولی شي اونه تر مشاهدې اوتجربې لاندې راتللی شي

نو پردې اساس د «الدين» دوضعه کولو لپاره چې دکوموپېښود حل کولو ناچاره اړتيا ده نو هغه خو دتجربوي علم او ساينس له وسې نه وتلې خبره ده نواوس داپوښتنه پاتې شوه چې اخلاقي ارزښتونه ، دتمدن اصول او دګمراهۍ نه دخان ژغورلو حدود او پولې تاکل ساينس ته ورسپارل په کار دي او که نه ؟ نو په دې به بحث نه کوو چې داکار کوم شخص ، کوم ټولګي او يا دکومې زمانې اووخت علم سرته رسوي موږ بايد داوګورو چې په علمي توګه ددې کار دپای ته رسولو لپاره کوم کوم شرطونه دي چې ورڅخه پرته چاره نشته

ددې لومړی شرط دادی چې هغه ته د ې دفطرت دهغو ټولو قوانينو علم په برخه وي چې دکومو په سيوري کې انسان لګيادی ژوند تيروي دويم شرط دادی چې دانسان له ژوند سره چې دکومو علوموارېکه ده هغه دې بشپړوي .دريم شرط دادی چې ددواړو کايناتي او انساني علومو پوهه دې يوځای راټوله او د يو کامل ذهن خاوند دې په صحيح شکل کې مرتب کړي او له دوی څخه دصحيح استدلال کولو نه وروسته دې دانسان لپاره داخلاقي ارزښتونو ، دتمدن داصولو او قوانينو او دګمراهۍ څخه دې دساتنې په خاطر حدود او پولې وټاکي

دغه شرايط خو ، نه تراوسه پوره شوې دي او نه داهيله کيدی شي چې ترپينځه زره کلونو وروسته به سرته ورسيږي کيدی شي چې دبشريت دفاتحې اخېستلو نه وروسته څه ورځ مخته پوره شي نو هغه وخت به يې څه ګټه وي .

# تاريخ

په پای کې دعلم هغه وسيله درواخلئ چې موږ ورته دتېرو انساني تجربو تاريخي ريکارډ وايو . دده له اهميت او ښيګڼو څخه هم زه انکار نه کوم خوزه په زغرده ويلی شم او که غور اوفکر وکړئ نو تاسو به يې هم ومنئ چې د (الدين) دوضع کولو داستر کار ترپای ته رسول ددې علم د، وس خبره نه ده زه داپوښتنه کوم چې دغه تاريخي حقايق له پخوا څخه داوسني وخت ترخلکو پورې په صحت او بشپړتيا رارسيدلې هم دي او که نه ؟ په همدې توګه زه داپوښتنه هم نه کوم چې ددې ريکارډ په مرسته چې د (الدين) وضعه کول وي نو ددې لپاره به کوم ذهن دبشريت نمايندګي وکړي ؟دهيګل فکر او که دکارل مارکس او که دبل چا تصور . زه يوازې دومره پوښتنه کوم چې په ماضي ، حال او مستقبل کې تر کومې نيټې پورې تاريخي ريکارډ د (الدين) دوضعه کولو لپاره بشپړ مواد په لاس راکولی شي ؟ څکه چې ددې نيټې نه وروسته وګړي خو نيکمرغه دي، پاتې شول هغه خلک چې له دوی څخه وړاندې تيرشوې دي نو بس دهغوی د الله مل شي

*مايوس ناکه پايله (نتيجه).*

دغه لنډې اشارې چې ماکړې دي هيله مند يم چې په دې کې مې څه علمي او يا استدلالي اشتباه نه وي کړې او دانساني وسايلو کومه جايزه چې ما اخيستې ده که هغه صحيح وي نو بيا خو په دې خبره ديقين کولو په لارکې هيڅ څه خنډ نشته چې انسان دخپل ځان لپاره څه خام ، ناسم، وختي او ځايي دين او طريقه خو جوړولی شي البته که چېرې (الدين) يعنې دژوند بشپړ نظام وضع کول و غواړې نو داکار به

په بشپړه توګه ونه شي کړی مخکې داکار ناممکن ؤ او اوس هم دکيدلو نه دی او په راتلونکي کې هم هيڅکله امکان نه لري .

نو اوس که چېرې يو سپيڅلی ذات دژوند دلارښوونې لپاره وجود ونه لري لکه څنګه چې دالله جلت عظمته له سپيڅلي ذات څخه دمنکرو خلکو مفکوره ده نو بيا خو دانسان لپاره داغوره ده چې خپل ځان پخپله ووژني دکوم مسافر لپاره چې نه دلارې لارښوونکی او نه پخپله له هغه سره څه داسې وسيله وي چې لاره پرې معلومه کړې نو دهغه په تقدير کې دبشپړې نااميدۍ نه پرته نو رڅه کيدلی شي

دهغه يو خوا خوږی دوست له دې نه پرته بل څه مشوره نه شي ورکولی چې هغه دې دلارې پر غاړه له يوې ډبرې سره خپل سر وجنګوي او خپله ستونزه دې حل کړي . اوکه چېرې د الله جلت عظمته په وجود قايل وي خو داسې ذات چې دلارښوونې او هدايت حق ونه لري لکه څرنګه چې دهغو خلکو اټکل دی چې څوک په فلسفيانه او په ساينسي طريقه دالله عزوجل وجود مني نو دغه صورت له دې نه هم زيات دافسوس وړ ده داځکه چې کوم سپېڅلي ذات دنړۍ دټولو موجوداتو د پايښت او ودې لپاره دهر شي انتظام کړی خو دانسان دهغه ضرورت انتظام يې نه دی کړی دکوم له امله چې دټول بشريت ژوند سمون مومي ، بيا خو دالله جلت عظمته په دې پيداکړې نړۍ کې استوګنه کول يولوی جنجال دی يو داسې لوی مصيبت او غم چې له هغې نه پرته بل مصيبت په تصور کې نه راځي تاسو څنګه دمفلسانو ، بې وزلانو ، رنځورانو ،زخميانو په مصيبتونو او دردونو ژړا او انګولا کوئ که تاسې ژاړئ نو دټول بشريت په حال وژاړئ چې دداسې بې وسۍ او بې سرنوشتۍ په حال پريښودل شوی دی چې بيا بيا ناسمې تجربې لګيادی سرته يې رسوي خو دبري پړاؤته نه رسيږي تندکونه او

ټکرې خور ي او بيا پورته کيږي چې په دې ټکرو کې هيوادونه او بشپړ قامونه او ولسونه دتباهۍ کندې ته غورځول کيږي

خو هغه بيچاره دخپل ژوند له هدف څخه ناخبره دی په دې هيڅ نه پوهيږي چې دځه شي لپاره هلې ځلې کوي او دکوم مقصد او په کومه توګه کار وکړي او داټول هرڅه دې هم هغه ذات وګوري چې دټولو کا يناتو څښتن دی خو ددوی په فکر دهغه جل جلاله هدف خو يوازې دبشريت پيداکول وودلارښوونې سره يې څه کار او غرض دی ؟

## يوازې دهيلو يوه څړيکه

ددې تصور پرخلاف قران زموږ مخې ته يوه بله نقشه راوړاندې کوي اوپه ډاګه يې اعلانوي چې الله پاک يوازې دکايناتو خالق نه بلکې لارښود هم دی د نړۍ هر يو موجود ته يې لارښوونه او هدايت هم کړی دی کوم چې دهغه دفطرت له مخې دهغه لپاره ضروري ؤ .قران عظيم الشان دغه مطلب داسې بيانوي [قَالَ رَبُّنَا الَّذِي أَعْطَى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَى] (طه ٥٠) يعني :الله هغه ذات دی چې هرشي ته يې وجود او بيا يې ورته لارښوونه کړې.

که چېرې تاسې ددې خبرې ثبوت غواړې کوم ميږی ، کوم مچ ،او کومه غنه؛ چې موخوښه وي هغه ونيسئ او بيا وګورئ چې کوم ذات دې مخلوقاتو ته لار ورښئ هماغه دانسان هم لارښود دی له همدې کبله دانسان لپاره غوره لاره داده چې خپلسري پريږدي او دخپل څښتن په وړاندې خپل سر ټيټ کړي او دژوند کوم يو هر اړخيز نظام (الدين) چې هغه دخپلو پيغمبرانو په وسيله راليږلی دی دهغه پيروي دې غوره کړي .

وګورئ! يو لور ته خو هغه نتيجه ده کومه چې موږ ته دانسان دقوتونو او دهغو وسايلو دبې الايشه جايزې اخيستلو نه وروسته په لاس راځي او بل لورته دقران دادعوه ده موږ ته له دې نه پرته بله چاره نشته چې يا خو دغه دعوه قبوله کړو او يا خپل ځان مايوسۍ ته وسپارو چې دهغې په تيارو کې يوازې په نوم هم دهيلو د رڼا ځريکه نه ښکاري.

واقعيت دادی چې ددين او دژوند دنظام دلاس ته راوړلو له موږ سره دوه وسيلې په لاس کې دي او داپوښتنه دې بيا راڅرګنده شي چې موږ له کومې يوې مرسته وغواړو حقيقت دادی چې الدين يعنې دژوند نظام چې دکومې وسيلې څخه زموږ لاس ته راځي دوه نه دي بلکې يوه وسيله ده دانتخاب پوښتنه يوازې په دې خبره کې ده چې ايا موږ ددې يوې وسيلې څخه مرسته وغواړو اوکه له دې نه د مرستې پر ځای په نورو تيارو کې ټکرې خوړل غوره کړو.

## دقران عظيم الشان دلايل

تردې ځای پورې چې کوم استدلال ماکړی دی هغه يوازې تردې اندازې پورې رسولی شو چې زموږ دخلاصون لپاره دقرآن کريم ددې دعوی دمنلو نه پرته بله چاره نشته يعنې داسې به و وايو چې کافر کيدلی نه شي نو له ناچارۍ مسلمان شه خو قران چې دخپلې دعوی په تائيد کې کوم دلايل وړاندې کوي هغه ډير لوړ، ستر او سپيڅلي دي څکه چې موږ په مات زړه دمسلمانيدو پر ځای په خپله خوښه او مينه مسلمان کيدلو ته چمتو کوي. دقران کريم په ګڼو دلايلو کې څلور له ټولو نه زيات پياوړي او مضبوط دي او هغه يې بيا بيا زموږ مخې ته را وړاندې کړې دي.

۱: دانسان لپاره اسلام دژوند يوه صحيح لاره ده داځکه چې له نفس الامري حقيقت سره سمون خوري له دې نه پرته نورې ټولې لارې دحقيقت نه خلاف دي قران عظيم الشان فرمايي: أَفَغَيْرَ دِينِ اللَّهِ يَبْغُونَ وَلَهُ أَسْلَمَ مَنْ فِي السموات وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَإِلَيْهِ يُرْجَعُونَ] (آل عمران۸۳)ژباړه: ايا کافران دالله له دين نه پرته بل دين لټوي؟حال داچې په اسمانونواوځمکه کې ټولو موجوداتو هغه ته په خوښه اوناخوښه غاړه ايښې ده اوټول هغه ته بېرته ورګرځول کېږي

۲: دانسان لپاره همدغه دژوند يوه سمه نيغه لاره ده ځکه چې له دې نه پرته بله سمه لاره کيدی نه شي الله تعالی فرمايلي دي: [إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السموات وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ] (الأعراف۵۴)ژباړه: بېشکه ستاسې رب الله دی هغه ذات چې اسمانونه اوځمکه يې په شپږورځوکې پيدا اوبيا يې په عرش استواوکړه دشپې تياره په ورځې خورا په منډه خپروي لمر سپوږمۍ اوستوري يې په داسې ور پيدا کړل چې په بشپړډول دهغه منونکي دي :خبر دار چې پيدا ښت اوحکم چلول دهغه دي برکت والادی الله چې دټول عالم رب دی

۳: دانسان لپاره همدغه تګلاره صحيح ده ځکه چې دټولو حقايقو رينبتينی علم خو يوازې له الله تعالی سره دی او له اشتباه پرته لارښوونه خو يوازې هغه ورکولی شي قران عظيم الشان فرمايي . [إِنَّ اللَّهَ لَا يَخْفَى عَلَيْهِ شَيْءٌ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ] (آل عمران۵)ژباړه: داپخه خبره ده چې داسمان او ځمکې هيڅ شی له الله څخه پټ نه دي ). په بل ځای کې داسې ار شاددی يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِنْ عِلْمِهِ إِلَّا بِمَا شَاءَ ژباړه: په هغو ښه پوهېږي چې دخلکو په وړاندې دي اوپه هغو هم چې

ترې وروسته دي دوی داالله جل جلاله د علم هېڅ برخه نه شي احاطه کولی مګر یوازې هغه برخه چې داالله خوښه شي
په همدې توګه په بل ځای کې فرمایي قُلْ إِنَّ الْهُدَى هُدَى اللّهِ ژباړه:ورته ووایه چې هدایت یوازې داالله هدایت دی
۴ :- دانسان لپاره همدغه نیغه او سمه لاره ده ځکه چې له دې نه پرته عدل امکان نه لري ، او له دې لارې نه پرته چې انسان په هرې یوې لارې چلند غوره کړي په پای کې به تر ظلم او تیري پورې رسیږي . قران عظیم الشان فرمایي وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللّهِ فَأُولَـئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ] (البقرة۲۲۹ ژباړه :اوڅوک چې داالله له پولوڅخه واوړي نو همدا کسان ظالمان دي
پر بل ځای کې داسې ارشاد دی وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أنزَلَ اللّهُ فَأُولَـئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ] (المائدة۴۵) ژباړه:اوهر څوک چې داالله په نازلې شوې وحی پرېکړې نه کوي نو همدا کسان ظالمان دي)
داهغه دلایل دي چې ددې پر بنسټ دیو هوښیار انسان لپاره ضروري ده چې هغه دې داالله په وړاندې داطاعت سر ټیټ کړي اودلارښوونې په خاطر دې دهغه په لوري ورستون شي .

## د الهی هدایت دسنجولو معیار

ترټولو لومړی زه دیوې پوښتنې ځواب ورکول لازمي بولم داځکه چې داسې پوښتنه دهرسړي په ذهن کې تیریږي او دخپلې څېړنې په جریان کې ځما په زړه کې هم راپیداشوې ده پوښتنه داده : ایا موږ ته دهر شخص خبره منل ضروري ده چې یو څوک موږته یودین را وړاندې کړي اوادعوی وکړي چې داداالله عزوجل دین دی ؟ که چېرې داسې نه وي نو له موږ سره کوم معیار دی چې موږ په هغې سره دالهي هدایت اودانسان په لاس دجوړ کړی شوې دین ترمینځ توپیر وکړی شو ؟

دغـه ځواب دتفصيلي څېړنې غوښتنه کوي زه به دلته په لنډو ټکو کې څلور لوی معيارونه بيان کړم چې دهغو په رڼا کې به دالهي دين او انساني فکر ترمينځ توپير څرګند شي.

دانسـاني فکـر تـرټولو مهمـه ځانګـړتيا داده چې په دې کې دعلمي غلطۍ اومحدوديت اغيـزه ارومرو موندلی شي ددې پرخلاف په الهي دين کې غير محدود او صحيح علم کټ مټ څرګندشوی. کوم شی چې دالله لـه لوري راغلی وي پـه هغـه کې بـه تاسو هيڅ داسې شی ونه مومئ چې هغـه بـه ګواکې پـه يـو وخت کې دثابت شوي علمي حقيقت پرخلاف وي او يا چې دهغې په هکله ثابته کړی شي چې ددې دمصنف لـه نظر څخـه دحقيقت فلانی اړخ پاتې شوی دی خوکه چېرته دتحقيق او څېړنې دغه معيار تاسې په استعمال کې راوستل غواړئ نو داخيال او تصور ولـرئ چې پـه علـم، علمي قـياس او علمي نظر يې کې ډير زيات بيلـتون وي پـه يـو وخت کې چې کوم علمي قياسـات او علمي نظريات پـه افکـارو خپاره شـوي دي زياتـره دغلطۍ لـه کبله علم ګڼلی شي پـه داسې حـال کې چې دهغـو دغلطۍ هم دومره امکان موجود ؤ خومره يـې چې دصحت امکـان ؤ پـه علـمي تـاريخ کـې پـه داسې ډيرو قياسـاتو او نظرياتو دانتقاد ګـوتـه کيښـودل شـوه چې هغـه پـه پای کې علم ثابت شوي دي.

دبشـري فکـر دويمــه لــويه ځانګـړتيا دنظـر تنګوالــی دی ددې پـرخلاف پـه الهي دين کې يو ډير وسيع نقطه نظر موندلی شي کوم شی چې دالهـي علـم څخـه سـرچينه نيسـي او تاسـو يـې وينـئ نـو تاسـو بـه محسوسه کـړئ چې دغـه ذات لـه ازلـه ترابده پـه هرڅه دپوهې خيښتن دی ټول کايـنات يـې ترمشـاهدې لانـدې او ټول حقيقـتونه ورتـه پـه يـو

وخت کې ښرګند دي . دده په مقابل کې به تاسو ته ديولوی مفکر او فيلسوف فکر ديو ماشوم په شان ښرګند شي .

دانساني فکر دريم خاصيت دادی چې په دې کې به ارومرو حکمت او پوهه دجذباتو او خواهشاتو سره يوځای وي ددې پرخلاف په الهي قانون کې به ټوله پوهه اوحکمت ښرګندوي چې دهغه په احکامو کې به هيڅکله دجذباتو او خواهشاتو په لور يو وړوکې تمايل هم په ستر ګو ونه وينئ .

دانساني فکر بله کمزوري داهم دی دژوند نظام چې هغه پخپله تصنيف کړی دی په هغې کې به ارومرو ديولوري پلوي شوې وي دټولو انسانانو ترمينځ عقلي توپيروجود لري چې په هغې کې به ځينو ته په ځينو نورو دلوړتيا عنصر ارومرو شامل وي چې دهغې بنستهونه به په عقل نه وي ټينګ شوي داځکه چې هرشخص ذاتي مينه او دزړه تړاؤ لري البته دژوند کوم نظام چې له الهي سرچينې څخه خړوبېږي هغه د داسې عنصر څخه تل ترتله پاک دی .

په دې معيار تاسو دژوند نظام کچ کړئ او جاج يې واخلئ کوم نظام چې الهي او [الدين] ګڼئ که چېرې هغه د بشري فکر دټولو نيمګړتياؤ څخه په بشپړه توګه پاک ، سپيڅلی او هراړخيزبولئ نو هيڅ وجه نه شي کيدی چې تاسې په هغه دايمان راوړلو په لړ کې د لږ څه ځنډ څخه کار واخلئ .

# دايمان غوښتنې

اوس نوزه دخپلې وينا دبنسټيزو پوښتنو څخه دوروستنۍ پوښتنې په هکله څه ويل غواړم او هغه داچې هرکله يوشخص دقران کريم دعوه ومني او دهغه عزوجل په (الدين) په بشپړ ډاډ سره ايمان راوړي نو بيا ددې دين د منلو او ايمان راوړلو په برخه غوښتنې دي.

لکه څرنګه چې په پېل کې مې عرض کړی وچې داسلام معنا تيټيدل، ډال کيښودل او ځان سپارل دي. ددې ټيټوالي، ځان سپارلو سره ځان منله، خپلواکې او دفکر او عمل ازادې په بشپړه توګه نه شي چليدلی په کوم دين چې تاسې ايمان راوړی نو تاسو به خپل ټول شخصيت هغه ته ورسپاری او نه به شئ کولی چې خپل يوشی هم دهغه له پيروۍ څخه وباسئ دايمان غوښتنه هم دادی چې هغه ستاسو دزړه او دماغ دين دی، ستاسو دسترګو او غوږونو دين دی ستاسو دلاسونو او پښو دين دی ستاسو دتن او وجود دين دی ستاسو دژبې او قلم دين دی ستاسو دزيار او عمل دين دی ستاسو دمينې اوکرکې دين دی ستاسو ددوستۍ اودښمنۍ دين دی

لنډه داچې ستاسو دشخصيت يوه برخه او يو اړخ هم بايد د دين له چاپېرېال نه بېرون نه وي کوم يوشی چې تاسې څومره او په کوم حيثيت کې دهغه دين داحاطې دپيروۍ څخه بيرون وساتئ نو پوه شئ چې په هماغه اندازه ستاسو دايمان په دعوی کې دروغ ور ګډ دي. په هريو رېښتينې انسان لازم دي چې هغه خپل ژوند د دروغو څخه وژغوري او په دې لړ کې هره ستونزه وګالي داخبره مې هم لومړی تاسو ته وړاندې کړې وه چې د انسان ژوند يوه مجموعه ده چې په بيلا بيلو ځانګو نه شي ويشل کيدی له دې امله دانساني ژوند دتنظيمولو لپاره هم يواځې يودين په کار دی، په يو وخت کې دده د دوه درې دينونو پېروي پخپله دتردد څرګندونه او دعقلي پريکړې دپلتنې ثبوت دی، هرکله چې په واقعيت کې د يودين او نظام په

هکله تاسو ته ډاډ په لاس درشي چې دا «الدين» دی او په هغه ايمان راوړئ نو لازمه ده چې هغه ارو مرو ستاسو دژوند دهرې څانګې دين او نظام شي که څېرې په شخصي حيثيت کې هغه ستاسو دين وي نو هيڅ لامل نه شي کيدی چې هغه ستاسو دکور ، اولاد ، ښووڼې او روزنې ستاسو داقتصادي اړيکو ، ستاسې د ،ولسي ژوند او ملي تګلارې ستاسو دتمدن او سياست، ،ارت او ادب دين ونه ګرځي څنګه چې داخبره نه شي کيدی چې ځانته ځانته مرۍ خو په خپل ځای کې مرۍ وي ، خو چې کله هم دتسپو په مزي کې يوځای وپيیلی شي نو بيا دې هغه دنخود ددانې په انډول شي په همدې توګه داخبره څما په فکرکې نه راځي چې په انفرادي حيثيت کې خودې مورږ ديودين پېروي کؤو خو چې کله مورږ خپل ژوند تنظيم کړو نو بيا ددې منظم ژوند ځينې اړخونه ددې دين له پېروۍ څخه بېرون وګڼل شي .

. دايمان ستره غوښتنه دادی چې په کوم دين تاسو د «الدين» يعنې دژوند دنظام په حيثيت ايمان لرئ نوداکوښښ وکړئ چې دهغه په برکتونو کې ستاسو ورونه ، خپلوان هم برخه ومۍمي ستاسو د زيار او کوښښ مرکز اومحور به داوي چې دغه «الدين» دټولې نړۍ دين وګرځي څرنګه چې دحق دغه ذاتي خاصيت او ځانګړتياده چې هغه بريالیتوب غواړي په همدې توګه دحق پالنې دغه عين فطرت دی چې دحق پېژندلو نه وروسته به تر هغه ارام او اسوده ژوند نه تېروي ترڅو چې په باطل برى ونه مومي چې يو څوک په څرګنده ګوري باطل په ځمکه او دهغې په استوګنو واکمني لري او خپرېږي ، ددې منظر په ليدلوسره دده په زړه کې د درد کومه څړيکه نه رامينځته کيږي نو که چېرته دده په زړه کې حق پالنه موجوده هم وي خو هغه به ويده وي لازمه ده چې هغه فکر وکړي چې هسې نه چېرې دخوب داچوپتيا دمرګ په چوپتيابدلون ومومي .او بس .

# اخلاق

# د اسلام په رڼاکې

د غه دمولنا رحمةالله علیه دوینا هغه متن دی چې دفروري دمیاشتې په شپږویشتمه نیټه ۱۹۴۴م کال یي د پیښورپه اسلامي پوهنتون کې ګډون والو ته اورولې وه.

## تر حمد او ثناوروسته

په معمولي حالاتو کې چې د ژوند سمندر په ورو ورو روان وي نو انسان يو ډول ډاډ احساسوي دا ځکه چې د سيند پرمخ د سپينو رڼو اوبو پرده جوړه کړې او تري لاندې خاوري او ختې پټې دي د سپينو اوبو د مخ صفايي چې يو څوک ويني نو د دې خبرې د څېړلو هيڅ اړتيا نه محسوسوي چې ووايې د دي په تل کې به کوم شيان پټ وي ؟خو کله چې په سمندر توپان راوالوزي نو لاندې ټولې ختې رابرسېره او د اوبو له پاسه و بهيږي نو پدغه مهال د ړانده انسان نه پرته هر سړی ګوري چې د ژوند په دي سمندر کې د ننه څه پټ دي

دا هغه وخت وي چې عام وګړي يي احساس کړي او په دي فکر کې شي چې د هغې سر چينې دې معلومې شي له کوم ځايه چې دا خاوري ختې او ګندګۍ را روانې دي او هر هغه تدبير دي په کار واچول شي چې د هغې په وسيله دغه سيند صاف سوتره و ساتلی شي

واقعيت دادي چې که چيرې په دي مهال هم په خلکو کې احساس راپيدانه شي نو دا ددي خبري څرګند دليل دي چې بشريت د خپل غفلت په نيشه کې داسې بيخوده پروت دی چې له سره خپله ګټه او زيان نه پيژني .

## د اوسنيو ولسونو اخلاقي حالت

په اوسني وخت کې چې موږ ژوند کوؤ نړۍ وال وضعيت غير معمولي بڼه لري د ژوند سمندر طغياني څپې وهي او دهيوادونو او ولسونو ترمېنځ سخت اخ او ډب روان دی د بشري نړۍ زياتو و ګړو خپل ټول اخلاقي ارزښتو نه له لاسه ورکړي دي اوس موږ هغه پليتي د

ژوند په ډګر په ډاګه وينو. او د پلټنې لپاره يې څه کړاو او زيار ګاللو ته اړتيا نه بولو اوس خو يوازې هغه شخص چې له موره ړوند پيدا شوی اوسي په دې اشتباه کې پرېوزي چې وواېي در نځور حالت ښه دی. او يوازې هغه و ګړي د رنځ له علاج او تشخيص نه بې غمه پاتې کيدی شي چې د څارويو په څير له اخلاقي حس څخه خالي وي او يا هغه و ګړي چې اخلاقي احساسات يې فلج شوې اوسي.

موږ يې په خپلو سترګو وينو چې بشپړ ولسونه په ډېره لويه اندازه د هغو بدترينو رزيلو اخلاقي صفاتو يشپړه څرګندونه کوي چې د بشريت ضمير ورته دتل لپاره د کرکې او نفرت په سترګه کتلي دي. بې انصافي ، بې رحمي، ظلم، دروغ، دوکه، خيانت فريب ، وعده خلاقي بې حيايې ، ځان ځاني ، زور زياتی او داسې نور جرمونه اوس يوازې انفرادي جرايم نه بلکې د ولسي اخلاقو په حيثيت يې څرګندونه کيږي يه نړۍ کې يې لوی لوی ملتونه په تولنيزه توګه سرته رسوي که چيرې په شخصي توګه چا دا جرمونه تر سره کړې وای نو هغوی به د خپلو هيوادونو په زندانونو کې پراته وای اوس مهال ټولو ملتونو خپل لوی لوی مجرمان راټول کړي او خپل مشران يې ګرزولي دي ددوی په مشرتابه کې دبدمعاشۍ او لوچکۍ خراب او بدتر ماډل نه دی پاتې چې هغه دوی په څرګنده توګه په پوره بې حيايې سره سرته نه وي رسولی هر قام دبل قام په خلاف په لويه پيمانه دروغ جوړوي او په خپرونه يې لاس پورې کوي بشپړ هيوادونه او لويې و چې په لوټ مارانو بدلې شوې دي او هريو ډاکو د خپلې ډاکې پرمهال په ډيرې بې حيايې سره د خپل رقيب د ناوړه کړو وړو څخه چيغې او سورې وهي داسې ناوړه کړه وړه چې دده خپله لمن د خپل رقيب په مقابل کې څه لږه توره نه وي ددغو ظالمانو په وړاندې د انصاف او عدالت معنا

یوازي دا دیی چې هر څوک دې له خپلو ولسونو سره له انصافه کار و اخلي.

حق هر هغه شی دي چې دد وی لپاره وي د نورو په حق تیری کول د دوی په اخلاقي قانون کې نه یوازې روا بلکې د ثواب کار ګڼلی شي اوس مهال د ټولو ملتونو همدغه حال دی له دوی سره د اخیستلو پیمانې جلا او دورکولو لپاره جلا دي دوی چې دخپلو ګټو دتحقق لپاره د څو مره معیارونو د بنسټ ډېره ږدي کله چې د نورو د ګټو خبره مطرح شي نو ددوی معیار بدلون وموموي او د کومو معیارونو غوښتنه چې دوی له نورو څخه کوي دهغو پابندي د خپل ځان لپاره ناروا بولي. د تړونونو اولوظنا مو ماتولو رنځ تردې اندازې پورې رسیدلی دی چې اوس یو دولت او ملت په بل دولت او ملت باور نه شي کولی.

د لویو دولتونو نمایندګان چې په نړۍ والوتړونونو کوم لاسلیکونه کوي نو هماغه مهال ددوی په زړونو کې خبیثه اراده پرته وي چې کله هم دوی ته فرصت په لاس ورشي نو بیابه ددې تړون څه پروا نه ساتي.

څه وخت چې د یو ملت جمهور رئیس او یا صدر اعظم دبل قام د تباهی او بربادۍ لپاره چړې تیرې کوي نو په ټول ملت کې دده پرضد یو اواز هم نه پورته کیږي جوته ده چې د ټول هیواد وګړي په دې جرم کې شریک دي د ملتونو د همکارۍ او فریب ور کولو خو دغه حال دی چې د لویو لویو سپیڅلو اخلاقي اصولو په هکله خو خبري اترې کیږي یوازې ددې هدف په خاطر چې نړۍ والو ته دوکه ورکړي او دخپلو ګټو په خدمت کې یې استعمال کړي او ساده خلکو ته ډاډ ورکړي چې له تاسو څخه چې موږ د ځان او مال د سرښندنې کومه

غوښتنه کوو دا د خپل ځان لپاره نه بلکې د ټول بشریت د ښیګنې او نیکمرغۍ لپاره یې تر سره کوؤ

ددوی قساوت (د زړه سختیا) او بې رحمي تر دې اندازې پورې رسیدلې ده چې کله یو هیواد پر بل حمله کوي نو په ډیر فخر او غرور په وحشیانه توګه د هغه هیواد دوګړو د وژلو او د ابادیو د رنګولو زیرې ورکوي ګواکې هغوی یې بشریت ته اعلاتوي چې نړۍ په انسانانو نه بلکې په لیوانو او ځنګلي ځناورو ودانه ده

ددوی له ظالمانه او وحشیانه چلند څخه د ځنګله ځناور شرم احساسوي د هغوی خپل سرې توب اوو حشت تر دې حده رسیدلی دی چې یو قام په بل قام دبري نه وروسته نه یوازې دا چې په ډیرې بې باکۍ سره یې په لوټ او تالان لاس پورې کوي بلکې په ډیرې منظمې طریقې سره هلې ځلې کوي چې په هغوی کې ټول اخلاقي فضایل له مینځه یوسې او ټولو رزیله (ګنده) صفاتو او خویونو ته په کې وده ورکړي په داسې حال کې چې دوی یې پخپله له ناوړتیا څخه سر ټکوي

دغه یو څو ځرګندې اخلاقي نیمګړتیا وې دي چې د نمونې په توګه مې بیان کړې البته که چیرې یې په پوره تفصیل سره جاج و اخیستلی شي نو ځرګنده به شي چې د بشریت بشپړ جسم په اخلاقي حیثیت سره بوی ناک شوی دی پخوابه د زنا، فحشاء او دجوارۍ اډې تر ټولو لوېې ګنده او خرابې سرطاني تباه کوونکې دانې ګڼلی شوې اوس خو چې په کوم لورې ګورئ ټول بشري تمدن لویه سرطاني لویه دانه ښکاري د ولسونو پارلمانونه. د حکومتونو نظامونه وز ارتونه، محاکم ښارنوالي، د خپرونې ټول وسایل. پوهنتونونه، لیسې او مدرسې، بانکونه، صنعتي شرکتونه او سوداګریزې غونډې دا ټول هر څه په داسې سرطاني دانو اخته دي چې یو تیزنشتر ته اړه لري

تر ټولو زیاته دا افسوس او غم خبره خو داده علم چې د بشریت تر ټولو ستر جوهر تشکیلوي نن د هغې هره څانګه د بشریت د تباهی لپاره استعمالولی شي، د ځواک او قوت ځومره وسیلې چې الله پاک انسان ته ورکړي دي دفساد او تباهی په چارو کې ورځخه کار اخیستلی شي، انساني لوړ صفتونه لکه میړانه ، ایثار، سر ښندنه سخاوت ، صبر، زغم، ټینګه اراده اولوړ همت او داسې نور نن ورځ د یو ځولویو بنسټیزو بد اخلاقیو په خدمت کې دي. ځرګنده ده چې ټولنیز فساد هغه مهال ډیر ځرګند ښکاري کله چې ځانګړي فسادونه د بشپړوالي مرحلې ته ورسیږي.
تاسو د دې خبرې سوچ نه شی کولی چې که چیرې د یوې ټولنې زیات وګړي نیک خلک وي په مجموعی توګه دې په بدو چارو لاس پورې کړې، داهم په هیڅ ډول امکان نه لري چې نیک عمله وګړي به د خپل قیادت او مشرتابه واګې دبدکاره خلکو په لاس کې ورکړي او په دې خبره به خو ښي ځرګنده کړي چې د هغوی ولسي ، دولتي او نړیوالې چارې په غیر اخلاقي اصولو و چلوي نو له همدې امله په لویه کچه د نړۍ ولسو نو ته دداسې رزیلو او ناکاره اخلاقو ځرګندونه د خپلو ټولنیزو ادارو په وسیله تر سره کوي، دا د دې خبرې دلیل دی چې نن بشریت د خپلو ټولو علمي اوتمد نې پرمختګونو سره سره په یو ډیر سخت اخلاقي تنزل او انحطاط کې اخته او زیا تره وګړي د دې رنځ نه اغیزمن شوې دي.
دا حالت که چیرې همداسې دوام وکړي نو هغه وخت لري نه دی چې په هغې کې به بشریت دیوې لویې تباهی سره مخامخ او دتیارو یوه اوږده لړۍ به پرې را خپره شې، اوس که موږ په پټو سترګو دبربادۍ دغې ټیټې کندې ته په منډه ځغلیدل نه غواړو نو موږ ته د دې درک لګول په کار دي چې د دې فساد سرچینه چېرته ده چې له هغې نه داتوپان را اولاړ شوی. ځرنګه چې دغه اخلاقي فساد دی نو موږ به ارومرو د دې پته په هغو اخلاقي افکارو کې لټوو چې د نن په نړۍ کې دوام لري

## د نړۍ والو اوسني اخلاقي مفکوره

اوس پوښتنه دا ده چې د نړۍ والو اخلاقي مفکوره څه شی ده ؟ ددغې پوښتنې د څېړنې څخه موږ ته په ډاګه کېږي چې په بنسټيزه توګه دغه ټول افکار په دوو لويو برخو ويشل شوي دي.

يو ډول هغه افکار دي چې د توحيد او اخرت د ژوند له عقيدې سره تړاو لري دويم ډول هغه افکار دي چې هغه له دې عقيدې څخه جلا دي او په څه نورو بنسټونو يې ټينګښت موندلی دی اوس به موږ ددې دواړو افکارو جاج واخلو وبه ګورو چې په نړۍ کې نن وخت دغه افکار په کومه بڼه موندلی شي او پايلې يې څه دي؟

دالله عزوجل په توحيد او داخرت په عقيدې چې د ځومره اخلاقي افکارو د بنسټ ډېره اېښودل شوې د هغو دشکل او صورت بشپړ انحصار د هغې عقيدې په نوعيت پورې تړلی شوی دی چې د الله او اخرت د ژوند په باور لرونکو خلکو کې موندلی شي نو ځکه موږ بايد وګورو چې نړۍ وال نن مهال الله عز وجل په کوم شکل مني او دبل ژوند په هکله يې عام تصورا وفکر څنګه دی؟

په الله عزوجل زياتره باورلرونکي وګړي په شرک کې اخته دي هغوی په خپل اټکل دالوهيت زياتره اختيارات چې د هغو تعلق د هغوی له ورځيني ژوند سره دی په نورو مخلوقاتو ويشلي او د هغوی خيالي مجسمې يې د خپلې غوښتنې په برابر داسې جوړې کړي چې هغوی د خپلې خدايې واک او صلاحيت ددوی له خوښې سره سم په کار راولي. دوی په ګناهونو لاس پورې کوي هغوی ورته بخښنه کوي دوی د خپلو فرائضو نه غافله او د هغوی د حقوقو نه بې پرواد ځناورو په شان د حلالو او حرامود بېلتون نه پرته د نړۍ په ورشوکې په

څرګندیادي او هغوی د خپل نذر اونیاز په بدل دوی ته د نجات ضمانتونه ورکوي که دوی غلاکولو ته هم ځي نو دهغوی د مهربانی له کبله پولیس اوده پاتې شي. ددوی او هغوی تر مینځ په دې خبره سودا شوې ده چې دوی دې دخپل لوري نه خپله عقیده ښه ساتي. او نذر او نیاز دې ورانديې کوي ددې په عوض کې به د دوی ټولې چارې د دوی له خوښې سره سمې ترسره کیږي او له مرګه وروسته چې هر کله الله د دوی مئواخذه وغواړي نو هغوی به د مېنځګړي په توګه ووایې چې دوی خو خپل ځانونه زموږ په ځولۍ کې اچولي ؤ دوی ته دې هیڅ نه ویل کیږي بلکې په ځینو ځایونو کې خو د دوی د رانیولو هیڅ ضرورت نه پیښیږي ځکه چې د دوی د ګناهونو کفاره خو بل چا مخکې سرته رسولې وه.

دغو مشرکانه عقیدو د اخرت په ورځ باور هم بې مفهومه وګرځاؤ ددې نتیجه دا شوه چې ټول اخلاقي ارزښتونه چې دین یې د بنسټ ډبره ایښې وه له مېنځه ولاړل. دیني اخلاق خو یوازې په کتابونو کې لیکلی شوې او په ژبه یې هم په ډیرې درناوې سره یادونه کیږي. البته په عملي توګه د دوی د پابندۍ نه د ژغورلو په خاطر شرک د تیښتې بې شمیره لارې پرانستې دي. په هر حال دوی خپل زړه ته ډاډ ورکوي چې د خلاصون پړاؤته به ورسیږو له شرک نه ور اخوا چیرته چې د الله پالنې او اخرت عقیده په ښه شکل موجوده ده هلته وینو چې په الله پاک د باور غوښتنې د بشري ژوند په یوه کوچنۍ دایره کې محدودې شوي دي. ځینې چارې یو څو رسمونه او بندیزونه دي چې د انفرادي او ټولنیز ژوند په محدوده دایره کې یي ګواکې الله ور څخه غوښتنه کوي او په بدل کې یې ورته ډیر لوی جنت تیار کړی دی.

که چیرې دوی دا غوښتنې بشپړې کړي. نو بیا خو د الله عزوجل له لوري د بل څه کولو ضرورت نه پیښیږي له دې نه وروسته دوی بشپړه خپلواکې لري چې د ژوند چارې له خپلې خوښې سره سم سرته ورسوي او که چیرې هغوی په دغه الهي غوښتنو کې له نیمګړتیا څخه کار واخلي نو د هغه جلت عظمته په رحمت او مهربانۍ دوی باوري دي چې د جنت په دروازه کې به له دوی څخه د ګناه پیټی لرې کړي او جنت ته د ننوتلو لپاره به اعزازي ټکټ ورکړي.

دغه تنګ او لنډ دیني تصور خو د لومړي ځل لپاره د ژوند په معاملاتو باندې د دیني اخلاقیاتو تطبیق ډیر محدود کړ چې د هغې له کبله د ژوند ټولې لویې لویې څانګې د ټولو اخلاقي لارښوونو او بندیزونو څخه ازادې شوي کوم چې به د دین نه تر لاسه کولی شوې بلکه دا چې په دې تنګه دایره کې د اخلاقي نیوکې نه د ژغورنې لپاره یوه پرانستې لاره پرېښودل شوه او دهغې نه د ګټې په اوچتولو کې ډیر لږ خلک سستي څرګندوي.

له دې ټولو نه ښه حالت چې د کومو مذهبي پاتکیو دی په داسې حال کې چې هغوی له شرک څخه هم پاکې دي په رښتیا سره په الله باور لري او د اخرت په هکله د دروغو په اسره باوري نه دي د دوی دننه د اخلاقو سپڅلتیا خو بیشکه موندلی شي البته په عامه توګه د مذهب او روحانیت محدود تصور دوی خراب کړي دي. دوی له دنیا او له ژوند سره د اړوندو پیښو نه تر ډیرې اندازې پورې بې تعلقه پاتې شوې دي او څو ځانګړي کارونه یې چې هغه دیني چارې ګڼلی شي په خپله غاړه اخیستي دي یا خو خپل روح په وینځلو وینځلو سوتره کوي د دې په خاطر چې دوی هم په دې نړۍ کې د عالم غیب د اوازونو د اوریدلو او حسن مطلق د سیورې د لیدو قابل وګرزي د دوی په نزد د

دنیوي ژوند نه ګوښه کیدل الله ته د نږدې توب او نجات وسیله ده. یو لورته چې دین کومه نقشه وړاندې کړې د هغې په برابر دې د خپل ژوند یو څو څرګند اړخونه برابر کړي او بیا دې د نفس د تزکیې د څو طریقو څخه کار واخیستلی شي او بیا دې د یوې محدودې دایرې دننه په څو مذهبي او روحاني مصروفیتونو کې بوخت پاتې شي او د ژوند شپې او ورځې دې بشپړې کړې ګواکې د دوی خدای ته یو څو بنایسته د شیشولوښې یو څو ښکلي لاوډسپیکرونه یوڅو خوندور راډیوستیشنونه او یو څو ښکلې د عکاسۍ کمرې په کاروې او دهمدغه هدف لپاره هغه زمکې ته ددومره وسایلو سره انسان رالیږلی ؤ ددین دغه روحانې نا سم تصور او فکر له تولو نه ډیرلوی زیان دا رسولی دی چې کوم وګړي د ډیرو لوړو او سپیڅلو اخلاقي صلاحیتونو لرونکې ؤ هغوی یې د ژوند له ډګره ګوښه کړل او ګوټونو ته یې بوتلل ډیرو پستو او نالایقو خلکو ته له څه کړاوه پرته د ژوند ډګرخالي پاتې شو.

د نړۍ د بشپړ مذهبي صورت حال لنډیز هم دادی او له دې څخه تاسو اندازه لګولی شئ چې د الله پالني له عقیدې څخه کوم اخلاقي ځواک انسان ته په لاس ورتللی شو ډیرو خلکو هغه حاصل نه کړډیر لږ وګړي یې په حصول بوخت دي.

دا ځکه چې د بشریت د مشرتابه او لارښوونې ځینې هغوی پخپله لاس اخیستی دی نو ځکه د هغوی حال هغې بطرۍ ته ورته دی چې له ځواکه ډکه وي خو بیا هسې چیرته پرته وي.

د انساني تمدن قافله چې په اوسني وخت کې کوم خلک رهبري کوي د هغوی خویونه د الله عزوجل او اخرت د بنسټیز تصور څخه خالي دي او له پوهې سره سره خالي کړی شوي دي

دا چې په اخلاقو کې يې د الهي لاربنوونوڅخه په بشپړه توګه انکار کړی دی اګر که په هغوی کې ځيني خلک د څه نا څه مذهب قايل دي خو د هغوی په وړاندې دين او مذهب د هر سړي يوازې شخصي معامله ده چې هغه د يو شخص تر ذاته پورې محدود ساتلی شي له ټولنيز ژوند او معاملاتو سره د دين او مذهب هيڅ سرو کار نه بولي بيا نو ددې څه اړتيا ده چې هغه دې د ژوندنيو چارو د چارچلند د لاربنوونې په خاطر د بشريت نه د لوړ ځواک په لوري مراجعه وکړي

د تيرې شوې پيړۍ په وروستيو برخو کې چې د کوم اخلاقي خوځښت پيل له امريکا څخه وشو بيا ورو ورو په انګلستان او نورو هيوادونو کې هم خپور شو د هغه بنسټيز اهداف د امريکا د اخلاقو د انجمن د اعلاميې په فهرست کې په دې توګه وړاندې شوي دي.

د بشري ژوند په ټولو اړيکو کې که هغه شخصي وي او که ټولنيزې، ملي وي او که بين المللي د اخلاقو په انتهايي اهميت زور او فشار راوړل ضروري دي په دې شرط چې ديني معتقداتو او مافوق طبيعت افکارو ته په کې ځای ور نه کړی شي.ددې خوځښت له امله په انګلستان کې د اخلاقو د انجمن ټلواله Unionof Ethical Societies جوړه شوه.وروسته بيا د اخلاقي اتحاد EthicalUnion په نوم پيوستون جوړ شو. ددې بنسټيز اهداف داسې بيان شوې.

انساني ملګرتيا او بشري خدمت بايد له مذهب، دين ، اخرت او د مرګ نه وروسته ژوند له تصوره پاک اوسي اخلاقو ته د اخرت د عقيدې څه اړتيا نشته په سوچه بشري او فطري وسايلو سره انسانان د خپل ژوند په ټولو برخو کې له حق سره د مينې او معرفت او په حق باندې د عمل کولو لپاره تيارول ضروري دي.

واقعیت دادی چې په پورته الفاظو کې د لویدیځ تمدن څیره بر بنډه شوي ده چې نن ورځ د نړۍ د افکارو د تهذیب او تمدن د چارو د لاربښوونې واک ورسره ده.

نن ورځ چې په عملي توګه کوم وګړي د نړۍ نظام چلوي د هغو ټولو په فکر کې همدغه تصور پروت دی چې مخکې مو څرګند کړ دوی خپل افکار له الله او د اخرت د عقیدې او د دین له لاربښوونو څخه ازاد کړي دي هغوی یوازې د الله جلت عظمته وجود مني خو د خپل ژوند لپاره اصول او قوانین له هغه څخه نه اخلي بلکې د ژوند په ډګر یې بې واکه بولي.

## د لادینه اخلاقي فلسفو ارزونه

اوس به مونږ غیر دیني فلسفې وارزوو چې د دوی کیفیت څه شی دی؟
لومړی: د اخلاقي فلسفو بنسټیزه پوښتنه داده چې هغه اصلي او وروستنۍ نیکي او ښېګڼه کومه یوه ده چې هغې ته رسیدل د بشري هلو ځلو هدف او په معیار یې د انسان عملي کړنلاره برابره شي ، د ښو او بدو، صحیح او ناسم په هکله یې پریکړه وشي؟ددې پوښتنې یو ځواب نه دی بلکې د دې ګڼ شمیر ځوابونه دي د ټولګي له نظره خوښي ا و خوشحالي ده د دویم له نظره کمال د دریم له نظره مسؤلیت پیژندنه چې د مسؤلیت پیژندنې په موخه وي

بیا د خوشحالۍ او خوښي په هکله جلا جلا پوښتنې پیداکیږي چې څنګه خوشحالي؟ایا هغه چې د جسماني او روحانې غوښتنو په پوره کولو حاصلیږي ؟او که د ذهني او فکري پرمختګ پوړیو ته رسیدل دي ؟ایا فردي او که ټولنیزه خوښي ؟په همدې توګه چې کوم خلک کمال هدف ګرځوي د هغو په هکله هم ډیرې پوښتنې راپورته

کيږي چې د کمال تصور او معيار څه شی دی؟په همدې ډول د چا کمال مطلوب دی ؟د فرد او که د ټولنې او يا د ټول بشريت ؟

په همدې توګه چې کوم وګړي دا مني چې مسؤليت دې د مسؤليت په مقصد وي او داسې قانون حيثيت دې غوره کړي چې مطلق اطاعت يې وکړی شي او هغه دې انتهايي خيراو ښيګڼه وګڼل شي، د دوی په هکله هم دا پوښتنه را پورته کيږي چې هغه قانون په واقعيت کې څه شی دی ؟چا جوړ کړی او د چا قانون دی چې اطاعت يې پر موږ واجب شوی.

ددې ټولو پوښتنو ځوابونه د بيلابيلو ډلو په نزد جلا حيثيت لري. يوازې د فلسفې په کتابونو کې سره جلا نه بلکې په عملي توګه هم سره ورته والی نه لري.

د بشري پرګنو ګڼ وګړي چې د انساني تمدن بيړۍ را کاږي په دوی کې د حکومتونو چلونکي، وزيران د فوځونو جنرالان، قاضيان، قانون پوهان ، ښوونکي او اقتصاد پوهان او د تمدن په دغه لويه قافله کې د بيلابيلو درجو کار کونکي شامل دي له دوی سره د ښيګڼې او نيکۍ يو معيار نه بلکې د هر سړي او ټولګي جلاجلا معيارونه دي د تمدن په دې نظام کې د کار کولو سره سره د هر يو په وړاندې جلا جلا اهداف دي د يو چا په نزد ځاني خوشحالي اصل هدف وي چې د هغه ځاني غوښتنې بشپړې شي. ځينې خلک خپلې شخصي خوشحالۍ پسې لګيدلي ويدهغه ټولې هلې ځلې دځانې خوښۍ لپاره وي مګر د هغه په څرګند شريفانه صورت موږ په دې اشتباه کې پريوتي يو چې د انساني ټولنې لپاره هغه يو موزون وزير، قاضي، ښوونکی او يا په بل عبارت د تمدن د ماشين يوه ښه پرزه ده.

په دې توګه د خوشحالۍ او نیکمرغۍ څخه ځینې وګړي د ځانګړو خلکو خوشحالي اخلي چې له هغو سره د دوی مینه او شوق وي. د دوی په اند دا هغه لویه نیکي ده چې د لاسته راوړلو لپاره یې کوښښ کول ضروري بریښي، همدغه نقطه نظر بیا د خپل قام نه پرته د نورو ولسونو لپاره زهر ګرځوي. خو موږ په ظاهري شکل هغه یو مهذب انسان بولو او هغه امانتونه هغه ته سپارو چې په هغو کې د هغه د خپلې طبقې او قام نه پرته د نورو برخه هم وي.

په همدې توګه بیلا بیل شخصیتونه په هغو خلکو کې موندلی شي. کوم چې کمال لویه نیکي ګڼي او چې مسؤلیت او فریضه د فریضې په توګه مني په دوی کې زیاتره خلک د خپلو نظریاتو د عملي نتیجو په اعتبار د انساني تهذیب او تمدن لپاره د زهرو حیثیت لري. خو هغوی په خپلو ځانونو د (تریاکو) د نوم کاغذ لګولی دی او زموږ په ټولنیز ژوند کې لګیا دي جذب کیږي.

دویم: اوس وړاندې ځو د اخلاقو د فلسفې په بنستیزو پوښتنو کې دویمه مهمه پوښتنه دادی چې له موږ سره د خیر او شر، ښو او بدو د پیژندلو کومه وسیله شته ؟د کومې سرچینې په لوري رجوع وکړو چې ښه او بد ،صحیح او غلط را وښیٔ؟ ددې پوښتنو یو ځواب هم انسان نه دی موندلی ددې ډیر ځوابونه دي. د چا په نزد هغه وسیله او سرچینه انساني تجربه ده، د چا په نزد د ژوند قوانین او د حالاتو د وجود پوهه ده. د چا په نزد وجدان او د چا په نزد عقل دی په دی هکله ګڼ افکار دي چې پای نه لري دغه شیان د اخلاقود سرچینې په توګه منل د اخلاقي نظام له رنګولو سره مترادف دي. که چیرته دا شیان ماخذ او سرچینه وګڼلی شي نو د اخلاقو لپاره به دا اصول وګرځي چې

دا څه تاكلي معيارونه لري د يوې بهيدونكې مادې په شان بهيږي او په بيلابيلو پيمانو كې جلاجلا شكلونه غوره كوي.

د بشري تجربو څخه د صحيح علم د لاسته راوړلو لپاره له دې نه پرته بله چاره نشته چې دهغوى په هكله دې مفصل او بشپړ معلومات راټول كړى شي او د يو بشپړ ذهن او ستركو ځبنتن دې ور څخه نيتجې تر لاسه كړي.

واقعيت دادى چې دا دواړه شيان امكان نه لري. دا ځكه چې بشري تجربې لاپاى ته نه دي رسيدلې بلكې جريان لري. بيا تر اوسه چې كومې تجربې دي د هغې بيلا بيلې برخې د بيلا بيلو خلكو په وړا ندې دي هغوى په بيلا بيلو ډولونو د خپل ذهن مطابق ور څخه نتيجې راوباسي. نو ددې نيمګړو معلوماتو څخه چې جلا جلا نيمګړي ذهنونه د خپلو هڅو مطابق كومې نتيجې تر لاسه كوي ايا هغه ټولې صحيح كيدلى شي ؟

كه چيرې ځواب منفي وي نو هغه ذهنونه څومره په لويې ناروغتيا اخته دي چې د خپل خير او شر د پيژندلو لپاره د علم او پوهې دغه وسيله بشپړه بولي.بيا همدغه معامله د ژوند د قوانينو او د حالاتو د وجود هم در واخله بيا خو تاسو د اخلاقي نيكيو او بديو د پيژندلو لپاره د هغه وخت انتظار وكړي. ترڅو چې ددې قوانينو او حالاتو په علم درته پوره ډاډ حاصل شي او كه نه ؟نو بيا هم ددې نيمګړو معلوماتو پر بنسټ چې تاسو يې هم نيمګړي بولى. د بيلا بيلو ذهنونو او عملي مرتبو خلك چې بيلا بيلې پريكړې كوي د دوى لپاره خير او شر څه شى دي ؟دوى خو د علم د هرې يوې نوې برخې له لاس ته راوړنې ځينې وروسته خپلې پريكړې بدلوي تر دې پورې چې د نن ورځې خير د سبا لپاره شر جوړ شي او د نن ورځې شر د سبا لپاره خير

وګرځي د عقل او وجدان معامله هم له دې څخه جلا نه ده. جوته ده چې د خير او شر د پيژندلو څه استعداد عقل ته هم په برخه ده او هر شخص د عقل يو څه برخه لري په همدې توګه د خير او شر علم يو څه وجداني هم دی چې د هغه الهام د هر انسان په ضمير کې په فطري توګه صورت نيسي خو ددې علم لپاره يو هم په ذاتي ډول بس والی نه کوي چې د علم د نهايي او يواځينی وسيلې په حيث انتخاب شي.

عقل او يا وجدان چې هريو تاسو په ذاتي توګه بشپړ وبولی په هر حال به تاسو د علم په يوې داسې وسيلې اعتماد کوئ چې نه يوازې په خپل فطرت کې نيمګړې او محدوده ده بلکې هغه چې تر بيلا بيلو اشخاصو طبقو حالاتو او وختونو پورې ورسيږي نو په بشپړه توګه په بيلا بيلو شيانو د خير او شر پريکړه صادر وي.

دا ټول شيان چې ما اوس ستاسو په وړا ندې بيان کړل يوازې تر علمي مقالو او فلسفيانه څېړنو پورې محدود نه دي بلکې په واقعيت کې د نړۍ په تهذيب او تمدن کې په عمومي توګه ددې عکس په بشپړه توګه څرګند ښکاري ستاسو په تمدن کې چې کوم وګړي کار کوي. برابره خبره ده چې هغوی امیران دي او که مامورين ټول د خير او شر صحيح او ناسم د پيژندلو لپاره په خپل خپل ډول هم ددې سرچينو په لوري رجوع کوي د هر شخص او ټولګې خير او شر د نورو د خير او شر څخه جلا دی تر دې پورې چې د يوه خير د بل لپاره بشپړ شر او دبل شر دبل انتهايي خېردی په دې ګدوډۍ کې داخلاقو لپاره څه مضبوط او پوخ بنسټ نه پاتې کيږي.

کوم شيان چې په نړۍ کې دتل لپاره جرم او ګناه ګڼلی شوی ؤ هغه نن سبا ديوې ډلې په نظر کې خير او ښيګڼه ګڼل کيږي او ياکه چېرې په بشپړ ډول خيرنه دی نو د اضافه خېر مرتبه يې موندلې ده په دې

توګه کومې نیکې چارې چې انسان تل نیکې ګڼلې دي په هغو کې زیاتره نن ورځ ټوکې ټکالې ګڼلی شي او بیلا بیل ټولګي په هغې نه یوازې داچې د شرم احساس کوي بلکې په ډیر فخر او ویاړسره یې په ښکاره ډول تر پښولاندې کوي
پخوا به یو دروغژن دروغ ویل خو په رښتیا ؤ به هم قانع ؤ خو د نن ورځې فلسفو دروغ خبر ګرزولې دي او د دروغو ویلو یې یو باقاعده فن تدوین کړی او په لویه پیمانه ولسونه او حکومتونه دروغ خپروي همدا دهرې بد اخلاقۍ حالت درواخله تیر مهال به بد اخلاقي یوازې بداخلاقي ګڼلی شوه مګر اوس هغه د نوې فلسفې له کبله ټولې مطلقې نیکۍ اوښیګڼې ګرزیدلې دي.
دریم :د اخلاقي فلسفې په بنسټیزو پوښتنو کې دریمه پوښتنه داده چې د اخلاقو د قانون ترشا هغه کوم زور او قوت دی چې د هغې په زور او ځواک دغه قانون نافذ کړی شي؟
ددې په ځواب کې چې کوم وګړې د خوشالۍ او کمال قایل دي هغوی وایي کومې نیکۍ چې د خوشالۍ او کمال په لوري بوتلونکې وي هغه د پیروۍ ځواک په خپل ځان کې لري په همدې توګه د غم، کړاؤ او ذلت په لور بوتلونکې بدي پخپله خپل ځواک له ځان سره لري له دې نه پرته د اخلاقو د قانون لپاره دڅه بیروني ځواک له سره اړتیا نشته.
بله ډله وایې چې د مسؤلیت قانون د انسان د معقولې ارادې له مخې په خپل ځان باندې یو لاژم کړی شوی قانون دی دده لپاره د څه بیروني ځواک اړتیا نه لیدل کیږي. دریمه ډله سیاسي اقتدار د اخلاقي قانون لپاره اصل نافذه ځواک بولي ددې مسلک له نظره د حکومت او ریاست په لور هغه ټول واک منتقل کیږي هغه چې لومړی

دالله جل جلاله لپاره منل شوی ؤ یعنې دا ستوګنو لپاره داخبره چې هغوی ته څه کول په کار دي او څه نه دي په کار د حلالو او حرامو واک دوی دالله عزوجل پر ځای دولت ته سپاري. څلورمه ډله دامرتبه او مقام د حکومت پر ځای ټولنې ته ورکوي ددې ټولو ځوابونو په نتیجه کې په نړۍ کې دفساد بې شمیره عملي صورتونه پیداشوي دي او لګیادي پیداکیږي.

لومړنیو دوؤ ځوابونوانفرادي سرکشۍ او بغاوت ته دومره هوا ورکړه چې د ټولنیز ژوند شیرازه یې تار په تار کړه بیا ددې عکس العمل د هغو فلسفو په بڼه کې څرګند شو چې د هغو له مخې حکومت ته د الوهیت او خلکو ته دغلامانو مرتبه ورکړی شوه او یا بیا دا فرادو د خوراک او څښاک سره یې د هغوی د خیر او شر واکې هم د ټولنې په لاس کې ورکړل په داسې حال کې چې دالوهیت سپیڅلی مقام نه ریاست او حکومت ته په برخه ده او نه ټولنې ته.

څلورم :د امعامله ددې پوښتنې په ځواب کې هم پېښیږي چې هغه کوم محرک دی چې هغه انسان د خپلو طبیعې تمایلاتو پرخلاف د اخلاقي احکامو پابندۍ ته تیاروي؟د یو چا په وړاندي یوازي د خوشالۍ طمعه او درنځ او تکلیف ویره ددې لپاره بشپړ محرک وي.ځینې نور بیا یوازې د کمال خواهش او دزیان څخه د خلاصون هیله پوره محرک بولي ځیني نور خلک په انسان کې دقانون د احترام په جذبې اعتماد کوي ځینې نور بیا د حکومت نه داجر هیله او د غضب ویري ته ارزښت ورکوي او ځینې وګړي بیا د ټولنې اجر او دغضب ویره داهمیت وړبولي.

په دوی کې هریو ځواب په عملي توګه زموږ په اخلاقي نظامونو کې دلومړي توب مرتبه حاصله کړي ده او که لږ شان ځیرشو نو دا

حقيقت موږ ته په ډيرې اسانۍ سره څرګنديدلې شي چې دا ټول محرکات دبد اخلاقۍ لپاره هم دومره ښه ثابتيدلی شي حقيقت دادي چې په دوی کې دبد اخلاقۍ لپاره د محرک جوړيدلو ځواک ډير زيات دی په هر حال ذيوې لوړې مرتبې د اخلاقي توب لپاره دا ټول محرکات په بشپړه توګه بس والی نه کوي.

پورته په لنډه توګه ما د نړۍ د اخلاقي حالت جاج اخيستی دی له دي نه څرګنديږي چې په نړۍ کې نن سبا يوه هم اړخيزه ګډوډي موندلی شي هر کله چې خلک له الله جلت عظمته څخه بې پرواشول نو څه داسې بنسټيز اصول يې ونه موندل چې په هغي سره په بشپړ ډاډ سره د خپلو اخلاقو تعمير وکړي. د اخلاقو ټولې بنسټيزې پوښتنې د هغه لپاره په حقيقت کې لاځوابه شوي دي نه خو هغه د هغه لوړ خيراو ښيګڼې څه پته معلومه کړه چې هغه دده د هلوځلو انجام ګرزيدلی وي چې د هغي په وسيله يې د کړو وړو دښو او بدو يا د صحيح او ناسم پر يکړه کيدلی شوه نه يې هغه سرچينه پيدا کړه چې له هغې نه يې په صحيح ډول معلومه کړې ا وسي چې خير او شر څه شی دی او نه يې دالهي لوړ اقتدار په پيژندلو کې برى حاصل کړ چې د هغه د حکم پربنسټ د اخلاقو لوړې هراړخيزې او نړۍ والې ظابطې ته د نفاذ ځواک په برخه وای او نه يې داسې ځواک وموند چې د هغې له مخه يې په انسانانو کې په ريښتيا باندې د عمل کولو او له دروغو څخه د ځان ساتلو حقيقي مينه او هڅه پيدا کړې وای

انسان چې کوم مهال له الله عزوجل نه په بغاوت لاس پورې کړ نو په خپل سرېې ددغو پوښتنو حل کول وغوښتل او په خپل خيال يې حل هم کړل البته داخو د انسان حل څخه را پيدا شوي نتيجې دي چې نن ورځ يې موږ د اخلاقي ځوړتيا د يو خطر ناکه توپان په څير په پورته

کیدلوونو چې بشپړ انساني تهذیب ته یې ډیر لوی خطر پېښ کړی دی.ایا اوس هغه وخت نه دی را رسېدلی چې موږ هغه بنسټ ولټوو چې پر هغه باندې د انسانې اخلاقو د تعمیر ماڼۍ ودانه شي؟
په واقعیت کې دا هڅه او څیړنه یوازې یو عملي بحث نه بلکې زموږ د ژوند یو عملي ضرورت هم دی او د وخت نزاکت نور هم ضروري ګرزولی دی له دې کبله زه دخپلې څیړنې نتیجه وړاندې کوم او غواړم چې کوم وګړي دا اړتیا محسوسوي نه یوازې دا چې په ډاډه زړه دې زما په نتایجو غورو کړي بلکې په خپله دې هم په بشپړې څیړنې لاس پورې کړي چې دانساني اخلاقو لپاره.کوم بنسټ صحیح کیدلی شي؟

## د انساني اخلاقو صحیح بنسټونه

زه چې د خپلو څیړنو او تحقیق څخه کومو نتیجو ته رسیدلی یم هغه دادي: د اخلاقو لپاره یوازې یوبنسټ صحیح دی او هغه موږ ته اسلام راښودلی په دې کې موږ د ټولو اخلاقي فلسفو په هکله د ټولو بنسټیزو پوښتنو ځوابونه موندلی شو داسې ځواب چې په هغه کې هیڅ نیمګړتیا نشته کومې چې په فلسفیانه ځوابونو کې موندلی شي هغه چې نه خو د هغو له کبله په ټولنه کې د یو مضبوط او پوخ سیرت د بنسټ ډېره اېښودلی شي او نه د بشري تمدن د پراخو مسؤلیتونو د سپارلو قابل ګرځیدلی شي.دلته موږ یوه داسې هر اړخیزه اخلاقي لارښوونه موندلی شو چې هغه د ژوند ټولې څانګې د پرمختګ تر لوړو څوکو پورې رسوي.اوپر هغه د یو ډیر صالح تمدن ماڼۍ ودانیدلی شي. که چیرې په دې اصولو د انفرادي او ټولنیزو کړو وړو ډېره کیښودلی شي نو انساني ژوند به ددې فساد نه خوندي وساتل شي له کوم سره چې نن ورځ مخامخ شوی دی.د کومو دلایلو په رڼا کې

چې زه دغې نتيجې ته رسيدلی يم لنډه شرحه به يې ګرانو لوستلونکو ته وړاندې کړم:

فلسفه چې د کوم ځای نه خپل اخلاقي بحث او څيړنه پيلوي په حقيقت کې هغه د اخلاقي مسئلې پيل نه بلکې د مينځ يو څو نکتې دي.

دا د هغې لومړی غلطي ده ،دا پوښتنه چې د انسان لپاره د عمل د سموالې او غلطۍ معيار څه شی دی ؟

هغه کومه نيکي ده چې تر هغې رسيدل د انسان اصل مطلوب وي، په اصل کې دا پوښتنه وروسته ده له دې نه مخکې چې د کومې پوښتنې حل کول ضروري دی هغه دا ده چې په نړۍ کې د انسان حيثيت څه شي دی ؟

دا پوښتنه په ټولو مخکې ده، د حيثيت د ټاکنې نه پرته د اخلاقو پوښتنه نه يوازې دا چې بې مفهومه ده بلکې په دې کې زيات د دې خبرې امکان دی چې په دې توګه کوم اخلاقي ارزښتونه په نښه کړی شي هغه به په بنسټيزه توګه ناسم وي.د مثال په ډول تاسو ته د کوم شي د تصرف په لړکې دا پريکړه کول وي چې په دې کې ما ته څرنګه کول په کار دي او کوم قسم چلند زما له پاره حق او کوم ډول باطل دی ؟

نو ايا دا پوښتنه تاسو په صحيح طريقه حل کولی شي ترڅو چې لومړی دا خبره سپينه نه کړي چې په دې شي کې ستاسو حيثيت څه شی دی او له دې سره ستاسو د تړاوډول څنګه ده ؟

که چيرې دغه شی د بل چا حاکميت وي او ستاسو حيثيت په کې د يو امين په توګه وي نو په دې صورت کې به ستاسو لپاره د اخلاقي تګلارې نوعيت بل څه وي او که چيری د تاسو بې قيده واک وي نو ستاسود اخلاقي کړنلارې ډول به بله بڼه ولري او خبره يوازې دومره هم نه ده بلکې په حقيقت

کې په دې خبره باندې د پریکړې انحصار هم دی چې په دې شي کې ستاسو لپاره د صحیح تګلارې تعینولو حقدار څوک دی ؟تاسو پخپله او که هغه څوک چې تاسو یې امین یاستی ؟

د اسلام سپیڅلی دین لومړی تر هر څه ددې پوښتنې په لور توجه کوي او موږ ته په ځرګند ډول له شک او شبهې نه پرته وایې چې په نړۍ کې د انسان حیثیت د الله جل جلاله د بنده او نایب په حیث دی، دلته چې له څومره شیانو سره انسان مخامخ کېږي ټول د الله جلت عظمته ملکیت دي تردې پورې چې انسان او د هغه د جسم ټول ځواکونه هم د انسان خپل ملکیت نه بلکې د الله عزوجل ملکیت دی چې ده ته یې په دې شیانو واک ورکړی او نړۍ ته یې د خپل خلیفه او نایب په توګه لیږلی دی.په دې خبره کې د هغه یوه ازموینه هم ده د ازموینې وروستۍ نتیجه په دې نړۍ کې نه راوزي بلکې کله چې د افرادو، قامونو او د انسانې نوعې کار ختم او د انسانانو د هلو ځلو نتیجې د بشپړتیا پړاؤ ته ورسیږي. نو الله عزوجل به بیا په یو وخت له ټولو خلکو سره د حشر په میدان کې حساب کوي.او ددې خبرې پریکړه به کوي چې چا هغه د بندګۍ او نیابت حق پوره کړي او چا نه دی پوره کړی؟دا ازموینه به یوازې په یوې خبري کې نه بلکې په ټولو کارونو کې وي، د ژوند دیوې څانګې په هکله نه بلکې په مجموعي توګه به د ټول ژوند سره متعلق وي ،د نفس او جسم څومره ځواکونه چې انسان ته ورکړ شوې د ټولو ازموینه به اخیستله کیږي.

د انساني حیثیت ددې ټاکنې منطقي نتیجه داده چې په نړۍ کې د خپلې اخلاقي کړ نلارې د ټاکلو حق انسان ته نه دی ورکړشوی بلکې ددې پریکړه د الله جلت عظمته حق دی له دې وروسته د اخلاقو د فلسفې ټولې پوښتنې چې فلسفیانو څیړلې نه یوازې داچې حل

کیدلی شي بلکې ددې خبرې هیڅ ځای نه پاتې کیږي. چې د یوې پوښتنې دې د هرش دیرش ځوابونه وي او په یو یو ځواب دې د انسانانو یوه یوه ډله د اخلاقو په یو جلا اړخ روانه وي او په تمدني او ټولنیز ژوند کې دې دا وسیدلوسره سره په بیلا بیلو لارو روان وي.

که چیرته د انسان هغه حیثیت ومنلي شي چې اسلام ورکړی دی نو دا خبره پخپله ټاکلی شي چې په الهي ازموینه کې بری او دهغه جلت عظمته رضا حاصلول هغه لوړه او بهتره نیکې ده چې پخپله همدغه د ژوند مطلوب او هدف دی .

د یوې تګلارې دصحت او غلطۍ چورلیز په دې خبره ده چې هغه د نیکۍ په حصول کې تر څومره اندازې مرستندویه او یا خنډ ګرز بدلی شي په دې توګه چې دا خبره دلته غوره شي چې دانسان لپاره د ښو او بدو د صحیح او ناسم علم اصلي سر چنیه الهي لارښوونې دي .له دې نه پرته چې د علم نورې څومره و سیلې دي ددې اصلي سرچینې مرستندویه خو کیدلی شي خو پخپله اصلي سرچینه نه شي جوړیدلی. او د اخبره هم فیصله کیدلی شي چې د اخلاقو د قانون د واجب الاطاعت کیدلو اصل بنسټ یوازي دادی چې هغه د الله عزوجل مقرر کړی قانون دی او د اخبره هم سپیناوی مومي چې د ښو اخلاقو پابندي او د بدو اخلاقو څخه د ځان ساتنې لپاره اصل محرک د الله عزوجل مینه او دهغه د خوښۍ لټول اوله ناخوښۍ نه یې ځان ساتل دي. بیانو نه یوازي دا چې د اخلاقو د فلسفې ټولې بنسټیزې پوښتنې ځوابیږي په حقیقت کې چې په دې بنسټ کوم اخلاقي نظام په پښودریږي د هغې په دننه کې په ډیرې متوازنې او متناسبې طریقې ټول اخلاقي نظامونه خپل موزون ځای مومي کوم چې د اخلاقي فلسفې مفکرینو تجویز کړې دي .

د فلسفي ډوله نظامونو بنسټيزه خرابتيا دانه دی چې په دوی کې دحقيقت اور ښنتينولی څه اثار نشته.بلکې ددوی اصلي خرابۍ داده چې هغوی د صداقت يوه برخه اخيستې او هغه يې پوره کُل (مجموعه) ګرزولې نو ځکه ديو جزء د کل (مجموعي) ګرزولو لپاره چې څو مره د زيات والي ضرورت پيښيږي د هغې د بشپړتيا لپاره هغوی ار ومرو د ډيرو باطلو اجزاء و په اخيستلو مجبوريږي. ددې پرعکس اسلام بشپړ صداقت وړاندې کوي او په دې کلي (مجموعي) صداقت کې ټولې جزيې ر ښتينولی جذبيږي.چې له خلکو سره جلا او نيمګړې وي.

د لته د خوښۍ ځای هم دی خوله دې څخه هغه خوشالي مقصد دی چې دالله عزوجل د قانون د پيروی په نتيجه کې سړي ته په برخه کيږي دا خوښي او خوشالي مادي او جسماني هم ده ذهني او روحاني هم په همدې ډول د فردهم ده د ټولنې او ټول بشريت هم په دې ټولو خوښيو کې ټکرنه بلکې توافق دی دلته د کمال يو مقام هم دی خو هغه کمال چې په الهي ازموينه کې دسل په سل نمبرو د لاسته راوړلو نتيجه کې په برخه کيږي .او دا د فرد ، ټولنې، ولسونو او د بشپړ انسانيت کمال دی صحيح اخلاق او تګلاره هغه ده چې دهغې له کبله هر فرد نه يوازې دا چې د کمال په لوري پرمختګ وکړي بلکې چې د نورو په تکميل کې هم مرستندوی اوسي او دهيچا په تکميل کې بنديز رامينځته نه کړي

دلته د لويديځې فلسفې مفکر (کانت) قطعي اوواجب الاطاعت (Categorical- Imperati) فرضيه هم د بشپړ وياړ مقام مومي د کوم قطعي واجب الاطاعت قانون يادونه چې (کانت) کړې ده چې پخپله هغه هم ددې توضيح و نکړی شوه په حقيقت کې هغه الهي قانون دی

چې د الله جلت عظمته له خوا تاکلی شوی او دالهي قانون په حیث واجب الاطاعت او بیله ځنډه یې اطاعت کول نیکي ده.

په دې توګه د لته د اخلاقي خیر او شر د علم چې کومه سرچینه موږ ته ښودلې شوې ده هغه د علم نورې وسیلې نه نفی کوي د کومو په لور چې فلسفي رجال رجوع کوي بلکې هغه دا ټول د یو نظام جزء ګرځوي البته اسلام یې د اصلي سرچینې په توګه نه پیژني د الهي هدایت په وسیله چې موږ ته د خیر او شر کوم علم رابخښل شوی هغه اصلي علم دی پاتې شو هغه علوم چې په تجربې او عقل سره معلومیږي. دا ټول د اصلی علم (الهي لاربښوونو) ګواهان دي کومو شیانو ته چې الهي هدایت خیر وایې بشري تجربه او عقل د هغه ګواهي ورکوي او د ژوند قوانین یې تصدیقوي عقل او وجدان یې دواړه ګواهان دي په بیره ویلي شو چې د صداقت اور ښنتینو لی معیار یوازي الهي هدایت دی نه دعلم نورې وسیلې

د بشر تاریخي تجربو او یا د ژوند له قوانینو څخه چې سرچینه یې بشري عقل اوو جدان وي که چیري داسې رایه قایمه کړی شي چې هغه دالهي لاربښوونو پرخلاف وي نو اصنل اعتبار الهي هدایت ته ورکول کیږي. له موږ سره دعلم د مستند معیار دشتون ګټه داده چې زموږ په علم کې به پو خوالی او انظباط وي موږ به په بشپړه توګه له انتشار او ګډوډۍ څخه په امن یو چې د یو معیار د نشتوالي له کبله او هغه د (اعجاب کل ذي راې برایه)یعنې چې هرشخص په خپلهٔ رایه ټینګ وي پیداکیږي

په دې توګه دلته د اخلاقو د قانون مرستیال ځواک (Sanction) مسئله هم په دې شان حل کیږي چې په دې سره د هغو نورو شیانو نفی نه کیږي کوم چې فلسفي پوهانو را مېنځته کړي دي بلکې د هغې

سمون پرې صورت مومي په کومو غلطو حدودو چې هغوی خواره کړې شوي دي له هغه ځای نه هغوی لرې کولی شي او په يو بشپړ نظام په صحيح ځای کې اينبودل کيږي

د الله عزوجل قانون په خپل ځان کې د تطبيق او تنفيذ ځواک لري او دا ځواک د هغه مؤمن مسلمان په زړه کې موجونه وهي چې د الله عزوجل رضا يې هدف او پخپله د هغه کمال غوښتونکی وي چې هغه د الله عزوجل په لور دورتللو په نتيجه کې حاصليږي.

دا ځواک د مؤمنانو په ټولنه اوپه هغه اسلامي حکومت کې هم موجودوي چې دالهي قانون په واکمنۍ يې د بنسټ ډېره اينبودل شوې وي او د قانون په پابندي يو مؤمن تيارولی شي د هغه سوچه وظيفه پيژندنه هم ده، حق ته د حق په سترګه کتل او د هغه خوښول او باطل ته د باطل په سترګه کتل اوله هغه نفرت کول هم دي او هغه تمه او ويره هم ده چې هغه يې له الله جلت عظمته ځخه لري.

## په بشري ژوند د اسلامي اخلاقو اغيزې

په دې توګه د اسلام ځلانده او نجات ښونکي لمر هغه بشپړه فکري او عملي ګډوډي پای ته ورسوله او بيا يې د هغه لپاره د اخلاقو ديو بشپړ نظام د بنسټ ډېره کيښودله اسلام چې د الوهيت کوم تصور وړاندې کوي هغه دادی چې الله عزوجل د انسان او ټولو کاييناتو يواځينی ښښتن، خالق ، معبود او واکمن هم دی چې هېڅوک ور سره شريک نشته د هغه په درګاه کې د خير له دعاء نه پرته په زورسره د سپارښت کولو ځای له سره شتون نه لري.له هغه عزوجل سره د هر انسان د بريالیتوب او ناکامۍ چورليز د هغه په خپل عمل دی نه خو څوک د هغه کفاره ګرزيدلی شي.او نه د يو چا د

عمل ذمه واري او مسؤليت پر هغه اچولی شي او نه د يو چا د عمل بدله او عوض بل چاته ورکولی شي د هغه جلت عظمته سره د هيچا په نسبت جانبداري نشته چې له يو سړي يوې کورنۍ او يو قام سره يې د نورو په نسبت زياته مينه او محبت وي ټول انسانان د هغه په وړاندې يو شان دي د ټولو لپاره د اخلاقو يو قانون دی د يو انسان فضيلت هر څه د ديني او اخلاقی فضليت په اعتبار دي هغه پخپله زيات مهربان دی او رحم يې خوښ دی هغه پخپله فياض دی او سخاوت خوښوي هغه پخپله غفور او بخښونکی دی او بخښنه يې خوښه ده هغه پخپله عادل دی او عدل خوښوي هغه عزوجل د ظلم، تنګ نظرۍ زړه تنګۍ بې رحمۍ تعصب او نفساني طرفدارۍ نه پاک او سپيڅلی دی نو ځکه بې هغه څوک خوښ دي چې هغوی له دې خبرو څخه پاک وي بيالويې يوازې د هماغه حق دی نو ځکه يې کبر کول خوښ نه دي الوهيت يوازې د هغه لپاره ده او نور ټول د هغه بندګان دي نو ځکه بې په يو بنده باندې د نورو الوهيت او حاکميت خوښ نه دی يوازې د ټولو کايناتو څښتن دی له انسانانو سره چې څه دي هغه د امانت په توګه دي نو ځکه د يو انسان لپاره له الله عزوجل نه خپلواکي او د بل چا لپاره قانون جوړول او د بل چا لپاره واجب لاطاعت ګرزيدل دا هر څه ټول په حقيقت کې غلط دي د ټولو انسانانو د اطاعت وړ هم د هماغه عزوجل سپيڅلی ذات دی د ټولو انسانانو خير اومصلحت په دې کې ده چې په بشپړه توګه يې په بيړه اطاعت و کړی شي ،هماغه محسن د شکر احسان او محبت وړدی هغه د نعمتونو ورکونکی او ددې وړدی چې دهغه په نعمتونو کې د هغه جلت عظمته د غوښتنې سره سم تصرف وکړی شي هغه عادل ذات دی لازمه ده چې انسان د هغه په عدالت کې دسزاموندلو ويره او د ثواب طمع وساتي هغه عليم

او خبیرذات دی اود زړونو پټې خبرې او رازونه ورته معلوم دي نو ځکه د ښکاره اخلاقي ښه والي نه هغه ته ځوک دوکه نه شي ورکولی هغه د علم او قدرت په لحاظ هر ځای کې موجود دی نو ځکه د اهیله هیڅوک نه شي کولی چې ځوک جرم وکړي او د هغه د نیولو څخه به وژغورل شي.

د الوهیت په دې تصور ښه فکر وکړئ له دې نه په بشپړه توګه د یوې فطري نتیجې په توګه د انسان لپاره د ژوند یو مکمله اخلاقي نقشه رامېنځته کیږي چې د ټولو نیمګړتیاؤ نه خالی ده کوم چې د مشرکانه مذهبونو او د کفري الحادي مسلکونو په اخلاقیاتو کې موندلی شي

دلته نه خو د اخلاقي ذمه واریو نه دبچ کیدلو لپاره د غلا در وازې پرانستې دي او نه د ظالمانه فلسفو لپاره څه ګنجاېش شته چې د هغو په نسبت انسان د خپلو رغبتونو پر اساس د انساني نړۍ په ویشلو لاس پورې کړي یوه برخه مجسمه فرښته او بله برخه دې مجسم شیطان جوړشي نه دلته دالحادي اخلاقو هغه بنسټیزه کمزوري موندلی شي چې د هغو له کبله په اخلاقو کې تزلزل رامېنځته کیږي.

د اسلام اخلاقي ښوونې یوه ډیره لوړه او پراخه نتیجه وړاندې کوي چې د هغې دوسعت او لوړتیا څه اندازه نشته او دهغې د انجام په لور د غزیدلو لپاره داسې محرکات برابر وي چې هغه ډیر پاک او سپیڅلې دي بیا دا فکر او باور چې د انسان ازموینه په یو شي کې نه بلکې په ټولو هغو شیانو کې ده چې الله پاک انسان ته ورکړي دي په دي حیثیت نه بلکې په جلا جلا حیثیتونو کې به وي کوم چې انسان ته په برخه شوي او د ژوند په یوه ځانګړې څانګه کې نه بلکې په بشپړ ژوند کې به وي

د اخلا قـو دغـه دایـره دومـره ارتـه ده څو مره چې دا زمویني دایره پراخه شوې ده دانسان عقل د هغه د علم وسایل د هغه ذهني او فکري ځواکونه د هغه حواس د هغه جذبات د هغه غوښتني د هغه جسماني ځواکونه ټول په ازموینه کې شریک دي یعني د انسان د ټول شخصیت ازموینه اخیستل کیږي. بیا په بیرون نړۍ کې چې انسان له کومو شیانو سره مخامخ کیږي په کومو شیانو چې دده واک او تصرف دی او له کومو خلکو سره چې په بیلا بیلو ډولونو د هغه اړیکه ده د هغو ټولو سره د هغه د چلند په هکله به بشپړه محاسبه کیږي. د هغو ټولو سره د هغه د سلوک او کړنلارې په هکله به له هغه ازموینه اخیستل کیږي.او له ټولو نه سخت امتحان به په دې خبره کې وي چې انسان دا هر څه د الله عزوجل دالوهیت او دخپلې بندګۍ او نیابت له احساس سره تر سره کړي او که د خپلې ازادۍ او خپلواکۍ له غوښتنو سره او که د الله عزوجل نه پرته د نورو د بندګۍ په چاپیریال کې ؟

د اخلا قـو په دغـه پراخه تصور کې هغه تنګوالی نشته کوم چې د مذهب له محدود تصور څخه را پیداکیږي .د اخلا قـو پورتنـی هـر اړخیز تصور انسان د ژوند پـه هـر ډګـر کـې مخـتـه بیایـې او دهـر ډګر اخلا قـي مسؤلیتونه ورتـه پـه ګوته کوي او هغـه اخلا قي اصول ورته وربښئ چې په بشپړې پیروۍ سره به یې انسان په هغه الهي ازموینه کې بریالی شي چې هغه د دنیا د ژوند له جلا ډګر سره تعلق لري.

بیا دا تصور چې د ازموینې اصلي او وروستنۍ پریکړه به په دې ژوند کې نه بلکې په یو بل ژوند کې به وي .او حقیقي کامیابي او ناکامي هغه ده چې هلته حاصله شي نه دلته دا خبره د نړۍ ژوند او ددې په معاملاتو کې د انسان نظر په بنسټیز ډول تبدیلوي ددې تصور له کبله هغه نتیجې کومې چې په دې نړۍ کې راوزي زموږ لپاره دښه

والي او بد والي يا د صحيح او ناسم د حق او باطل د کاميابۍ او ناکامۍ اصلي غوخ او وروستني معيار نه شي ياتې کيدلی نو ځکه د اخلاقو د قانون د پيروي کولو او يانه کولو انحصار هم په دې نتيجو نه شي کيدلی ، کوم شخص چې دا تصور ومني هغه به د اخلاقو د قانون په پيروۍ کې په هر حال ثابت قدم پاتې وي برابره خبره ده چې په نړۍ کې د هغې نتيجه په ښکاره ډول ښه وي او که بده د بري په ښه ځرګنده شي او که د ناکامۍ په بڼه خو ددې معنا دا نه دی چې دده په نظر کې به د نيوي نتيجې په بشپړه توګه د لحاظ قابليت ونه لري بلکې ددې معنا يوازې دادی چې د هغه اصلي او وروستنی نظر به داخرت په تلپاتې نتيجو وي او دځپل ځان لپاره به هغه تګلاره صحيح ګڼئ چې هغه نتيجې يې په نظر کې ساتلي او غوره کړې وي.هغه به ديو شي د پرېښودلو او يا غوره کولو پريکړه پر دې بنسټ نه کوي چې د ژوند په دې لومړي پړاؤ کې د لذت ، خوشالۍ او ګټې لامل دی او که نه؟ بلکې په دې بنسټ به يې کوي چې د ژوند په وروستني پړاؤ کې به د خپلو غو ځو نتايجو له مخې ځرنګه وي؟

په دې توګه به دهغه اخلاق پرمختللي وي نه دده سيرت بدليږي رابدليږي يعنې د تهذيب او تمدن په ښيرازې سره د هغه په اخلاقي تصور اتو کې به پراخوالی خو ارومرو را درومي خو هيڅکله کيدلی نه شي چې د پېښو د هراړخ او دحالاتو د هر تغير سره د هغه اخلاقي اصول هم بدلون وموميي او له يو شخص ځخه دي اخلاقي کربوړی جوړشي چې د هغه په اخلاقي سلوک کې دې هيڅ شان پوخوالی نه وي .د اخلاقو له نقطه نظره داخرت اسلامي فکر موږ ته دوه ګټې لري اودا په بله وسيله نه حاصليږي .

لومړی: دا چې د دې په وسیله اخلا قي اصول ډیر مضبوط او پوخوالی مومي.

دویم: دا چې د دې په وسیله اخلا قي سیرت ته داسي استقامت په برخه کیږي چې په هغې کې دا یما ن په شرط د بدلون هیڅ خطر نه وي په نړۍ کې در ښتینولۍ لس بیلا بیلې نتیجې راوتلی شي او په دې نتیجو نظر لرونکې انسان د وخت او امکاناتو په لحاظ لس ډوله جلا جلا عملي تګلارې غوره کولي شي البته په اخرت کې د صداقت اور ښتینولۍ نتیجه هم یوه وي او هغه مؤمن انسان چې په اخرت باورلري د دنیوي ګټې او زیان له اړخه هم هغه یوه کړنلاره غوره کوي که ددنیا نتایجوته وګورونو بیاخو خیر اوشر د څه ټاکلې شي نوم نه شي پاتې کیدې یوشی د بیلا بیلو نتیجو په لحاظ ځینې وخت خیر وي ځینې وخت شر او دهغې په پیروۍ کې ددنیا پرست انسان عمل هم بدلیږي را بدلیږي.البته که د اخرت په نتایجو نظر ساتۍ نو بیا خو خیر او شر دواړه په غوڅ ډول ټاکل کیدی شي کوم مؤمن انسان چې په اخرت باور لري د هغه لپاره هیڅکله کیدی نه شي چې ځینې وخت دې د خیر بد انجام اود شر دې ښه انجام وګڼي او په خپل عمل کې دې بدلون راولي.

بیا دا تصور چې په نړۍ کې انسان د الله عزوجل نایب او خلیفه دی او دتصرف او واکمنۍ چې کوم واکونه دلته هغه ته په برخه دي هغه په اصل کې په دې بنسټ دي چې دی دالله جلت عظمته خلیفه دی او دغه شی د انساني ژوند لپاره لاره او هدف دواړه ټاکي له دې تصور سره لازمي ده چې دا نسان لپاره خپلواکي او د الله جلت عظمته نه پرته دبل چا بندګي او د مالکیت او لویي ټولې تګلارې دې ناسمې او یوازې همدغسې تګلارې ته دې د صحت ګوته ونیول شي

هغـه دې پخپلو ټولـو تصـرفاتو کـې دالله د خوښـې او دهغـه د راليږلـې شوي قانون تابع واوسي له دې څخه دا خبره هم لازمېږ ي چې انسان دې لـه يوې خوا پخپلو اخلا قـو او سلوک کې د هر يوې داسې عملي تګلارې څخه ځان وساتي چې په هغې کې د خپلواکۍ سرکښۍ او يـا د الله عـزوجل نه پرته د بل چا د بندګۍ باداري او لويې د ذرې په اندول شک او شبهه وي دا ځکه چې دا درې واړه شيان دده حيثيت ته زيان رسوي.دده حيثيت خو دنايب او خليفه دی مګر بل لورته به د الله په ملکيت کې دده تصرف او د هغـه پـه مخلوقاتـو کې دده کړنلاره او دهغـه عـزوجل پـه رعـيت واکمني د هغـو اخلا قـو او هغـې کړنلارې په برابـروي کوم چې ددې سلطنت اصلي څښتـن په خپل ملک او په خپل رعيت کې غوره کړي دي دا ځکه چې دنيابت د حيثيت غوښتنه دادی چې د بادشاه د نايب پاليسي او تګلاره دې پخپله د بادشاه د کړنلارې او اخـلا قـو سره په ټکرکې نـه وي پـه همدې توګه له دې تصور نه دا هم لازميږي چې کوم ځواکونه الله پـاک انسـان تـه ورکړي دي د هغـو ټولو استـعمال دې دالهـي لارښـوونو پربنسټ وي داسـي هـم ويلـي شو چې د بادشاه هغه نايب به سخت مجرم وي چې د بادشاه د خوښې پر ضد يې د هغـه پـه ملکيت او دهغـه پـه رعـيت کې تصرف کړی وي او هغه نايب دې هم لـوی مجرم و ګڼلی شي چې کوم اختيـارات ده ته بادشاه ورکړي پـه هغـو کـې يـو اختيـارهم استـعمال نـه کړي اودهغـه پـه ورکړل شوېو ځواکونوکې څښنې.لـه مينځه يوسي او کومـي وسيلې يې چې هغه ته ورکړي لـه هغـو نـه پـه کـار اخيـستلو کې لـه پوهې سره سم له نيمګړتيا څخه کاراخلي او لـه هغـو مسـؤليتونو څخـه مخ واړوي د کومو لپاره چې بادشـاه مقرر کړی ؤ.ددې تصـور او عقيدې بله لازمي غوښتنه دا هـم دی چـې د بشـرې نوعـې بشـپړ ټولنيـز ژونـد دې پـه داسـې طـريقه

برابرشي چې ټول انسانان يعنې د الله عز وجل ټول نائبان دې د هغو مسؤليتونو په سرته رسولو کې کوم چې الله پاک هغوی ته سپارلې دي يو د بل مرسته وکړي او دتمدن اوودانۍ په نظام کې دې څه داسې کارکونکي نه وي چې د هغې له کبله يو انسان د بل انسان او يا يوه ډله د بلې ډلې خلافت په عملي توګه پای ته ورسوي او يا يې په عملي کولو کې خنډونه ايجاد کړي بلکه بڼه يې داده چې هرکله يو انسان او يايوه ډله د انساني خلافت او نيابت څخه لاس واخلي او له خپل حقيقي بادشاه څخه په بغاوت لاس پورې کړي.

همدغه اخلاقي کړنلاره ده چې د خلافت د تصور د لازمي نتيجې په توګه د انسان لپاره جوړه شوې، پاتې شو د انسان د اخلاقي ژوندانه هدف او دهغه د ټولو هلو ځلو او کوښښونو نصب العين هغه هم له دې تصور سره د منطقي نتيجې په توګه يو ځای ټاکل ددې غوښتنه کوي چې د ځمکې پرمخ د انسان دژوند هدف د الله جل جلاله د خوښۍ له پوره کولو نه پرته نور هيڅ شی نه دی الله پاک چې د ځمکې د نظم او نسق څومره برخه انسان ته ورسپارلې ده په هغې کې دالهي قانون جاري کول د الله عزوجل له غوښتنې سره سم دعدل او انصاف.نظام پر پښو درول او د شر او فساد نظام چې انسانانو او پيريانو رامېنځته کړی له مېنځه وړل ټولو نيکيو ته وده ورکول او د بديو له مېنځه وړل دا هغه موخه ده چې د هغې په لور به هر انسان خپلو هلو ځلو ته ادامه ورکوي دا هدف يوازې دومره هم نه دی چې هغه ټول مقاصد له مېنځه يوسي چې ماده پالونکو او قام پاله عناصرو د خپل ژوند لپاره مقرر کړې دي بلکې دابه هغه بابېزه او عبث مقاصد وي چې دروحانيت تر غلط تصور لاندې د مذهب خاوندانو ټاکلي دي.

ددغو دوارو ناسمو افکارو ترمېنځ دالهي خلافت تصور دانسان په وړاندې د ژوند يو ډېر لوړ او سپيڅلې هدف مخې ته ږدي او هغه ټول ځواکونه او استعدادونه دژوند په هر ډګر کې په کار راولي اود تهذيب او تمدن د يو ډېر صالح نظام د ټينګښت او پرمختګ په خدمت کې يې استعمالوي دا هغه بنسټيز اصول دي چې د انساني اخلاقو د ماڼۍ د ټينګولو لپاره موږ ته اسلام را په برخه کړيدي

اسلام د يو ځانګړي قام ملکيت نه بلکې د ټول بشريت ګډ ميراث تشکيلوي او د ټولو انسانانو دخلاصون او نجان وسيله ده نو پردې اساس هر هغه چاته چې د خپل ځان او بشريت د نجات او خلاصون هيله ولري فکر په کار دی چې ايا د انساني اخلاقو د ماڼۍ د ودانولو لپاره دا بنسټونه غوره دي کوم چې اسلام موږ ته راکړي او يا هغه چې روحاني او فلسفي مسلکونه يې موږ ته لګيادي راښئ که چيرته د چا زړه داګواهي ورکړي چې داخلاقو لپاره داسلام بنسټونه صحيح دي نو بياخو د جاهلي تعصب پراساس ددې بنسټونو په منلوکې ځنډکول په کار نه دی

والسلام

# د
# اسلامي تحریک اخلاقي
# بنسټونه

دغه مضمون دمحترم مولانا دهغې وینا متن دی چې د ټول هند دجماعت اسلامي په کلنۍ غونډه کې يې په ۱۹۴۵ م کال د اپریل دمیاشتې په یوو یشتمه نیټه یې د ختیځ پنجاب په دارالاسلام (پټهانکوټ) کې کړې وه .

## تر حمد او ثنا وروسته

درنو لوستونكو!

تاسي ته ځرګنده ده چي زموږ د هلو ځلو وروستنى پړاؤ په قيادت كي بدلون راوستل دي يعني په نړۍ كي چي موږ كوم وروستني پړاؤ ته خپل ځانونه رسول غواړو هغه دادى چي د فاسقانو او فاجرانو قيادت او زعامت پاى ته ورسيږي او يو صالح قيادت رامينځته شي دهمدغه ستر هدف لپاره هلي ځلي موږ په دنيا اواخرت كي دالله جلت عظمته درضا دحاصلولو وسيله بولواو دغه كار مو په خپلو اهدافو كي شامل كړى دى

ډيره دافسوس خبره ده چي نن ورځ ددي خبري له اهميت څخه مسلمان او نامسلمان ټول ناخبره دي مسلمان يې يوازي سياسي هدف بولي او په دي نه پوهيږي چي په دين كي يې څه اهميت دى. نامسلمان وګړي خو د دښمنۍ او ناپوهۍ له امله په دي حقيقت نه پوهيږي، جوته ده چي د فاسقواو فاجرو خلكو زعامت او مشرتوب دټولو بشري مصيبتونو ريښه ده.

دبشريت د ټولو نېكمرغيو او بربا ليتوبونو انحصار يوازي په دي خبره كي دى چي د نړۍ دچارو دمشرتابه واګي دي دنيكو او صالحو وګړو په لاس كي اوسي نن چي په نړۍ كي ظلم وحشت، بربريت، بغاوت، ظلم او فساد خپور شوى او په انساني اخلاقو كي نړى وال وراني ځرګند په ستر ګوښكاري او د بشري تمدن، اقتصاد او سياست په رګ رګ كي يې زهر خپاره شوي. ټول ځمكني وسايل او د بشري علومو په وسيله لاس ته راغلي ځواكونه د انسان دنيكمرغۍ او خدمت پرځاى د بربادۍ لپاره استعمالولى شي.

ددي ټولو مسؤليت او ذمه واري كه پرچا بارولى شي يواځينى لامل يې دادى چي په نړۍ كي دنيكانو خلكو څه كمبود نشته مګر په

دنیوي چارو کې دوی بې واکه او بې صلاحیته دي دولسونو د اقتدار واګې له الله جلت عظمته نه د سرغړانده ماده پالونکو او بد اخلاقه خلکو په لاس کې دي اوس که چېرې څوک د نړۍ والو اصلاح غواړي او فساد په اصلاح ، ګډوډي په امن ، بداخلاقي په ښو صفاتو او بدي په نیکیو بدلول غواړي دهغو لپاره یوازې د نیکو چارو وعظ او تلقین او دالله پالنې او ښو اخلاقو تشویق او ترغیب کافي نه دی بلکې دهغوی فریضه او مسؤلیت دی چې په بشري ټولنه کې څومره نیک خلک دي له ټولو څخه دې یوټولنیز ځواک جوړ کړی شي چې د تمدن دنظام واګې له فاسقانو څخه واخلي او صالحانو ته یې وسپاري

## د ولسي چارو د واګو اهمیت

دبشري ژوند په چارو کې چې چاته یو څه بصیرت او پوهه په برخه وي هغه په دې حقیقت پوهیږي چې دانساني معاملاتو د ورانې او ودانې وروستنۍ پریکړه چې پر کومې مسئلې پورې پخه اړیکه لري هغه داپوښتنه ده چې د بشري چارو د مشرتابه واګې د چا په لاس کې دي ؟ څرنګه چې یو موټر د تل لپاره په هغه لاره روان وي په کوم لوري چې یې موټروان چلول غواړي په موټر کې ناست خلک که زړه یې وغواړي او که نه په همغه لوري په سفر کولو مجبور دي په همدې توګه د بشري تمدن قافله به په هغه لاره روانه وي په کوم لوري یې چې دغه خلک چلول غواړي چې په لاسونو کې یې دچارو واګې دي څرګنده ده چې دځمکې ټول وسایل دځواک او واک واګې ددوی په لاسونو کې دي دعامو خلکو د ژوند برخلیک په دوی پورې تړلی دی دخیالاتو ، افکارو او نظریاتو دجوړولو او خلکو ته یې د ورلیږدولو وسایل ددوی په واک کې دي دځانګړو اخلاقو جوړښت او د ټولنیز نظام تشکیل او داخلاقي کرنلارو ټاکل د دوی صلاحیت دی د دوی ترمشرتابه لاندې وګړي په مجموعي توګه پر هغې لارې د تللو څخه نه راستنیږي

پرکومې لارې يې چې دوى روانول غواړي دغه لاربښوونکي او چارواکي کچېرې الله پالونکي او نيک خويه خلک وي نو ارو مرو به د ژوند ټول نظام دالله پالنې او خير په لارو چارو روانوي ناکاره او بد خلک به د بنو چارو په کولو مجبور يږي او نيکيو ته به وده ورکولې شي او بد کارو نه که له مونډنه، ونه ويستل شي نو د پرمختګ مخه به يې ډب کړى شي.

ليکن که چېرې د مشرتابه او لاربښوونې واکي دهغو خلکو په لاسونو کې وي چې له الله نه سرغړانده په ګناهونو فسق او فجورو کې اخته وي نو ستاسې دژوند ټول نظام به له الله عزوجل نه د سرکښنې ، ظلم او بداخلاقۍ پر لاره روان شي افکار ، نظريات . علوم ، ادب . فرهنګ ، سياست ، اقتصاد . تهذيب ، ټولنيز ژوند اخلاق ، معاملات او دعدل او قانون نظام به په مجموعي توګه ونړېږي بدو کارونو ته به بنيرازتيا په برخه شي نيکيو ته به ځمکه په خپله سينه کې ځاى نه ورکوي هوا او اوبه به ورته له غذا ورکولو څخه معذرت وغواړي د الله عزوجل ځمکه به د ظلم او زرو زياتي پراخه ډګر وګرزي . په داسې نظام کې به په بديو چلند اسان او په نيکيو به له ستونزو ډک وي.

تاسو به دخلکو لويه ټولنه . ليدلي وي چې ټوله غونډه کوم لوري ته روانه وي نو سړي ته دخه زور کولو اړتيا نه وي بلکې دهغې غونډې په زور به په هماغه لوري ور زغلول کيږي . البته که چېرې همدغه شخص په مخالف لوري خوځيدل وغواړي نو په ډير زور سره به نيم ګام مخکې ځواک پيداکړي څومره ګامونه چې په مخکې اينبودل وغواړي دغونډې يو ټکان به يې څوګامه شاته و تمبوي

په دې توګه په ټولنيز نظام کې هم چې کله دناکاره وګړو په مشرتابه کې د کفر فسق او بې دينۍ په لارو باندې تلل وي نو افرادو او ډلو ته به په ناسمه لاره تلل دومره اسان وي چې هغوى به پخپله پرې رهي کيږي او د زور کولو هيڅ اړتيا به ونه وينۍ ليکن که هغه د هغوى پرخلاف چليدل وغواړي نو د

خپل ځاني بشپړ زور په وسیله به په سمه لار یو ګام واخلي خو له ټولنیز ځواک سره د ټکر له امله به ځوکامه شا ته وغورځول شي

دا خبره چې ماتاسو ته وړاندې کړه کوم نظري حقیقت نه دی چې د ثبوت لپاره به یې د لایلو ته اړتیا ولیدل شي تاسو یې پخپله وینئ چې په تیرو سلو کلونو کې د ننه ستاسو په هیواد کې څنګه افکارو او نظریاتو بدلون وموند دخلکو مزاج ، دخوشالۍ او غم، داخلاقو معیار، د قدر او ارزښت تلې تغیر وکړ څه شي پاتې دي چې بدلون یې نه دی موندلی دغه ټول بدلون چې په په خپله زمکه کې یې وینئ ښه نو اخر ددې لامل څه شی دی ؟ ایا تاسو یې له دې نه پرته بل لامل ګڼلی شي چې دکومو خلکو په لاس کې دچارو واک او د لارښوونې او مشرتابه په واګو یې خپلې منګولې ښخې کړې دي . هغوی د ټولو هیوادوالو خویونه ، ذهنونه ، معاملات اود تمدن نظام دخپلې خوښې په قالب کې واچولو بیا چې کله کومو ځواکونو ددغه بدلون په وړاندې خنډونه ایجاد کړل لږ اندازه ولګوئ چې دهغوی کامیابي څومره او ناکامي یې څومره وه ایا دایو واقعیت نه دی چې پرون څوک د مخالف تحریک مخکښان ؤ نن دهغوی اولادونه د وخت له مخالفو څپو سره یوځای روان دي دهغوی کورونو ته هماغه څه ورسیدل چې له کورونو بیرون یې خپاره شوي ؤ ؟ ایا د اواقعیت نه دی چې د پاکو دیني مشرانو اولادونو ته هغه خلک لاس په نامه ولاړدي چې هغوی د الله له سپیڅلي وجود ،وحې او رسالت څخه انکار کوي له دغې مشاهدې او تجربې نه وروسته به هم څوک داحقیقت ونه مني چې د ژوند په چارو کې غوڅه مسئله دچاروواګی دی

دغې مسئلې دا اهمیت نن نه دی غوره کړی بلکې دتل لپاره یې ارزښت درلود (الناس علی دین ملوکهم ) ډیره پخوانۍ مقوله ده پردغه اساس یې د قامونو او ولسونو د وراني او وداني مسؤل ،علماء او امیران ښودلي دي ځکه چې قیادت او د چارو واګي د دوی په لاس کې وي .

# دصالح قيادت رامينځته كول د دين حقيقي موخه ده

له دغې تشريح څخه وروسته ناخبره په ډيرې اسانۍ سره په ذهن كې كښيناستلى شي چې په دين كې دامسئله څنګه د دومره زيات اهميت څخه برخمنه ده څرګنده خبره ده چې دالله (ج) دين لومړى داغواړي چې وګړي په بشپړه توګه د حق بندګان شي دهغوى په غاړه كې دې دالله جلت عظمته دبندګۍ له كړۍ نه پرته دبل چا د غلامۍ كړۍ نه وي بيا هغه غواړي چې دالله عزوجل قانون دخلكو دژوند نظام جوړ شي. له دې نه وروسته بيا دا غواړي چې د زمكې له مخ نه دې دفساد مونډ وويستلاى شي چې د زمكې پر استوګنو دالهي غضب او غوسې لامل ګرزيدلى او هغو نيكيو ته دې وده وركړى شي چې الله جلت عظمته يې خوښوي په دغو اهدافو كې يو هم ترهغه نه شي پوره كيدلى چې د بشريت لارښوونه او قيادت او د ژوند په ډګر د چارو واكمني دكفر او ګمراهۍ دمشرتابه په لاسونو كې اوسي او د حق دين پيروان دې يوازې ددوى رعيت او ددوى له وركړ شويو مرستو او ډاليو څخه ګټه واخلي او دالله په ذكر او اذكارو دې لاس پورې كړي

دغه اهداف په لازمي توګه ددې خبرې غوښتنه كوي چې د اصلاح او نيكۍ ټول لارويان چې دالله عزوجل خوښي او رضا غواړي ديو ټولنيز ځواك په جوړولو دې لاس پورې كړي او په بشپړې سربښندنې سره دې داسلامي نظام د ټينګښت لپاره مبارزه وكړي چې په هغه كې د مشرتابه منصب د نيكو او صالحو مؤمنانو په لاسونو كې ا وسي له دې كارنه پرته هغه مطلب نه حاصليږي چې دين يې غواړي

لـه همدې امله په دين کې دنيک او صالح قيادت نصبول او دحق نظام اقامه او ټينګښت ډير اهميت لري له دغه كاره پرته هيڅ يو داسې عمل په ستر ګو نه ښكاري چې انسان دالله عزوجل رضا پرې حاصله کړي.

ښه وګورئ چې په قران كريم او نبوي احاديثو كې دجماعت په التزام سمع او طاعت څنګه دومره زور راوړل شوي دی كه چېرې ورځخه يوڅوک وتل غوره کړي نو له هغه سره جګړه كول واجب ګرزي برابره خبره ده چې هغه د توحيد دكلمې ويونكى دلمانځه او روژې پابند هم ولې ونه اوسي ؟ ايا ددې يوازينى لامل دانه دى چې صالح قيادت او دحق د نظام قيام او پاينښت د دين حقيقي هدف دى، جوته ده چې دغه هدف ته رسيدل په ټولنيز ځواک پورې موقوف دي له همدې كبله چې يوڅوک ټولنيز ځواک ته زيان اړوي هغه د دومره لوى جرم مرتكب وګرزيد چې تلافي يې نه لمونځ كولى شي ، نه روژه او نه دتوحيد اقرار.

بيا وګورئ چې په دې دين کې جهاد ته څنګه دومره اهميت ورکړ شوى دى چې له هغه څخه په مخ اړونكو او نه عزم كوونكو قران عظيم الشان دمنافقت حكم صادر كړى جهاد داسلام دريښتني نظام دواكمنۍ پرلوري دهلو ځلو كولو دويم نوم دى قران كريم جهاد يوه تله بللې ده چې پرهغې باندې ديوشخص ايمان وزن كولى شي او يا به داسې وواېو ديو چاپه زړه كې چې ايمان وي هغه به هيڅكله دباطل نظام پرواكمنۍ راضي نه شي او نه به د حق دين دقيام او ټينګښت دمبارزې په لار كې خپل سراومال وسپموي. په دغه هكله كه چېرې يوڅوک معمولي كمزوري څرګنده كړي دهغه ايمان دشک وړ ګڼل كيږي بيا به دنيكو چارو بل عمل هغه ته څه ګټه ورسولى شي ؟

په دې ځای کې دومره فرصت نشته چې په بشپړ تفصیل سره دامسئله ستاسې په وړاندې څرګنده کړم خو څومره چې مې بیا ن کړې ده هغه په ذهن کې ددې حقیقت د کښېنولو لپاره کافي ده چې داسلام په رڼا کې دصالح قیادت نصبول مرکزي او مقصدي اهمیت لري.
څوک چې په اسلام ایمان لري دهغه کار یوازې په دې خبره پای ته نه رسیږي چې خپل شخصي ژوند داسلام په تله برابر کړي بلکې دهغه دایمان غوښتنه ده چې ټولې هلې ځلې به په دې نقطه کې راغونډوي چې دچارو واګې دکافرانو او فاسقانو له لاسونو څخه وباسي او نیکانو خلکو ته یې په لاس ورکړي او دحق هغه ریښتینې نظام پرېښنو ودروي چې د الله عزوجل دخوښې سره سم دنړۍ انتظام جوړ کړي او سم یې وساتي.
څرنګه چې دغه ستر هدف دټولنیز کوښښ نه پرته په لاس نه راځي ددې کار په خاطر دداسې صالح ټولګي وجود لازمي دی چې پخپله په حق ولاړ او دحق نظام قایم کړي دحق دنظام له پاینښت او ټینګښت څخه پرته یې په نړۍ کې بل مقصد نه وي.
دژوند په ډګرد یو مؤمن مسلمان لپاره په هیڅ ډول صحیح نه ده چې خپل ځان یوازې او وسایل نشت وګڼي او دباطل دنظام واکمنۍ ته سرتیټ کړي او یاد (اهون البلیتین) یعنې د دوو بلاګانو ځینې اسانه بلا غوره کولو شرعي حیلې لاندې ددې پلتڼه وکړي چې دکفر او فسق دواکمنۍ ترسیوري لاندې دنیمایې دیني ژوند سوداکول پیل کــــړي.
جوته ده چې دده لپاره سمه او روښانه لاره داده چې دالله عزوجل بندګان داسلامي ژوندون حقیقي لارې ته راوبولي چې الله جلت عظمته ته خوښه ده بیا که چېرې یو څا داخبره وانه وریدله نو دهغه

ټول ژوند پرسمه لاره دريدل او خلکو ته دعوت ورکول او دالله دلارې په لوري دبلنې او دعوت په زمزمو کې مړينه له دې نه په لکونو ځله غوره ده چې هغه په خپله ژبه هغه اوازونه پورته کړي چې په ګمراهۍ کې اخته نړۍ ته خوښ وي او پرهغو لارو ګامونه واخلي چې پرهغې باندې کافران د نړۍ والو قيادت سنبالوي

او که چېرته دالله جلت عظمته لږ شمير بندګان دده خبرې ته تيار شي نو لازمه ده چې ورسره يو ځای شي او يوه ډله جوړه کړي دغه ډله به خپل ټول ټولنيز ځواک ددغه ستر هدف په لاره کې په هلو ځلو لګوي لکه چې مخکې مو يادونه وکړه .

درنو لوستونکو !

ماته چې الله پاک لږ اوزباته ددين پوهه راپه برخه کړې دقران کريم او نبوی سنتو په رڼا کې دمطالعې نه چې ماته کوم بصيرت حاصل شوی په هغې کې ددې ځينې غوښتنې پيژنم داځما په وړاندې دالهي کتاب (قران کريم) غوښتنه ده داد پيغمبرانو تګلاره ده . ترڅو چې يې يو څوک راته دالله په کتاب او د رسول په سنتو ثابته نه کړي چې ددين غوښتنه دانه ده ترهغې پورې زه له خپلې رايې تيريدونکی نه يم .

## دمشرتابه په هکله الهي تګلاره

دخپلو کوښښونو د لوړ مقصد دپيژندګلوۍ نه وروسته موږ ته دهغې الهي کړنلارې د پوهيدلو کوښښ په کار دی چې د هغې په سيوري کې موږ خپل هدف ته ورسيږو

دغه ارته نړۍ چې په غيبږ کې يې موږ ژوند کوو الله عزوجل ديوقانون پر اساس پيدا کړې ده چې په پخو او ټينګو ظوابطو يې نظام

چليږي دلته کوم کوښښ يوازې دسپيڅلو غوښتنو او ښو نيتونو پر اساس دبري درشل ته نه رسيږي او نه دپاکو سپيڅلو نفسونو برکتونه دلته ګټهور ثابتيدلى شي جوته ده چې دلته دهغو شرطونو بشپړيدل ضروري دي چې دداسې هلو ځلو د کاميابۍ لپاره په الهي قانون کې ټاکلي شوې دي. تاسو که چېرې دکښت په چارو لاس پورې کوئ برابره خبره ده چې تاسوچې هر څومره يو لوړ صفته پرهيزګاره انسان واوسئ او په تسبيح، ذکر او دعا کې څومره پرمخ ولاړ شئ په هر حال ستاسو غورزول شوى تخم به هيڅکله ميوه رانه وړي تر څو د کرنې په چارو کې د هغه قانون پابندي ونه کړئ چې الله پاک د کښتونو لپاره مقرر کړى دى.

په همدې توګه د مشرتابه او قيادت هغه انقلاب چې ستاسو په مخکې دى هيڅکله به ددعا ګانو او پاکو سپيڅلو هيلو په اسره رامېنځ ته نه شي بلکې ددې لپاره ضروري ده چې تاسو په هغه قانون پوهه حاصله کړئ او ټول شرطونه يې بشپړ کړئ چې دهغې ترسيوري لاندې په نړۍ کې اسلامي قيادت په پښو دريږي چاته يې ورکوي او له چانه يې اخلي اګر که مخکې مې هم په خپلو ليکنو او ويناګانو کې داشارې په توګه دغه مضمون بيان کړى ؤ ليکن اوس يې له بشپړ تفصيل او تشريح سره وړاندې کول غواړم. داځکه چې داهغه مضمون دى چې له بشپړې پوهې نه پرته يې زموږ عملي کړنلاره نا څرګند ه پاتې کيږي.

انساني وجود که چېرته تحليل کړاى شي نو معلومه به شي چې په هغه کې دوه بيلا بيل حيثيتونه دي چې يو تر بل څخه جلا او يو تر بله سره يوځاى کيږي هم، دهغه يو حيثيت دادى چې هغه يو طبيعي او حيواني وجود لري چې پرهغه باندې هغه قوانين حاکم دي چې پر

ټولو کاینا تو او حیواناتو واکمن دي . دهغه دوجود عملي کار پر هغو الاتو او مادي وسایلو او مادي حالاتو ولاړ دی چې پر ټولو کاینا تو او حیواني موجوداتو یې انحصار دی دغه وجود چې هر څه تر سره کوي دتکویني قوانینو تر سیوري لاندې د عمل جامه اغوندي دهغه په چارو کې د اسبابو دنړۍ څواکونه مخالف وي او که موافق بشپړه اغیزه لري.

دویم حیثیت چې په انسان کې څرګند په سترګو ښکاري هغه یې انساني جهت او یا په بل عبارت د اخلاقي وجود حیثیت دی اخلاقي وجود یې دطبیعي او تکویني قوانینو تابع نه دی بلکې دغه حیثیت دانسان طبیعي او حیواني وجود هم د اسبابو او الاتو په توګه استعمالوي او د بیروني نړۍ اسباب او وسایل هم خپل ځان ته تابع ګرزوي

دهغه کارکونکي څواکونه هغه اخلاقي صفتونه دي چې په انسان کې الله تعالی جلت عظمته دامانت په توګه ایښي دي پر انسان او کاینا تو واکمني دانسان دطبیعي او تکویني قوانینو ، نه بلکې داخلاقي او روحاني څواکونو دی .

## دانسان دترقۍ او زوال محور اخلاق دي

دغه دواړه حیثیتونه په انسان کې یوځای کار کوي په مجموعي توګه دهغه بریا او ناکامي او دهغه د عروج او زوال په مادي او اخلاقي دواړو څواکونو دی له څوړتیا او زوال سره هغه وخت مخامخ کیږي چې دواړه څواکونه له لاسه ورکړي او یا هغه دواړه ېو دبل په نسبت کمزوری شي خو که چېرې په ژورې نظر سره وګورو نو څرګنده به شي چې په انساني ژوند کې اصل غوڅ اهمیت اخلاقي څواک ته په برخه دی

په دې کې هیڅ شک نشته چې دمادي وسايلو لاس ته راوړل او د طبیعي وسايلو استعمال او دبیرونیو اسبابو موافقت هم د بریالیتوب لپاره لازمي شرط دی تر څو پورې چې په دغه طبیعي نړۍ کې ژوند ترسره کوو داشرط هیڅکله له پامه نه شي غور خیدلی. خو هغه بنسټیز عنصر چې انسان ته لوړتیا او ځوړتیا په برخه کوي هغه اخلاقي ځواک دی جوته ده چې موږ کوم شي ته د څه شي له امله انسان وایُو هغه دهغه جسماني او حیواني برخه نه بلکې دهغه اخلاقي قوت دی انسان چې له نورو موجوداتو څخه په ځانګړي بنسټ کوم امتیازي مقام لري هغه دانه دی چې ګواکې دفضایوه برخه یې نیولې یا ساه اخلي او یا جنسي غزیزه لري هغه امتیازي صفت چې له هغه څخه یې مستقله نوعه نه بلکې د ځمکې خلیفه جوړ کړی هغه اخلاقي ځواک او اخلاقي مسؤلیت دی. هرکله چې دانسان اصل جوهر اخلاق دي نو ارو مرو ددې خبرې منل په کار دي چې اخلاقیات دانساني ژوندانه په ورانې او ودانې کې غوڅ مقام لري او اخلاقي قوانین دي چې دانسان په لوړتیا او ځوړتیا دواړو دواکمن حیثیت لري ددې حقیقت له پوهېدلو وروسته هرکله موږ داخلاقو تحلیل کؤو نو په بنسټیزه توګه یې موږ دؤو ځانګو ته ویشلی شو یو بنسټیز انساني اخلاق او دویم اسلامي اخلاق دي.

## دانسان بنیادي اخلاق

دبنیادي انساني اخلاقو نه مطلب هغه اوصاف دي چې د انسان اخلاقي وجود یې پر بنسټ ولاړ دی او ټول هغه صفات په کې شامل دي چې په دنیا کې دانسان دبری لپاره په هر ډول حالاتو کې لازم او ضروري دي ، که د غلط او ناوړه مقصد او هدف لپاره کار کوي او که د پاک او سپیڅلي مقصد لپاره په دغو اخلاقو کې ددې پوښتنې لپاره ځای نشته چې انسان، الله، وحې ، رسول او آخرت مني او که نه دپاک نفسې نیک نیتی او صالح عمل په ګانه ګاڼلی (ا راسته) دی او که

نه دښه مقصد او هدف لپاره کار کوي که د بد او ناوړه مقصد لپــــاره

له دې نه که تېرشوداسې ویلی شو چې په چاکې ایمان شته او که نه ژوند یې سپېڅلي دی اوکه ناولی ، دهغه د هڅو مرام او مقصد ښه دی اوکه بد ، داچې هر څه وي ، نو وي به ، خو هر هغه سړی او ډله چې په هغه صفاتو متصف وي ، چې په دنیا کې د بري لپاره ضروري دي ، یقیناً به کامیاب او بریمن وي او له هغه خلکو نه به دمقابلې په صورت کې لوبه وګټي ، چې ددغو او صافو له امله نیمګړی او ناقص وي . که مومن وي که کافر ،نیک وي که بد ، مصلح وي که مفسد ، لنډه داچې هرڅوک وي ، که له هغه نه یوفعال او کارګرانسان جوړیدی شي ، نو یوازې په هغه صورت کې داکار ممکن دی چې په هغه کې دارادې توان او د فیصلې قوت ، عزم ، حوصله ، صبر ، ثبات او استقلال موجود وي ، زغم او تحمل ولري ، همت او شجاعت په کې وي ، مستعد او ربړ ګالونکی وي دخپل مقصد سره یې عشق او مینه وي او دهغه لپاره په کې د هر شي د قربانولو جرات وي ، قاطعیت ، احتیاط ، معامله فهمي او تدبر ولري په حالاتو او شرایطو باندې د پوهیدلو او دهغې پر اساس دخپل ځان دعیارولو او مناسب تدبیر د غوره کولو وړتیا او قابلیت ولري . پر خپلو جذباتو ، غوښتنو او هیجاناتو باندې برلاسی وي ، د نورو څخه د کار اخیستلو صلاحیت او اهلیت په کې موجود وي له دې سره د اهم لازم او ضروري ده چې په هغه کې دهغو شریفانه خصایلو او خویونو د جملې څخه هم یو څه ناڅه موجود وي چې په حقیقت کې دانسانیت جوهر دی او د هغې له مخې دانسان وقار حیثیت او اعتبار په دنیا کې رامنځته کېږي . دمثال په توګه استقلال ، فیاضي ، مهرباني ،

همدردي ، انصاف ، د زړه او نظر پر اختیا ریښتینولي ، امانت داري دعهد پاس لرل ، معقولیت ، اعتدال ، وړتیا او شایستګي ، طهارت او نظافت او د ذهن او نفس انضباط .

که دغه صفات د یو ولس اویا کومې ډلې په زیاتو وګړو کې موجود وي نو داسې فکرو کړئ چې له هغوی سره د انسانیت هغه پانګه موجوده ده چې له هغې نه یو واکمن اجتماعیت مېنځته راتلی شي خود دغې پانګې له یو ځای کیدونه بالفعل یو پوخ مستحکم او فعال ټولنیز ځواک نشي جوړیدی تر هغې چې یو څه نور اخلاقي صفات هم له هغو سره مرسته ونکړي دمثال په توګه د ټولنې ټول خلک یا یوزیات شمیر وګړي پر کوم ټولنیز نصب العین له یو بل سره متفق وي او د غه نصب العین ورته له خپلو شخصي ګټو او غرضونو بلکې له خپل ځان ، مال او اولاد نه هم محبوب وي ا و په خپلو مینځو کې دیو بل سره محبت او همدردي ولري له یو بل سره د مرستې او ګډ کار په اصولو وپوهیږي خپله خو د خواهي او غرور او نفسانیت لږ تر لږه تر هغې اندازې قربان کړی شي چې دیوې منظمې سعې او منظم ګډ کار لپاره ضروري وي . په ښه او بد لاربښود کې تمیز او توپیر وکړلی شي ، موزون او مناسب خلک د خپل رهنما او لاربښود په توګه وټاکي . دهغوی په رهبرانو کې داخلاص ، حسن تدبیر او رهبرۍ نور ضروري صفات موجود وي او په خپله قام یاجماعت هم دخپلو رهبرانو په اطاعت و پوهیږي پر هغوی باور ولري او دیته چمتو وي چې خپل ټول ذهني ، جسماني او مادي وسایل هغوی ته وسپاري او همدارنګه په ټول ولس کې داسې ژوندۍ او حساسه ټولنیزه روحیه موجوده وي چې کوم داسې شي ته دوۍ اجازه ورنکړي چې ټولنیزو بنیګڼو او خیرته زیان ورسوي .

داهغه اخلاقي صفات ؤ چې زه ورته بنيادي اخلاق وايم ځکه چې په حقيقت کې همدغه اخلاقي صفات د انسان داخلاقي ځواک اصلي منبع او سرچينه ده انسان دهيڅ يو هدف لپاره هم په دنيا کې کامياب کوښښ نشي کولی تر څو چې د دغو صفاتو ځواک او ملاتړ ورسره نه وي.

ددغو اخلاقي صفاتو مثال پولادو ته ورته دی چې ذاتاً کروړ او محکم دي نو که کومه ګټوره او د کار وړ وسله ورڅخه جوړيدی شي نو له همدي نه به جوړېږي پر ته له دې چې دا په نظر کې ونيول شوي چې هغه به دغلط مقصد لپاره کارول کيږي او که د صحيح مقصد لپاره نو بيا به هم تاسو ته هغه وسله ګټوره ثابته شي چې له پولادو نه جوړه شوي وي ، نه دا چې له کوم چينجن او کاواکه لرګي نه چې دلږ دروند والي او معمولي غوندې فشار زور هم ونلري.

داهغه خبره ده چې حضرت محمد صلى الله عليه وسلم په دې حديث شريف کې بيان کړيده چې (خياركم فى الجاهلية خياركم فى الاسلام) يعنې له تاسو نه چې کوم خلک په جاهليت کې ښه او غوره ؤ هماغه په اسلام کې هم ښه دي يعنې داچې کومو خلکو د جاهليت په زمانه کې دقابليت کوم جوهردرلود هماغه داسلام په زمانه کې هم د کاروړ خلک وختل توپير يې يوازې همدومره دی چې دهغوی استعدادونه او قابليتونه لومړی په غلطو لارو او دناوړو مقاصدو لپاره پکار لويدل اسلام چې راغي نو هغه دوی دغوره مقاصدو لپاره په سمه لار وګومارل خو په هر صورت بې کاره سړی نه دجاهليت لپاره د کار وړؤ او نه داسلام لپاره دکار وړ ګڼلی شي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم ته چې په عربو کوم ستربری وربه برخه شو چې اغيزې يې په ډيره لږه موده کې د سند له سمندر نه نيولې

ان داتلانتېک تر ساحل پوري ورسېدلې نو دهغې يوه وجه خو داده چې هغه مبارک ته په عربو کې بهترين انساني مواد په لاس ورغلل چې په هغوی کې د شخصيت او کردار له مخې بې ساری ځواک موجودؤکه خدای ناخواسته هغه سره بې همته ، ضعيف الاراده او دداسې نورو خلکو ډله ملګرې شوې وای نو آيا بيا به هم هماغه نتيجه ترينه راوتلې وی ؟ نه هېڅکله

# اسلامي اخلاق

اوس ستاسو پاملرنه داخلاقو دو ېمې څانګې ته رااړوم چې زه يې د اسلامي اخلاقو په نوم يادوم دغه اخلاق هم دانسان له بنيادي اخلاقو نه پرته کوم جلا شی نه دی بلکې دهماغه اخلاقو دتصحيح او تکميل لپاره دي داسلام لومړی کار دادی چې هغه بنيادي انساني اخلاقو ته يوسم او صحيح محور تاکي چې په دې توګه له دغه محور سره دارتباط او پيوستون نه وروسته له هغو نه په يوه مخيزه توګه د خير او ښېګڼې منبع جوړيږي دغه اخلاق په ابتدا يې صورت کې مجرد ځواک دی چې دخير منبع هم کيدی شي او د شر هم لکه څنګه چې د توري حال دی هغه په هر صورت کې غوڅول کولی شي که دغله او داړه مار په لاس کې وي نو د ظلم او تيري آله ده او که دفي سبيل الله مجاهد په لاس کې وي نو دخير وسيله ده .

په همدې توګه د دغو اخلاقو شتون هم په کوم شخص يا کومه ډله کې په خپل ذات کې خير او ښېګڼه نه ده بلکې دخير منبع ګرځيدل يې په دې پورې تړلې دي چې په سمه لار کې په کارو لويږي او دغه خدمت چې په سمه لار يې په کار وګوماري يوازې اسلام سرته رسوي .

داسلام د توحيدي دعوت لازمي غوښتنه داده چې د دنيا په ژوند کې

دانسان ټولو هڅو کړاؤنو او د هغه د منډو ترړو يو ازينی مقصد د الله تعالی د رضا حاصلول وي (والیک نسعی ونحفد) یعنې: ستا د رضا لپاره هلې ځلې کوم او ستا خد مت ته تيار يم) او د هغه دفکر او عمل بشپړه دايره په هغو حدودو کې محدوده شي چې الله تعالی ورته ټاکلې دی .( اياک نعبد ولک نصلی ونسجد) یعنې :خاص ستا لپاره بندګي کوم او خاص تاته لمونځ او سجده کوم )

ددغې اساسي اصلاح نتيجه داده چې هغه ټول بنيادي اخلاق چې اوس ماله تاسو سره ياد کړل په سمه لار پکار ولويږي او هغه توان چې د دغو اخلاقو د ښتون څخه راپيدا کيږي ددې پرځای چې هغه په هره ممکنه توګه دنفس، کورنۍ، ولس او دهیواد د سرلوړۍ لپاره يوازې په جايزو لارو صرف شي همدغه عمل دغه اخلاق ديو مجرد قوت له مرتبې نه رالوړوي او له هغو څخه ايجاباً يو خير او ښیګڼه او ددنيا لپاره يې په رحمت بدلوي .

بل ګام چې د اخلاقو په هکله يې اسلام پورته کوي هغه دادی چې هغه انساني بنيادي اخلاقو ته ځواک او استحکام وربخښي دمثال په توګه صبر ته نظر وکړئ له سترنه په ستر صبور انسان کې چې صبر يې د دنياوي اغراضو لپاره وي او د شرک يا ماده پرستۍ له فکري ريښو نه تغذيه شوی اوسي نوهغه د ثبات او قراريو ټاکلی حد لري چې له هغې نه خبره واوړي نو بيا وارخطا کيږي خو هغه صبرته چې د توحيد له ريښو نه ورته غذا وررسيږي او د دنيا لپاره نه بلکې د الله رب العلمين لپاره وي نو هغه د زغم ، تحمل او ميړانې يو داسې ناپايه خزانه وي چې که د دنيا ټول ممکن مشکلات سره يوځای هم شي نو هغه نشي لو ټولی .

نو څرګنده شوه چې دنامسلمان سړي صبر ډير محدود نوعيت لري دهغه حالت داسې وي چې کله خو د ګوليو باران ته په نهايت استقلال او ثبات ولاړ وي خو څنګه چې د شهواني جذباتود تسکين فرصت په لاس ورشي نو بيا يې نفس له کنتروله وځي خو اسلام صبر دانسان د ژوند په ټول وجود کې خپروي او له هغه نه يوازې ديو څو مخصوصو خطراتو مصايبو او ربړونو اومشکلاتو په مقابله کې نه بلکې د هر هغه خوف او وېرې انديښنې او هر هغه خواهش په مقابله کې دټينګار او مقاومت يوه بې ساري هڅه وربخښي په حقيقت کې اسلام د مومن له ټول ژوند نه يو صابرانه ژوند جوړوي او بنيادي اصول يې دادي چې ټول عمر به د صحيح کړندو د «طرزالعمل» پراساس ژوند کوي که څه هم په دې لار کې زيات خطرونه ، زيانونه او ستونزې وي او د دنيا په ژوند کې يې کومه ګټوره نتيجه څرګنده نشي . هيڅکله هم د فکر او عمل بدوالي مه غوره کوئ که څه هم د ګټورو اميدونو سمسور بڼ مو په مخکې وي دآخرت د قطعي ننا يجو په تمه د دنيا په ټول ژوند کې له بدو چاروايسار يدل او د خير په لاره په پوره استقامت او ثبات تلل اسلامي صبر دی دغه صبر لازماً په هغو شکلونو هم ظهور کوي چې په ډيره محدوده پيمانه د کفارو په ژوند کې هم ښکاري دهمدغه مثال له مخې تاسو د نورو بنيادي اخلاقو قياس هم کولی شئ دکفارو په ژوند کې د صحيح فکري بنياد دنشتوالي له امله هغه ضعيف او محدود وي اواسلام دغو ټولو ته د يو صحيح بنسټ او بنياد د اېښودلو له امله استحکام او پراختيا هم ور بخښي .

داسلام دريم کار دادی چې دبنيادي اخلاقو په لومړي پوړ «منزل» باندې د فاضله اخلاقو يو بل بې حده پرتمين او شانداره منزل

و دانوي چې دهغې پر اساس انسان د خپل شرف تر ټولو لوړې څوکې ته رسيږي هغه د نفس له خود غرض نفسانيت ، ظلم ، بې حيايې ، بربنډتوب او بې قيدۍ نه پاکوي په هغه کې له الله نه ويره ، تقوی ، پرهيزګاري اوحق پرستي پيداکوي او په هغه کې داخلاقي مسؤليتونو شعور او احساس راپورته کوي . هغه له ضبط نفس سره روزي له هغه نه دټولو مخلوقاتو لپاره کريم سخي رحيم همدرد امين بې غرضه ، خير خواه ، بې الايشه منصف او په هر ډول حالاتو کې يو صادق او ريښتوني انسان جوړوي او په هغه کې ديوه داسې لوړسيرت روزنه کوي چې تل ترينه دخير او ښيګڼې تمه وي او دبدو ترينه هيڅ انديښنه نــــــه وي .

اسلام يوازې په دې باندې اکتفا نه کوي چې له يو سړي نه نيک انسان جوړ کړي بلکې درسول الله صلى الله عليه وسلم دحديث پراساس له هغه نه «مفتاح الخير مغلاق الشر» يعني : دخيرد دروازې پرانېستونکی اود شر د دروازې بندونکی جوړوي » هغه ايجاباً د غه دنده هغه ته ورسپاري چې په دنيا کې خير او ښيګڼه خپره کړي او د بدۍ مخه دې ونيسي .

په دغه نيک خوی ، سيرت او اخلاقو کې فطرتاً هغه حسن او ښکلا او هغه زړه راښکون او د تسخير هغه بې ساری ځواک دی چې که کوم منظم جماعت او ټولګی ددغه سيرت حامل وي او عملاً د خپل دغه مقصد لپاره کار هم وکړي چې اسلام هغه ته سپارلی دی نو د هغوی له جهانګيرۍ سره مقابله کول د دنيا د يوه ځواک له وسې نه هم پوره نه ده .

## دقیادت په هکله دالله (ج) طریقه.

اوس به زه په یو څو الفاظو کې تاسو ته د الله (ج) هغه سنت بیان کړم چې دامامت په برخه کې دخلقت له پیله جاري دی او تر څو چې بني نوع انسان د خپل موجوده فطرت پراساس ژوندی وي نو تر هغه وخته پورې به په منظمه توګه جاري وي او هغه دادی :

که په نړۍ کې یوه داسې منظمه انساني ډله موجوده وي چې په بنیادي انساني اخلاقو سمباله اوسي او د دې ترڅنګ مادي اسباب او وسایل هم استعمال کړي نو ددنیا امامت او قیادت دالله (ج) له خوا ا دداسې خلکو په لاس ورکول کیږي دغه خلک که له اسلامي اخلاقو څینې عاري هم وي خو دبنیادي انساني اخلاقو او مادي اسبابو او وسیلو له مخې دنورو په پرتله پر مختللې دي ځکه چې الله (ج) په هر حال کې د دنیا انتظام غواړي او انتظام هم هغې ډلې ته سپارل کیږي چې دوخت دموجوده ډلو په پرتله زیاته وړتیا او اهلیت ولري

خو که چیرې یوه داسې منظمه ډله موجوده وي چې د اسلامي اخلاقو او بنیادي انساني اخلاقو دواړو له مخې په نورې انساني نړۍ باندې فضیلت او دمادې اسبابو او وسایلو په استعمال کې هم صرفه ونه کړي نو داپه هیڅ صورت ممکن نده چې د دوی په مقابله کې دې کومه بله ډله ددنیا امامت او قیادت ترلاسه کړی شي دغه ډول کار د فطرت خلاف دی اود الله (ج) دهغې سـ نت خلاف هم دی چې هغه دانسانانو د معاملو په برخه کې ټاکلی دی دهغو وعدو او ژمنو خلاف هم دی چې الله (ج) په خپل کتاب کې دصالحو مؤمنانو سره کړي دي ځرنګه چې الله (ج) هیڅکله هم فساد او وراني نه خوښوي نو ځکه خو

داکار هم له امکان نه لرې دی چې دهغه په دنیا کې دې یوداسې صالح ټولګی موجود وي چې د نړۍ انتظام په سمه توګه د هغه د خوښې او رضا مطابق سرته رسولی شي او بیا دې هم هغه د نړۍ د نظام د سنبالولو چارې دمفسدانو په لاس کې پریږدي.

خو دامو باید په یاد وي چې ددغو وعدو نتایج هغه وخت تحقق مومي چې په اسلامي اخلاقو متصف صالح ټولګی (جماعت) موجودوي یو صالح وګړي اوياپه متفرق ډول دېروصالحو وګړوته دخلافت نظام نه سپارې که څه هم هغه خلک په خپل خپل ځای کې ستر اولیاء الله خو لاڅه چې پیغمبران هم وي الله (ج) چې داستخلاف (خلیفه جوړولو) په برخه کې څومره ژمنې کړیدې هغه له خورو ورو اومتفرقو وګړو سره نه دي بلکې دیوې داسې ډلې او جماعت سره یې کړي دې چې په نړۍ کې عملاً خپل ځای د بهترامت په توګه ثابت کړي همدارنګه دامو هم باید په ذهن کې موجود وي چې یوازې د داسې یوې ډلې په مینځته راتلو باندې دامامت په نظام کې داسې تغیر نه رامینځته کیږي چې له یوې خوا داډله مینځته راشي او له بلې خوا ناڅاپه له آسمان څخه یو څوملایکې راښکته شي او د نړۍ فاسقان او فاجران دقدرت له ګدۍ څخه راوغورځوي او پر ځای یې هغوی پر مسند کښینوي ددې پر ځای باید دغه جماعت خپله د کفر اوفسق دځواکو نو سره د ژوند په هر ډګر او هر هر قدم کې جهاد او مبارزه او دحق د قیام په لاره کې باید هر ډول سرښندنې وکړي او همدارنګه دحق له قیام سره باید دخپلې مینې اهلیت او وړتیا ثبوت ورکړي

ډایو داسې شرط دی چې انبیاء هم ترینه مستثنی نه دي ګڼل شوي نورڅوک به څنګه ترینه دمستثنی کیدو هیله وکړي.

# دبنیادي اخلاقو او اسلامي اخلاقو دځواک توپیر

دمادي ځواک او قدرت او اخلاقي قوت د تناسب په برخه کې چې دقران او تاریخ له ژورې مطالعې څخه ما دالهي کړنلارې په هکله څه درک کړي دي هغه دادي چې په کوم ځای کې چې داخلاقي قوت ټول انحصار یوازې په بنیادي انساني اخلاقو باندې وي هلته مادي وسایل ډیر زیات اهمیت لري نو هغوی په مادي قوت په نړۍ کې غلبه موندلی شي او دویمه ډله دلوی اخلاقي قوت له لرلو سره هم محضې دمادي وسیلو د کموالي له امله د کمزورتیا سره مخامخ کیږي خو په کوم ځای کې چې دانساني اخلاقود قوت سره د اسلامي اخلاقو ځواک هم شامل وي هلته دمادي وسایلو له انتهایي کموالي سره هم په پای کې اخلاقي قوت پر نورو ټولو قوتونو باندې بری مومي.

دغه نسبت به موږ د یومثال په ترځ کې داسې څرګند کړو چې که له بنیادي اخلاقو سره سل درجې مادي قوت ته ضرورت وي نو داسلامي او بنیادي اخلاقو له مجموعي قوت سره به یوازې پنځه ویشت درجې مادي قوت کافي وي دپنځه اویا فیصده پاتې قوت کمی یوازې داسلامي اخلاقو زور پوره کوي.

دحضرت محمد (ص) دعصر تجربه خودارابنیې چې که اسلامي اخلاق په هغه کچه او پیمانه وي چې دهغه مبارک او اصحابو وونو یوازې په پنځه فیصده مادي قوت باندې هم دغه کار سرته رسیږي همدغه حقیقت د دی آیت مصداق دی (إِنْ یَکُنْ مِنْکُمْ

عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ (الأنفال ۶۵ ايت برخه يعني که ستاسو له جملې نه شل کسه صبرناک وي نو هغوی به پر دوه سوو غالب شي) په ترڅ کې ورته اشاره شوې ده.

دغه وروستي خبره چې ماتا سوته عرض کړله هغه يوازې په عقيده او خوشباورۍ مه تحمل کوئ او مه داګومان کوئ چې زه له تاسو سره د کومې معجزې او کرامت په هکله خبرې کوم دايوه خبره نده بلکې دايو فطري حقيقت دی چې دهمدې اسبابو په نړۍ کې دعلت او معلول دقانون تر اغيزو لاندې مينځ ته راځي او هروخت مينځ ته راتلی شي خو پدې شرط چې علت يې موجود وي مخکې له دې چې پدغه بحث کې پرمخ ولاړ شو ماته داغوره ښکاري چې ديو څو خبرو په ترڅ کې دامسئله څرګنده کړم چې داسلامي اخلاقو په واسطه چې بنيادي انساني اخلاق په خپله په کې شامل دي دمادي اسبابو دغه (۷۵) فيصده کمی په څه ډول پوره کيږي ددغې مسئلې د درک لپاره تاسو دخپل وخت او عصر نړيوال حالت ته ځير شئ همدااوس هم ستاسو په مخکې دهغه ستر فساد مثال موجود دی چې له نن څخه پنځه نيم کاله مخکې پيل شوی ؤ چې اوس د جرمني په ماتې پای ته رسيدلی او د جاپان ماتې هم نژدې ښکاري(۱)

ترکومه ځايه پورې چې دامسئله په بنيادي انساني اخلاقو پورې اړه لري تقريباً د فساد دواړه لوري سره برابر دي په ځينو اړخونو کې خو جرمني او جاپان د خپلو حريفانو په مقابل کې دزيات اخلاقي قوت ثبوت ورکړی دی او ترکومه چې دامسئله په مادي وسايلو ، طبيعي علومو او دهغې په سم استعمال پورې اړه لري نو په هغې کې دادواړه دښمنې ډلې سره برابرې دي، بلکې دجرمني فوقيت خو لږ تر لږه په دغه معامله کې له چاڅخه پټ نه دی مګر دلته يوازې يوشی دی چې په

هغې کې يوه ډله له بلې پرمختللې ده او هغه دمادي اسبابو فوقيت جغرافيايي موقعيت تاريخي حالاتو او عواملو هم هغوی ته د دوی په نسبت ته ښه شرايط او حالات برابر کړيدي ، چې له همدې امله سوبه د هغوی په برخه شوه نن د کوم داسې قام لپاره چې دوګړو شمير يې کم وي او مادي وسايل يې هم دومره زيات نه وي د دغې خبرې امکانات بالکل په سترګونه ليدل کيږي چې هغوی دې د کثير التعداد او کثير الوسايل قامونو په مقابله کې سر راپورته کړي که څه هم د بنيادي اخلاقو او طبيعي عواملو په استعمال کې له هغوی نه لږ پر مختللی هم وي داځکه چې د بنيادي اخلاقو او طبيعي علومو په مرسته راپورته شوي قام معامله به له دوو حالتونو خالي نه وي يابه هغوی قام پرست وي او دنيا به د ځان تابع کول غواړي يابه د ځينو نړيوالو اصولو او قوانينو دحامي او داعي په حيث راپورته کيږي او نور قامونه به هغه لورته را دعوتوي .

په لومړي صورت کې خو د دوی لپاره د کاميابۍ بله هيڅ لاره پرته له دې نه نشته چې دمادي قوت او وسايلو له مخې په نورو تفوق ولري ځکه هغه ټول ملتونه به چې د دوی د اقتدار دحرص دګوزار لاندې راځي نهايي غوسې او نفرت سره به د دوی په مقابل کې مزاحمت خلق کړي او د هغوی د مخنيوي په لار کې به د هيڅ ډول سرښندنې صرفه ونکړي . پاتې شوه دويمه لار چې په هغې کې بې له شبهې دا امکان موجوددی چې د ملتونو زړه اود ماغ به په خپله دهغوی په اصولي دعوت قانع شي او د مزاحمتونو او خنډونو په له مينځه وړلو کې به د ډير لږ قوت استعمال ته ضرورت پيښ شي خو دا مو بايد په ياد وي چې زړه يوازې په څو ظاهري زړه وړونکو اصولو نشي تسخير کيدلی بلکې دهغه دقانع کولو لپاره هغه حقيقي او

رېښتوني خير خواهي نيک نيتي، صادقانه رويه بې غرضي ، وسعت نظر ، فياضي ، همدردي ، شرافت او عدالت په کاردی چې د جنګ او سولې ، سوبې او ماتې ، دوستی او دښمنی او نورو حالاتو په سختو ازمېښتونو کې سوچه او سپيڅلی ثابت شي او داڅيز د غوره اخلاقو له هغې لوړې پوړۍ سره اړيکې لري چې دريځ او پوړۍ يې له بنيادي اخلاقو نه ډېره لوړه ده .

همدغه لامل دی چې دمجردو بنيادي اخلاقو او مادي ځواک او قوت په مرسته راپورته شوي خلک که په ښکاره توګه قام پرستان وي او که يې له پټې قام پرستۍ سره ديو څه نړيوالو اصولو د دعوت او حمايت په نامه د فريب جال غوړولی وي په پای کې د دوی ټول کوښښ او مبارزه يوازې شخصي ياطبقاتي او يا په ناسيو نالستي خود غرضيو ختميږي لکه څنګه چې يې تاسو نن دامريکا ، برتانيې او روسيې په بيروني سياست کې په ښکاره توګه ليدلی شئ .

د داسې غورځو پرځو په جريان کې دابالکل يوه فطري خبره ده چې هرملت به دبل ملت په مقابله کې ديو مضبوط ډبرين ديوال په توګه ودريږي ، خپل ټول اخلاقي او مادي ځواک به دهغوی د مزاحمت او له مينځه وړلو لپاره پکار واچوي ، هيڅکله به په خپلو حدودو او بريدونو کې هغوی ته دلاړې ورکولو لپاره چمتو نشي ترهغې چې مخالف زوروَر مادي قوت دهغوی دمقاومت ټول ځواک شنډ نه کړي .

ښه نو اوس تاسو لږ غونډې داتصور هم وکړئ چې په همدې ماحول کې يوه داسې ډله که څه هم هغه په اوله کې ديوه ملت څخه راپورته شوې وي ، خو دتام په حيث نه بلکې دحزب (جماعت) په حيث موجوده وي چې له شخصي ، طبقاتي او قامي خود غرضيو نه بلکل پاکه وي ، د هغوی دکوښښ او جدوجهد غرض له دې نه پرته بل هيڅ

شی نه وي چې هغوی د بني نوع انسان خير او فلاح د يوڅو اصولو په پيروي کېويني او د انساني ژوند د نظام مانۍ د هغو پربنسټ ودانوي ، کومه ټولنه چې هغوی د دې اصولو پربنسټ ودانوي په هغې کې دقامي ، وطني ، طبقاتي او نسلي امتيازاتو څرک بلکل نه لګيږي . ټول انسانان په هغې کې د برابرو حقوقو او مساوي حيثيت په لرلو سره برخه اخيستلی شي .

په هغې کې دلاربښوونې او قيادت منصب د هر هغه وګړي او يا دوګړو يوې ډلې ته په لاس ورتلی شي چې د دغو اصولو په پيروۍ کې ترټولو غوره وي پرته له دې نه چې دا په نظر کې ونيول شي چې د هغه نسل ، وطن ، قوميت او ملت به څه وي ، ان تر دې چې دا خبره هم په کې امکان لري چې که مغلوب ايمان راوړي او دا ثابته کړي چې له نورو نه صالح او اهل دی ، نو فاتح غالب به د خپلو سربښندنو او هلو ځلو ټولې ګټې د هغوی په پښو کې انبار کړي له هغه نه به امام جوړ کړي او خپله به يې تابع شي

هر کله چې دا ډله د خپل دعوت توغ او چتوي نو ځينې خلک چې د هغوی په مخکې مزاحمت او خنډونه پيښوي ، چې په دې توګه د دواړو ډلو تر منځ اخ وډب پيل کيږي ، خو دغه کشمکش او اخ وډب چې څومره زياتيږي په مقابله کې يې دا ډله د هماغومره زياتو غوره او شريفو اخلاقو د څرګندونې ثبوت ورکوي .

هغوی په خپل دغه کړندود (طرزالعمل) سره دا ثابتوي ، چې په رينښتونې توګه د خلق الله د ښيګڼې او خير له غوښتلو نه پرته بله موخه او هدف نه لري . د هغوی د ښمني د مخالفينو له نسل او يا قوميت سره نه بلکې د هغوی له ضلالت او بې لارۍ او ګمراهۍ سره ده چې که هغه يې پريښودله نو هغوی خپلو وينو ته تږي د ښمنان په خپلې سينې

پوره جوخت نيولی شي ، هغوی د ده مال ، دولت يا تجارت او صنعت ته د تمې سترګې نه دي نيولي ، بلکې دهغوی د اخلاقي او روحاني خير او فلاح پرمختګ يې مطلب دی چې ترلاسه شي ، نو دهغوی دولت او پانګه دې بيا په هغوی ورمبارک وي هغوی له سختو نه په سختو ازميښتونو کې هم له دروغو او مکروفريب څخه کار نه اخلي د چلونو او فريبونو ځواب هم په سمو تدبيرونو ورکوي . دانتقام او کسات په جوش کې هم ظلم او زياتی نه کوي دجګړې په سختو شيبو کې هم هغوی دخپلو هغو اصولو پيروي نه پريږدي چې د دعوت ورکولو لپاره يې راپورته شويدي په صداقت او ريښتونولۍ، وفاداری او نيکه معامله باندې په هرحال کې ټينګ ولاړ وي . بې لوثه او بې الايشه (بې غرضه) انصاف او عدالت کوي او دامانت او ديانت په هغه معيار باندې هر وخت پوره خيژي چې د دعوت په پيل کې يې نړيوالو ته دمعيار په حيث وړاندې کړی ؤ .دمخالفينو د زاني ، شرابي ، جوارګر ، سخت زړي بې رحمه پوځ سره چې د دغې ډلې د متقي او له خدايه ويريدونکي ، پاک عابداو ، نيک زړې او رحيم وګړي او مجاهدين دمقابلې په وخت کې مخامخ شي ، نو دهروګړي انسانيت او شرافت بيلابيل د هغوی په د رندګۍ او حيوانيت باندې غالب ښکاري هغوی ، چې د زخمي يا قيدي په توګه د دوی په لاس کيوزي نو دلته چې هرې خواته د نيکۍ ، شرافت او سپيڅلو اخلاقو په زړه پورې چاپيريالويني ، دهغوی په نجاست ناولي روحونه به په خپله سپيڅلي شي او که هلته بنديان شي نو د جهالت په هغه تياره ماحول کې به يې دانسانيت دجوهر ځلانوره هم زياته شي ، دوی چې په کومه سيمه بری ومومي نو مفتوحو مغلوبو خلکو ته به د انتقام او کسات پرځای دعفوې او بخښنې، دظلم او تيري پرځای درحم او انصاف ،

دشقاوت پرځاى د همدردۍ د تكبر او نخوت او غرور پرځاى دحلم او تواضع ، دسپكو سپورو او كنځلو پرځاى دخير لورته دعوت ، ددروغګويې او پروپاګند پر ځاى دحق اصولو د بلنې تجربه كيږي .

هغوى چې په داډول اخلاق ووينې نو اريان شي ، چې فاتح سپاهيان نه له هغوى ښځه ښځې غواړي ، نه دهغوى دمال او شتو په لټه كې دي ، نه دهغوى د صنعتي اسرارو دڅرګندولو په هڅه كې دي . نه د هغوى داقتصادي قوت د له مينځه وړلو په فكر كې دي او نه د هغوى قامي عزت او حيثيت ته صدمه رسوي ، له هغوى سره كه د څه شي په هكله كوم فكر وي نو هغه به داوي چې هغه هيواد چې اوس د هغوى تر لاس لاندې دى دهغه داوسيدونكو له جملې نه دكوم يوه عفت او عصمت ته زيان وانه وړي ، دچامال او دولت ته زيان ونه رسيږي څوک له خپلو روا حقوقو نه بې برخې نه شي د كوم ډول بد اخلاقۍ زړى په دوى كې وده ونكړي او تولنيز ظلم او ستم په كوم شكل هلته پاتې نه شي

ددې پرخلاف كله چې مخالفه ډله په كومه سيمه كې دفاتحينو په توګه ورننوزي نو په ټوله سيمه كې د دوى دظلم او زياتي او بې رحمېو له وجې دخلكو چيغې او سورې اسمان ته پورته شي . اوس يې تاسو خپله دخپل فكر په تله وتلې چې ددغه ډول جګړو او قوم پرستانه ناسيونالستي جګړو ترمينځ به څومره توپير موجود وي ، څرګنده خبره ده چې د داسې مقابلو په پاى كې به اخر لوړ انسانيت دلږو مادي وسايلو باوجود خپل مخالف آهن پوش حيوانيت ته ماتې وركړي . دغوره اخلاقو وسلې له توپ او توپک نه په ډيره لږې فاصله كې ننبه ويشتلى شي . دجګړې په جريان كې به يو دم دښمنان په دوستانو بدل شي . له جسمونو نه به لومړى زړونه مسخر شي ، لوى لوى ښارونه به

له جنګ او جګړو نه پرته فتح شي ، کله چې دغه وړوکی نیک او صالح ټولګی ډیرو لږو مادي وسایلو سره په کار پیل وکړي ، نو دوخت په تیږیدو سره به ورو ورو له مخالفې ډلې نه په خپله دوی ته جنرالان شاته پاته وګوري .

هغه څه چې ماتاسو ته عرض کړل هغه محضې قیاس او اټکل نه دی څکه که چیرې ستاسو په مخکې د نبی (ص) او خلفای راشدینو دمبارکې دورې تاریخي مثال موجود وي نو تاسو ته به څرګنده شي چې حقیقتاً هم له دې نه مخکې همدغه ډول شوي دي او نن هم همدغه څه کیدی شي خو په دې شرط چې ددغې تجربې همت په چا کې شتون ولري.

درنو لوستونکو:

هیله مند یم چې ددې وېناڅخه دا حقیقت تاسو درک کړی وي چې دقوت اصلي منبع اخلاقي قوت دی که په نړۍ کې داسې کومه منظمه ډله وي ، چې دبنیادي انساني اخلاقو تر څنګ داسلامي اخلاقو څواک او جوهر هم په کې وي او له مادي وسایلو نه هم دخپلو اهدافو دپرمختګ لپاره کار واخلي نو داخبره عقلاً محاله او فطرتاً ناممکنه ده چې د دوی په موجودیت کې دې بله ډله دنړۍ دامامت او قیادت پرمسند تکیه وکړي . له دې سره زما دا اُمید هم دی چې تاسو به په دې هم په ښه توګه پوه یاست چې دمسلمانانو دموجوده بیوزلۍ او زبون حالۍ اصلي لامل څه دی، خبره څرګنده ده هغه خلک چې نه له مادي وسایلو نه کار اخلي نه په بنیادي انساني اخلاقو سنبال وي او نه په ټولنیز لحاظ اسلامي اخلاقو په کې وده کړې وي هغوی هیڅکله هم دامامت او قیادت منصب نشي ترلاسه کولی داالله جل جلاله دمظبوطې او سپیڅلې تګلارې غوښتنه په داسې مواردو کې

داوي چې تر دوی هغه کافران غوره ګڼي چې له اسلامي اخلاقو نه خوبې برخې وي ، خو لږ تر لږه د بنيادي اخلاقو او مادي وسايلو په استعمال او کارونه کې خوتر دوی غوره او وړوې او خپل ځانونه د دوی په نسبت د دنيوی چارو په انتظام کې اهل او وړ ثابت کړي . که په دغه برخه کې تاسو څه شکايت کوئ ، نو بايد وېې نه کړئ او ددې شکايت او سرټکونې نتيجه بايد داوي چې .تاسو اوس دخپلې دغې خامۍ او کمزورۍ د ليرې کولو فکر وکړئ چې تاسو يې دامامت له منصب نه د مقتدي حيثيت ته راټيټ کړي ياست چې په نورو پسې شا شاته روان وئ . له دې نه وروسته ماته داضروري ښکاري چې زه په څرګندو او ساده الفاظو کې تاسو ته داسلامي اخلاقو بنيادونه وړاندې کړم څکه چې ماته داڅرګنده ده چې په دې برخه کې په عمومي توګه د مسلمانانو تصورات او افکار په بده توګه له يو ډول کړکيچ سره مخامخ شوې دي . دهمدغه ابهام او کړکيچ له امله ډير کم خلک په دې پوهيږي چې اسلامي اخلاق په واقعيت کې څه شی دي او په دې اړخ کې دانسان د روزنې او بشپړتيا لپاره په هغه کې دکومو شيانو د پرورش او ودې اړتيا ده او په کومه طريقه او ترتيب او تدريج بايد دغه عمل تر سره شي .

## داسلامي اخلاقو څلورپوړې

هغه څه چې موږ داسلامي اخلاقو په نامه يادوو ، هغه په اصل کې دقرآن او احاديثو له مخې له څلورو پوړيو (مرتبو) څخه عبارت دي

۱- ايمان .
۲- اسلام
۳- تقوی
۴- احسان

دغه څلور واړه مراتب په پرله پسې توګه په داسې فطري ترتيب واقع شوي دي چې دهرې وروستۍ پوړۍ (مرتبه ) دمخکنۍ پوړۍ (مرتبې ) څخه پيداکيږي . او لزوماً په همدغه بنسټ اتکاء لري . تر هغې چې لومړی پوړ (منزل) پوخ او محکم نشي د دويم پوړ د ودانولو تصور هم نشي کيدی .

په دغه توله ودانۍ کې ايمان د بنسټ حيثيت لري ، پردغه بنسټ باندې د اسلام ودانۍ جوړيږي . بيا پرهغې برسيره د تقوی او پرتولو برسيره د احسان ودانۍ جوړښت مومي که ايمان نه وي نو داسلام، تقوی او احسان تصور هم نه شي کيدی او که ايمان کمزوری وي نو پرهغه باندې دبل منزل او پوړ د بار څواک نه شي اچولی او که داسې کوم بل پوړ (منزل) پرې ودان کړي نو هغه به سست او متزلزل وي ، که ايمان په هر څومره حدودو کې محدودوي نو اسلام ، تقوی او احسان به هم په هماغو حدودو کې محدودپاتې شي، نو تر هغه پورې چې دايمان بنسټ په بشپړه توګه سم ، پوخ او پراخه نه وي ، هيڅ يو عاقل انسان چې د دين په برخه کې څه ادراک او فهم ولري هغه د اسلام ،

تقوی یا احسان د ودانۍ او تعمیر خیال او تصور هم نشي کولی په دې توګه له تقوی نه مخکې د اسلام او له احسان مخکې دتقوی تصحیح، پوخوالی او پراختیا ضروري ده ، سره له دې هم موږ داوینو چې خلک دغه فطري او اُصولي ترتیب ته په غړنده نظر ګوري او د ایمان او اسلام له بشپړ تیانه پرته د تقوی او احسان خبرې پیل کوي تردې لا زیاته دتاسف وړ خبره داده چې د زیاتو خلکو په اذهانو کې دایمان او اسلام په برخه کې ډیر محدود تصور موجود دی له همدې امله هغوی دافکر کوي چې مازې دظاهري وضعې ناستې ، ولاړې ، خوراک او څښاک دیو څو نورو ظاهري شیانو د بدلولو او د یو ټاکلي نقش پر اساس دهغوی دعیار ولو له مخې تقوی خپل بشپړ تیاوې پړاوته رسیږي او بیا په عباداتو کې د نوافلو، اذکارو، او رادو ، وظایفو او د دغه ډول نورو اعمالو په غوره کولو داحسان لوړ مقام ترلاسه کیدی شي په داسې حال کې چې ډیر ځله د همدغې تقوی او احسان سره سره دخلکو په ژوند کې داسې څرګندې نښې نښانې ښکاري چې د هغوی له مخې له ورایه څرګندیږي چې تراوسه د دوی ایمان بالکل پوخ شوی نه دی ، ترهغې چې داغلطۍ او نیمګړتیاوې وي نو په هیڅ ډول داهیله نشي کیدی چې موږ د اسلامي ، اخلاقو د نصاب په بشپړولو کې بری ترلاسه کړو . نو له دې امله داخبره ډیره ضروري ده چې موږ باید دایمان ، اسلام ، تقوی او احسان دڅلو ر واړو مراتبو په برخه کې یو بشپړ تصور ترلاسه کړو او ددې ترڅنګ یې باید دفطري ترتیب په ډول هم په ښه توګه پوه شو .

# ايمان

په دې لړ کې ترټولو دمخه دايمان په برخه کې غږيږو چې داسلامي ژوند بنسټ دی . هرسړی په دې پوهيږي چې په توحيد او رسالت باندې د اقرار نوم ايمان دی که څوک په توحيداو رسالت اقرار وکړي نو د هغې له امله هغه قانوني شرط پوره کيږي چې د اسلام په دايره کې د داخليد و لپاره اينبودل شوی دی چې پدې توګه هغه د دې وړ او مستحق دی چې د مسلمانانو په څير معامله او سلوک ورسره وشي . خو ايا دغه ډول ساده د ژبې اقرار چې د يو قانوني ضرورت د پوره کولو لپاره بس دی ددې مقصد لپاره به هم کافي وي چې داسلامي ژوند ټوله درې پوړيزه ودانۍ يوازې پرهمدې بنسټ ودانه شي ؟ خلک همداسې فکر کوي څکه کله چې دغه اقراروشي ، هلته د عملي اسلام ، تقوی او احسان د وداني په ابادولو پيل کيږي چې زياتره يې د هوايي کلاګانو نه زيات ثابت او پايدار نه وي ، خو د يو رينبتيني اسلامي ژوند د تعمير او ودانولو لپاره له دې نه پرته بله چاره نشته چې ايمان له خپلو ټولو تفصيلاتو سره په بشپړه توګه وسيع او داستحکام او ثبات بنسټ يې ښه پوخ اومستحکم شي د ايمان په تفصيلاتو کې چې هره برخه پاتې شو له داسلامي ژوند هماغه برخه به د تعمير او ودانولو نه پاتې شي او دهغې د بنسټ په ژور والي کې چې هر چيرته کسر او نيمګړتيا پاتې شي ، نو د اسلامي ژوند ودانۍ به هم په هماغه ځای کې کمزورې او نا پايداره شي .د مثال په توګه ايمان بالله ته وګورئ چې د دين لومړی بنياد دی تاسو به ووينۍ چې د الله (ج) اقرار چې له خپلې ساده بڼې نه تير شي او تفصيلاتو ته ورسيږي نو

دخلکو په اذهانو کې د هغې بې شميره ډولونه جوړېږي چيرته خو هغه يوازې په همدې بريد باندې پای ته رسيږي چې بې له شکه الله (ج) موجود دی او د دنيا خالق دی او په خپل ذات کې يوازې او تنها دی او چيرې دهغې تصور وسعت يوازې همدومره وي چې الله زموږ معبود دی او موږ يې بايد پرستش وکړو کله چې دالله دصفاتو او دهغه د حقوقو او اختياراتو تصور لږ پراخه او پرمخه ولاړ شي نو بيا هم له دې نه زيات پرمخ نه ځي چې الله عالم الغيب ، سميع ، بصير ، سميع الدعوات ، قاضي الحاجات او د عبادتد ټولو جزوي شکلونو مستحق دی او په دې کې هيڅ څوک ورسره شريک نه دي او همدارنګه په ديني معاملوکې وروستنی سند دالله (ج) کتاب دی.

څرګنده خبره ده چې له دغو مختلفو تصوراتو نه په يوه ډول او يوه طرز ژوند نه جوړېږي بلکې هر تصور چې څومره محدود وي په عملي ژوند او اخلاقي ژوند کې به اسلامي رنګ هماغومره محدود وي ان تردې په هغو ځايونو کې چې د عامو ديني تصوراتو په اساس ايمان بالله خپل انتهايي وسعت ته ورسيږي ، هلته به هم اسلامي ژوند له دې نه زيات پرمخ ولاړ نه شي چې دالله (ج) له باغيانو سره وفاداري او له الله (ج) سره وفاداري يوځای سرته ورسوي ، يا دکفر او اسلام نظام سره يو ځای او يو مرکب ترينه جوړ کړی شي .

په همدې توګه د ايمان باالله دعمق او ژورتيا پيمانې هم مختلفې دي ، څوک دالله په وجود له اقرارکولو سره سره هم دالله په لار کې دخپل يو ډير معمولي څيز دقربانولو لپاره چمتو نه وي ، له ځينو شيانو نه الله غوره او ښه ګڼي ، ځينې شيان ورته له دې نه هم ګران وي . ځينې خلک پرالله باندې تر ځان او مال پورې قربانوي ، خو دخپل نفس رجحاناتو (غوښتنو) باد خپلو افکارو نظرياتو، نوم اود شهرت

قرباني. ته يې بيا ډېره نه لګيږي . کټ مټ دهمدغه تناسب له مخې داسلامي ژوند ثبات او پايداري اوبې ثباتي او نا پايداري هم تاکل کيږي او دانسان اسلامي اخلاق هم بالکل په همدغه ځای کې فريب خوري ، په کوم ځای کې چې تر هغو لاندې دايمان بنسټ کمزوری پاتې شوی دی ديوه بشپړ اسلامي ژوند ودانۍ که ودانيدلی شي نو يوازې دتوحيد د اقرارپر هغه بنسټ ودريدلی شي چې دانسان په بشپړ وګړيز او ټولنيز ژوند باندې محيط وي ، چې دهغه پر اساس انسان خپل ځان او خپل هر څه دالله (ج) ملکيت ګڼي ،اوهغه دخپل ځان او ټولې نړۍ ، معبود ، مطاع او د امراونهې دڅښتن په توګه مني ، هماغه دلارښوونې سرچينه ګڼي او له خپل بشپړ شعور سره پردې حقيقت مطمئن او ډاډه شي چې دالله (ج) له اطاعت نه انحراف او سرغړونه يادهغه له اطاعت نه بې نيازي يا دهغه په ذات ، صفاتو، حقوقو او اختياراتو کې دبل چاشريکول چې په هرا اړخ او هر رنګ کې وي له يوې مخې څرګند ضلالت اوګمراهي ده . په دې ودانۍ کې استحکام او پوخوالی يوازې هغه وخت پيدا کيږي چې انسان له خپلې بشپړې ارادې سره داپريکړه وکړي چې دی او د ده هرڅه د الله عزوجل او دالله (ج) لپاره دي . دخوښونې او نه خوښونې شخصي معيارونه ختم کړي او دالله (ج) دخوښونې او نه خوښونې د معيارونو تابع يې وګرزوي دخپلې خپل سرۍ ديوالونه ونړوي او دخپلو نظرياتو افکارو ، خواهشاتو ، جذباتو او د فکر کولو دود دهغه علم پر اساس عيار کړي چې الله (ج) په خپل کتاب کې راليږلې دي او په خپلو ټولو هغو وفاداريو دبطلان کرښه راوکاږي چې د الله (ج) د اصولو تابع نه وي او يا دهغو په مقابل لوري کې ولاړې وي او يادريدلی شي . په خپل زړه کې تر ټولو لوړ ځای د الله (ج) مينې او محبت ته ورکړي او دخپل زړه

لـه کوره هرهغه بت بهرته راوباسي او لرې يې وغورزوي چې دالله (ج) په مقابله کې د زيات ګرانښت او مينې غوښتنه کوي . خپله مينه او کرکه ، دوستي او دښمني ، تمايل اونفرت ، سوله او جګړه لنډه داچې داهر څه په داسې توګه د الله (ج) په رضاء کې را ونغاړي چې په پای کې دهغه نفس لـه هغه څخه هماغه څه وغواړي چې الله (ج) يې غواړي داد ايمان بالله ريښتينې او حقيقي پوړۍ ده .

اوس تاسو خپله پوهيدلی شئ چې پـه کومو ځايونو کې چې ايمان دخپل دغه حيثيت ، وسعت او پراختيا ، هر اړخيز، پوخوالي او استحکام ، لـه مخې نيمګړی وي ، نو هلته دتقوی او احسان د ودانيو امکان څنګه پيداکيدی شي ، چې بنسټ کوږاو نيمګړی وي نو بيا د بل پوړ د ودانو لو تمه نشي کيدلی.

نـو اوس تاسو خپله فکر وکړئ چې دغه نيمګړتيا او کسرد ږيرو په اوږدولو ، دکاليو پـه تراش او خراش يا دتسبيح په اړولو او تهجدو پـه کولو پوره کيدی شي ؟ پرهمدې دايمان نوري شعبې هم قياس کړئ . پرنبوت باندې ايمان تر هغه وخته نشي بشپړيدلی ، تر څو چې دانسان نفس دژوند په ټولو معاملو کې نبي کريم صلی الله عليه وسلم دخپل لارښود په توګه ونه مني او هغه څه چې د هغه د لارښوونو خلاف دي او يا له هغه نه پرته چې نورې څه لارښوونې وي هغه ردنه کړئ

دالله (ج) پـه کتاب قرآن باندې ايمان تر هغه وخته پورې ناقص او نيمګړی دی چې په زړه کې دکتاب الله لـه بيان شويو اصولو نه پرته دنورو اصولو اوقوانينو پرتسلط او حاکميت باندې قانع او سې پـه اخرت باندې هم ايمان نشي تکميل کيدی ، تر هغه چې نفس په بشپړه توګه آخرت پر دنيا غوره ونه ګڼي او د اُخروي معيارونو او ارزښتونو په وړاندې دنياوي ارزښتونو تر پښنو لاندې نه کړي او د آخرت

په ورځ د خپلې عملنامې په هكله دخواب وركولو خيال د هغه د ژوند دهرې لارې دمنزل په هرګام كې دهغه په زړه كې ونه څوخيږي كه دغه بنياد ونه چيرته ودان نكړى شي نو هلته به داسلامي ژوند پرتمينه او عاليشانه ودانۍ پر كوم بنسټ ودانه شي ؟ كله چې خلكو ددغو بنسټونو له پراختيا ، بشپړتيا او پوخوالي نه پرته داسلامي اخلاقو د ودانۍ ودانول ممكن وګڼل نو خبره تردې ځايه ورسيدله چې دكتاب الله د مخالفو اصولو پر اساس فيصله كونكي قاضي ، دغير شرعي قوانينو پراساس د عوى كونكي وكيل ، دكفر دنظام پر اساس دژوند دچارو سمبالونكي كار ګر ، دتمدن اوحكومت دكافرانه اصولو پر اساس دژوندانه دتشكيل او تاسيس لپاره مبارزه كونكي مشر لنډه داچې ټولو ته د تقوى او احسان د لوړو مرتبو دروازې پرانستل شوې په دې شرط چې هغوى د خپل ژوند ظاهري افعا ل ا وكردار د يو ځانګړي نقش پراساس عيار كړي او د يو څه نوافلو او اذكارو عادت هم په ځان كې پيداكړي

## اسلام

هركله چې دايمان دغه بنيادونه چې همدااوس مې تاسو ته بيان كړل بشپړ او دخلكو داذهانو په ژورتل كې ځاى ونيسي ، نو بيا پرهغو باندې داسلام ، منزل (پوړ) پيل كيږي اسلام په اصل كې د ايمان دعملي ظهور دويم نوم دى دايمان او اسلام اړيكې له يو بل سره داسې دى لكه دزړي (تخم ) او ونې ، په زړي كې چې هر څه او هر ډول وي ، هغه دونې په بڼه راڅرګنديږي تر دې چې دونې له ازمئيلو نه وروسته سړى په اساني سره داڅرګندولى شي چې په زړي كې څه ؤ او څه نه ؤ تاسوهيڅكله داتصورنه شئ كولى چې زړى دې نه وي اوونه

دي موجوده شي او نه دا ممکنه ده چې زمکه شاړه او وچه هم نه وي او زړی (تخم) هم په کې وي او بيا دې هم ونه په کې زرغونه نه شي

دا ايمان او اسلام معامله هم کټ مټ همدغه ډول ده هرچيرته چې ايمان موجود وي نو ضرور به دانسان په عملي ژوند په اخلاقو، سلوک دارېکو په استوار ولو او پريکولو دژوند دمنډو ترړو په لوري او طرف کې، په ټوکو او مزاح کې دهڅې او جدوجهد په لارو کې دوخت ځواک او استعداد په صرفولو کې لنډه داچې دژوند په هر اړخ او هر ټوک او جزءکې به ظهور کوي د ژوند له دغو اړخونو نه چې په هر اړخ او هر ټوک کې داسلام پرځای غير اسلام څرګند شي، نو باور وکړئ چې په هغه اړخ کې به ايمان يا موجود نه وي، او يا به بالکل بيکاره او بې ځانه وي او که عملي ژوند ټول له يوې مخې په غير اسلامي توګه تيريږي نو پدې پوه شئ چې زړه له ايمانه تش دی يا يې زمکه دومره بنوره او شاړه ده چې دايمان زړی (تخم) په کې پانې او ميوه نه شي نيولی په هر صورت ترکومه چې زه په قرآن کريم اونبوي حديثو پوهيدلی يم داهيڅ امکان نلري چې په زړه کې دې ايمان وي او په عمل کې دې اسلام نه وي

په دغه وخت کې يو ښاغلی راپورته شو او پوښتنه يې وکړه چې تاسو ايمان او عمل يوشی ګڼئ او که په دې دواړو کې څه توپير شته ؟ دهغه په ځواب کې مې وويل تاسو دلږ شيبې لپاره له خپل ذهن نه هغه بحثونه وباسئ چې په دغه برخه کې فقهاؤ او متکلمينو کړې دي او داهڅه وکړې چې دقرآنکريم له مخې په دغه مسئله پوه شئ له قرآن څخه په ښکاره توګه څرګنديږي چې اعتقادي ايمان او عملي اسلام له يوبل سره لازم او ملزوم دي الله (ج) په هر ځای کې ايمان او صالح عمل يوځای ذکر کوي او هغه ټولې وعدې بيانوي چې هغه له خپلو بندګانو

سره كړيدي ، هغه په خلكو پوري اړه لري چې عقيدتاً مومن او عملاً مسلمان وي بيا به تاسو ووينئ چې الله تعالى په كومو ځايونو كې په منافقينو نيوكه كړيده نو هلته يې د هغوى داعمالو خرابوالي د هغوى دايمان د نيمګړتيا ددليل په توګه راوړې او عملي اسلام يې دحقيقي ايمان علامه او نښه ګڼلې ده

پدې كې شک نشته چې په قانوني لحاظ چاته كافر ويل او له امت نه يې د اړيكو د شلولو معامله بالكل بيله ده او په دې كې دې بايد زيات احتياط وشي ، خو زه دلته دهغه ايمان او اسلام يادونه نه كوم چې پر بنسټ يې په نړۍ كې فقهي احكام مرتب كيږي ، بلكې دلته دهغه ايمان او اسلام ذكر د ى چې د الله (ج) په نزد معتبر دى او اخروي نتايج پرې مرتب كيږي . كه له قانوني نقطه نظره پرته د هغه له مخې ولېدل شي نو يقيناً همدابه درته څرګنده شي چې په هغه ځاى كې چې عملاً الله (ج) ته دځان سپارلو او تسلميدو په اساس كې كمى وي ، هلته چې دنفس خوښونه دالله (ج) له خوښي سره مخالفه ده ، هلته چې الله (ج) ته له وفادارۍ سره د نورو وفاداري هم ملګرې ده ، هلته چې د الله (ج) د دين دقيام او پاځون د هڅو او جدوجهد پر ځاى په نورو مشاغلو كې هڅه او انهماک ليدل كيږي ، هلته چې كوششونه ، او محنتونه دالله (ج) له لارې نه پرته په نورو لارو كې صرفيږي هلته به حتماً په ايمان كې نقص او نيمګړتيا موجوده وي .

څرګنده خبره ده چې په ناقص ايمان ودانۍ نه شي جوړيدلى كه څه هم دمحسنينو دځينو اعمالو د څرګندولو لپاره زياتې هڅې او هلې ځلې هم وكړي . ظاهر فريبه او غولؤنكي شكلونه كه دحقيقت له روح نه تش وي نو دهغې مثال كټ مټ دهغه شكلي انسان دجسد دى چې په بهترينه وضع او هيئت موجود وي خو روح په كې نه وي . كه

تاسو د دغه ښکلي جسد په ظاهري شان اوشوکت تیروزي او یو څه هیلې او توقعات د هغه په وجود پورې وتړئ نو د واقعاتو د نیا به په لومړۍ ازموینه کې دهغه بې ګټې توب او بې ارزښتي ثابته کړي او په تجربې سره به پخپله تاسو ته داڅرګنده شي چې یو بدرنګه خو ژوندی انسان دیو ښکلي خوبي روحه جسد نه په هرصورت کې زیات ګټور او د کار وړ دی ددې په ظاهرو فریبونو سره تاسو حتماً خپل نفس تیرا یستلی شئ خو په واقعیت باندې هیڅ اغیزه نه کوي او نه دالله په میزان کې څه وزن ترلاسه کولی شي نو له دې امله که چیرې تاسو د ظاهري نه بلکې د حقیقي تقوی او احسان د لاسته راوړلو په تکل کې یاست چې په نړۍ کې د دین د توغ د اوچتولو او په اخرت کې دخیر دتلې د پلې په درندولو کې ستره اغیزه لري ، نو زما د اخبره مو د ذهن پر لوحه په ښه توګه انځور کړئ چې دوه برسیرني پوړونه (تقوی اواحسان) هیڅکله هم نشي ودانیدلی تر څو دایمان اساس او دهغې داستحکام او بشپړتیا ثبوت د عملي اسلام یعنې دالله د بالفعل اطاعت او فرمانبرداری له مخې څرګند نه شي .

## تقوی

دتقوی په برخه کې دخبرو کولو نه مخکې پدې دپوهیدو هڅه وکړئ چې تقوی څه شی دی ؟ تقوی په حقیقت کې دکوم ځانګړي وضعیت او دمعاشرې د کوم خاص دودنوم نه دی بلکې تقوی په حقیقت کې دنفس د هغه کیفیت نوم دی چې له الله نه د ویرې او دمسؤلیت له احساس نه پیدا کیږي او د ژوند پرهراړخ کې څرګندیږي حقیقي تقوی هغه ده چې دانسان په زړه کې دالله خوف ا و بندګي او د الله عزوجل په مخکې دخپل مسؤلیت او ځواب ورکولو احساس وي

او د دې خبرې ژوندی پوهه او درک موجود وي چې د نیا دازمیښت ځای دی چې الله (ج) ماته دعمر په اندازه مهلت راکړی او رالیږلی یم او په اخرت کې زما د مستقبل فیصله بالکل په دې خبرې پورې تړلې چې زه په دغه راکړشوي وخت کې د ازمیښت په ډگر خپل ځواک او استعداد په څه ډول استعمالوم په هغو شتو او پانگه کې څه ډول تصرف کوم چې د الهي مشیت پر اساس ماته راکړل شوې ده او له هغو انسانانو سره څه معامله کوم چې دالهی قضا پر اساس زما ژوند دمختلفو حیثیتونو له مخې له هغوی سره متعلق شوی دی.

دغه احساس او شعور چې په هر چا کې راپیدا شي دهغه ضمیر راویښیږي او دیني حس یې فعالیږي هغه ته هر هغه شی ناوړه ښکاري چې دالله د خوښې پر خلاف وي هغه دخپل نفس مراقبت او څارنه کوي چې څه ډول رحجانات او میلانات په کې وده کوي هغه د خپل ژوند محاسبه په خپله کوي چې زه په کومو کارونو کې خپل وخت او خپل ځواک مصرفوم . هغه له صریحو ممنوعاتو نه لاڅه چې حتی په مشتبه امورو کې هم له مبتلا کیدونه ویریږي دمسؤلیت احساس هغه دې ته اړباسي چې دالله (ج) ټول اوامر په بشپړې فرمانبرداری سره اداکړي .د الله (ج) نه دویرې احساس په هر هغه ځای کې دهغه په قدمونو کې لړزیدا پیدا کوي چې له حدود الله نه په کې دتجاوز اندیښنه موجوده وي . دحقوق الله او حقوق العباد دحدودو ساتل یې په خپله عادت کیږي او له دې اندیښنې نه هم د هغه ضمیر لړزیږي چې هسې نه کومه خبره ترینه دحق خلاف ونه شي .

دغه ډول کیفیت د انسان د ژوند په یوه مخصوصه دائره کې نه بلکې دانسان د تفکرپه طرز او دهغه دژوند په ټوله کارنامه کې راڅرگندیږي او له اغیزې نه یې داسې متوازن او یو رنگ خوی

اوسیرت پیدا کیږي چې لـه هر اړخه پـه کې یوډول سپیڅلتیا او پاکي لیدلـی شـي ، د دې پـرخلاف چیـرته چـې تقـوی یـوازې دهغـه څـه نـوم ایښـودل شـوی وي چـې انسـان دیـو څو مخصوصو اشکالو پابند وي او دیـو څو مخصوصو دودونو او طریقو پیروي غوره کړي او پـه مصنوعي تـوګه ځان پـه یـوه داسې قالب کې واچوي چې اندازه کیدی شي ، هلته بـه تاسـو ووینئ چې دتقوی هغه څو بڼې چې ورښودل شوې دي ، دهغې پابندي پـه ډیر غـور او دقـت سره کیږي ، خـو د دې تـرڅنګ د ژوند پـه نـورو اړخونـو کـې هغـه اخـلاق ، هغـه طـرزالعمل او هغـه طـرزفکـر هـم څرګندیږي چې تقوی خو لاپریږده دایمان له ډیرو ابتدایي غوښتنو سره هـم اړخ نه لګوي یعني دحضرت مسیح د تمثیلي ژبې له مخې ماشی ، چاڼیږی خو اوښ پـه ډیره بې تکلفي ترستوني تیریږي .

دحقیقي تقوی او مصنوعي تقوی داتوپیر داسې وګڼئ چې پـه یو سـړي کـې د طهـارت او پاکوالـي احسـاس ډیـر زیـات او د پاکـۍ او سپیڅلتیا ذوق لـري . دغـه ډول انسـان لـه ناولتـیا او ناپاکـۍ نـه فـې نفسـه کرکه کوي ، کـه پـه هره بڼه وي نـو طهـارت او سـپیڅلتیا غـوره کوي ، کـه څه هم د هغې مظاهر نه شي احاطه کیدی . ددې برخلاف یو بـل انسان دی چې پـه هغه کې د پاکوالي او طهارت احساس نشتـه ، خو لـه هغـه سره د ناولتیا او سپیڅلتیا یو لوی فهرست موجود وي چې لـه کـوم ځـای څخـه یـې رانقـل کـړی دی ، دغـه سـړی لـه هغـې ناولتـیا او ګندګـۍ نـه سختـه کرکه او اجتـناب کـوي چـې پـه فهرسـت کـې لـیکل شـوی دی . خـو نـور پـه داسـې بـې شمیره مکروه کارونو اخته وي چې لـه هغـې ناولتـیا او ګندګـۍ نـه څو چنده زیات ناولی ا و ناپاک وي چې ده تـرینه ځـان سـاتلی دی ، دا یـوازې لـه دې امله چې د ګندګۍ او ناولتـیا پـه فـهرست کې درج شوی نه دی .

دا توپیر چې ماتاسو ته عرض کړ ، محضې نظرې توپیرنه دی ،
ځکه تاسو یې په خپلو سترګو هم د هغو ښاغلو په ژوند کې لیدلی شئ
چې د تقوی انګازې یې ترډیرو لرې ځایونو خپرې شوې دي . له یو پلوه
دهغوی له خوا نه د شرعي جزئیاتو په برخه کې دومره جدي اهتمام
موجود دی چې که ډیره له یو خاص مقدار نه لږه هم کمه وي نو د فسق
فتوی پرې لګوي پایخې که پړکیونه لږې هم ښکته شي نو د جهنم
وعیدونه اورول کیږي د دوی د فقهې له فروعي احکامو نه اووښتل د
دوی په نظر لکه له دین نه چې وتل وي ، خو له بلې خوا د دین له
اصولو او کلیاتو نه د هغوی غفلت تر دې حده رسیدلی دی چې
دمسلمانانو د ټول ژوند دارومدار هغوی په رخصتونو او سیاسي
مصلحتونو بناء کړی دی .

د دین دقیام په خاطر د هلو ځلو او کوشش نه د تیښتې لپاره ،
هغوی بې شمیره لارې پرانستلي دي . د کفر ترغلبې لاندې د اسلامي
ژوند دنقشې په جوړولو کې دهغوی ټولې هڅې او کوششونه صرف
کیږي دهغوی همدغو غلطو لارښوونو مسلمانان په دې ډاډه کړي دي
چې په یو غیر اسلامي نظام کې داوسیدلو سره سره بلکې په هغې کې
د خدمت او چوپړ کولو باوجود هم دیوې محدودې دایرې په چوکاټ
کې د مذهبي ژوند په تیرولو سره د دین ټولې غوښتنې ترسره کېدلی
شي .

دې نه زیات هغوی نور څه موخه نه لري چې د هغې دلاسته راوړلو
لپاره هلې ځلې وکړي . او اصلي مطلب دوی ته وړاندې کړي او د دین
دقیام په لوري یې توجه راواړوئ نو یوازې دانه چې هغه دې خپله په
دې خبره غوږونه کاڼه کړي ، بلکې داسې کومه هیله پلمه او چل به
پرې نږدې چې هغه دې کار څخه د خپل ځان او نورو مسلمانانو د

ژغورلو لپاره استعمال نه کړي په دې کارونو هم د ده په تقوی کې هیڅ توپیر نه راځي او نه د مذهبي ذهنیت لرونکو له جملې نه کوم یو په دې خبره شکمن کیږي چې د ده په تقوی کې څه نیمگړتیا موجوده ده په همدې توگه د حقیقي او مصنوعي تقوی بې شمیره ډولونه راڅرگندیږي ، خو تاسو هغه وخت د امسئله احساسولی شئ چې دحقیقي تقوی اصل انځور او تصور ستاسو په ذهن کې په څرگنده توگه موجود وي .

له دې خبرو نه زما مطلب هېڅکله هم دانه دی چې دلباس او اجتما عي اړخو دظاهري اړخونو په برخه کې چې کوم اداب او احکام په احادیثو کې راغلي دي زه د هغو استخفاف وکړم یا هغه غیر ضروري وگڼم زه الله نه پناه غواړم که زما په زړه کې داسې خیال وي په حقیقت کې هغه څه چې زه غواړم ستاسو د ذهن پرلوحه یې انځور کړم هغه دادی چې اصل شی د تقوی حقیقت دی نه داشکلي شیان . په هغه چا کې چې د تقوی حقیقت راپیدا شي دهغه ټول ژوند به یو متوازن او هماهنگ اسلامي ژوند شي اسلام به دخپل ټول هراړخیزوالي او عمومیت سره دهغه په خیالاتو ، جذباتو ، او رجحاناتو ، دهغه دطبیعت په ذوق کې د هغه په مهال ویش کې ، د هغه داستعدادونو او ځواک په صرفولو کې د هغه دهڅو هلو ځلو په لارو کې دهغه په ژوند دود او معاشره کې دهغه په گټه او خرڅ کې بالاخره د دنیاوي ژوند په ټولو اړخونو کې په ورو ورو راڅرگندیږي .

ددې پرخلاف که مظاهر (ظاهري شکل) پر حقیقت باندې مقدم وگڼل شي او دهغوی پر تعمیل باندې بې ځایه زور واچول شي او دحقیقي تقوی ، تخم له شیندلو او اوبه خورنه پرته په مصنوعي توگه دیو څو ظاهري احکامو تعمیل وکړی شي ، نو نتایج به هماغه څه وي

چې مادرته مخکې یاد کړل . لومړی مسئله ډیره وروسته نتیجه ورکوي او پوره صبراو حوصله غواړي ، په تدریج سره وده او نمو کوي او له ډیرې مودې وروسته پاڼې او میوه نیسي ، لکه څنګه چې له زړي نه د ونې رازرغونیدل او بیا یې د پاڼو ، ګل او میوې په نیولو کې زیات وخت لګیږي ، له همدې امله سطحي مزاجه خلک له هغې نه پرې تښتي . د دې پرخلاف دویمه مسئله ډیره ژراوپه اساني سره لاسته راتلی شي لکه څنګه چې سړی په یو لرګي پاڼې او میوې او ګلان کلک وتړي دونې په څیر یو شکل جوړ کړي ، همدغه لامل دی . چې د تقوی د پیداکولو همدا ظاهري شکل هغه له یوې مصنوعي ونې نه هیڅکله هم نشي پوره کیدی .

## احسان

اوس به د احسان په برخه کې وغږیږو چې داسلام ترټولو ، لوړ منزل دی احسان په حقیقت کې دالله (ج) او د هغه درسول او د هغه د دین سره د هغو قلبي اړیکو دهغې ژورې مینې ، هغې ریښتوني وفاداری، فداکاری، او سربښندنې نوم دی چې مسلمان فنافی الاسلام کړي .دتقوی اساسي تصور له الله (ج) نه ویره ده چې انسان دهغه له نارضایتي نه ژغوري او داحسان اساسي تصور له الله (ج) سره هغه مینه ده چې انسان دالله درضا دحاصلولو لپاره هڅوي د دغو دواړو مسئلو توپیر به دیو مثال په ترڅ کې داسې څرګند کړودحکومت په مامورینو کې یوه هغه ډله وګړې دي چې ډیر وظیفه شناس دي او په زیات اخلاص سره د ټولو ظوابطو او قواعدو پابندي هم په بشپړه توګه تر سره کوي او هیڅ داسې کوم کارنه کوي چې دحکومت لپاره داعتراض او ګوته نیونې وړ وي .

دویمه ډله د هغو وفادارو او سربښندونکو وي چې د زړه له کومي د حکومت پلویان وي دوی، نه یوازې داچې ورسپارل شوې دندې په ښه توګه سرته رسوي بلکې د تل لپاره دافکر هم ورسره وي چې د سلطنت ګټې او مفادات په څه ډول ښه پرمختګ کولی شي ددغه تصور په لرلو سره هغه له وظیفې او مطالبې نه زیات کار کوي‌که دسلطنت لپاره دکوم زیان او صدمي ویره راپیداشي نو هغه دځان ، مال او اولادد ټولو قربانولو لپاره چمتو کیږي ، که په کوم ځای کې د قانون خلاف ورزي وي نو د هغه زړه ته پرې صدمه رسیږي کـه چېرته د بغاوت اثار وګوري نو هغه ورته ناکراره کیږي او پـه له مینځه وړلو کې یې د ځان په قربانولو هم صرفه نه کوي . داخو پرځای پریږده چې دی به قصداً هم دسلطنت ګټو ته زیان ورسوي هغه د هیواد ګټو ته دتاوان رسیدل هم نه شي تحمل کولی ددغې نیمګړتیا په له مینځه وړلو کې یوه دقیقه اهمال (بې پروایي) هم نه کوي . دزړه له کومي نه دهغه د اهیله وي چې په نړۍ کې یوازې دهمدې هیواد توغ په رپاوي او د زمکې پر مخ یوه لویشت ځای هم داسې پاتې نه شي چې هلته د ده د بیرغ ټوټه پورته نه شي .

لـه دغو دواړو ډلو نه لومړۍ ډله خلک د دغه حکومت متقیان دي او دویمه ډله یې محسنان ، سره له دې چې پرمختګ او ترقي متقیانو ته هم ورکول کیږي او په هر صورت کې د هغوی نوم د ښو مامورینو په جمله کې لیکل کیږي خو هغه افتخارات او سرلوړي چې د مخکنیو لپاره وي په هغې کې نور څوک نه شي شریک کیدلی .

د همدغه مثال له مخې داسلام متقیان او محسنین هم قیاس کړئ سره لـه دې چې متقیان هم د قدر وړاو د اعـتماد وړ خلک دي خو داسلام اصلي څواک د محسنینو ډله ده هغه اصلي کار چې اسلام

غواړي په دنيا کې يې سرته ورسوي هغه په هم دغې ډلې سره سرته رسيدلى شي .

داحسان په حقيقت باندې له پوهيدلو نه وروسته تاسو خپله په دې خبره فکر وکړئ هغه خلک چې په خپلو سترګو دالله دين دکفر په لاس مغلوب او ځپلى ويني ، حدودالله يې په مخکې يوازې تر پښو لاندې نه بلکې دمېنځه وړلاى شي دالله قانون په عملي توګه نه بلکې ديو فرمان او ترون په ترڅ منسوخ کړى شي ، دالله په ځمکه د الله دجنډې پرځاى دهغه څخه د باغيانو جنډه پورته کيږي دکفرد نظام دتسلط له امله نه يوازې داچې په اسانه په ټولنه کې اخلاقي او مدني فساد مينځ ته راځي بلکې په خپله اسلامي امت هم په ډير سرعت سره په اخلاقي او عملي بې لاريو اخته کيږي د دې ټولو ناوړه پيښو له ليدلو سره سره هم د دوى په زړه کې نه کومه ناکراري او خپګان راپيدا کيږي او نه يې ددغه حالت دبدلولو لپاره په زړه کې کوم احساس او جذبه راپاريږي بلکې ددې پرخلاف هغه خپل ځان او نور مسلمانان دغير اسلامي نظام پر غلبې اصولاً او عملاً قانع کوي نو دى به څنګه دمحسنينو په کتار کې وشميرل شي ؟

ددغه ستر جرم له کولو سره به يوازې داخبره دى کله داحسان لوړ او عالي مقام ته ورسولى شي چې دى د ماسپښين اشراق او تهجد نوافل کوي ذکر او شغل او مراقبي کوي دحديث او قرآن درس ورکوي دفقهي دجزئياتو پابندي او د کوچنيو سنتو په اتباع کې ډير سخت اهتمام کوي او د تزکيه نفس په چيله خانو کې د دينداري هغه تعليم چې په هغې کې دحديث ، فقهې ، او تصوف ، ټولې باريکۍ خو موجودې وي خو کوم شى چې په کې نشته هغه حقيقي ديندارى ده چې د غه ( سرداد نه داد دست دردست يزيد ) کيفيت پيدا کړي او د

(بازي اګرچه پانه سکا سرتو کهوسکا) اګر که لوبه يې ونه ګټله خو سريې پرې بايلود) وفاداري مقام ته يې ورسوي .تاسو به په دنياوي حکومتونو او قامونو کې هم د وفادارۍ او بې وفايې دومره څرګند توپيرضرور پيداکړئ چې که په هيواد کې بغاوت پيل شي يادهيواد کومه برخه د دښمن په لاس ورشي نو هغه خلک چې دباغيانو او يا دښمنانو تسلط قانوني وګڼي ، يادهغوی په تسلط (قبضې) خوښي څرګنده کړي او له هغوی سره مغلوبانه مصالحت (روغه) وکړي يا دهغوی په مشرۍ کې يو داسې حکومت جوړ کړي چې داقتدار او څواک اصلي واګې د هغوی د دښمن په لاس کې وي او يو څه ضمني حقوق او اختيارات دوی ته هم ورکړل شي ، نو هيڅ هيواد او قام به داسې خلک دخپلو وفادارو په توګه ونه مني ، که څه هم هغوی دقامي فيشن ډير کلک پابندوي او په جزيې معاملاتو کې هم د قامي قانون پيروي په کلکه سره کوي

نن ستاسو په مخکې ژوندي مثالونه موجود دي هغه هيواد ونه چې د جرمني له تسلط نه خلاص شوې دي هلته له هغو خلکو سره څه ډول معامله کيږي چې هغوی دجرمني د تسلط په وخت کې دتعاون او مصالحت لار غوره کړې وه له دغو ټولو حکومتونو او قامونو سره د وفادارۍ دمعلومو لو لپاره همدا يو معياردی او هغه داچې کوم سړی د دښمن دتسلط مزاحمت (مقاومت) ترکومې اندازې پورې کړی دی . د هغه د له مينځه وړلو لپاره يې څه کار کړی او د هغه اقتدار د بيرته راوستلو لپاره يې څه هلې ځلې کړې دي چې ورسره يې دوفادارۍ لوړه کړې وه او مدعي يې ؤ نو په داسې صورت کې معاذالله تاسو د الله (ج) په هکله داګومان کوئ چې هغه د خپلو وفادارانو تر مينځ دومره توپير هم نه شي کولی .لکه څومره چې د دنيا په دې کم عقلو

انسانانو کې موجود دی ایاتاسو داسې فکر کوئ چې هغه به یوازې د ډیرو په اوږدوالي دپړکیو او پیڅو د فاصلې په زیاتوالي د تسپو په اړولو د او رادو په ویلو ، وظایفو او نوافلو په کولو دمراقبې مشاغلې او داسې یو څو نورو شیانو په لیدلو به داګومان وکړئ چې تاسو د هغه ریښتونی وفادار او سرښندونکي یاست .

## دځینو شبهاتو ازاله (له مینځه وړل)

ګرانو دوستانو او ملګرو! زه به ستاسو د پوښتنو له ځوابونو وروسته خپلې وینا ته دپای ټکی ږدم دعامو خلکو په ذهنونو کې له ډیروخته راهیسې دناسمو افکارو له امله دجزیې او ظاهري مسایلو اهمیت ایښودل شوی په دې توګه چې د دې اصولو او کلیاتو او د دین دحقیقي او واقعي جوهر په لوري دپاملرنې سره سره دخلکو په افکارو کې دکوچنیو فرعي او جزیې مسایلو په لوري ډیره توجه کیږي او همدغه شیان د دین داصولو په توګه پیژني ددغه عام رنځ له اغیزو څخه زموږ ډیرملګري او همفکره خلک خوندي نه دي پاتې زه به د دې خبرې په پوهولو بشپړ زور اچوم . چې د دین حقیقت څه شی دی په هغه کې بنسټیز اهمیت کوم شي ته په برخه ده او هم په دې کې اولویات (چې ترمخه باید ورته پاملرنه وشي ) کوم دي او کومو شیانو ته ثانوي (وروستنی) حیثیت حاصل دی .

لیکن د دې ټولو هلو ځلو نه وروسته چې کله ګورم همدغه فکر او تصور په سترګو وینم هماغه دجزیې مسایلواو فروعاتو اهمیت دخلکو په ذهنونو مسلط دی له درې ورځو راپدیخوا له ما سره دسوالونو دپرچو ډیری پرته ده په دې ټولو کې همدغه غوښتنه شوې چې د جماعت دملګرو د ډیرو په اوږدولو دې اهتمام وشي او پایڅې

دې لـه پـړکیو پـورته اوسـي داسـې نـورې جزیـې او فروعـي مسـئلې دروا خلـه لـه دې نـه پـرته دځینو خلکو په دې نظراو فکر هم پوه شوم چې هغوی په جماعت اسلامي کې دغه شی ډیر لوی کمبوت بولي چې په روحانیت سره یې تعبیر وي خو واقعیت دادی چې هغوی پخپله په دې نـه پوهیـږي چـې روحـانیت څـه شـی دی ؟ پـردې اسـاس هغـوی پـه دې نظردي چې نصب العین او دکارلایحه دې دجماعت غوره کړی شي د نفس د تزکیـې او د روحانـي تـربیت لـپاره دې دتصوف خانقاګانـو تـه مـراجعه وشـي داټولـې خبـرې یـې مـوږ تـه څـرګندوي چـې زمـوږ دټولـو کوښښـونو سـره سـره تراوسـه پـورې پـه خلکـو کـې د دیـن فهـم او پـوهه رامینځته نه کړی شوه .

ستاسـو پـه وړانـدې مـې چـې اوس دایمـان ، اسـلام ، تقـوی اواحسـان کومه خیړنه وړاندې کړه په دې کې مې کـه چېرته کوم شی دقـران اوسـنتو لـه ښوونو څخه پـرته لـه خپل ځانه ویلي وي نو تاسو یې ماتـه راوښـایاست البـته کـه چیـرې تاسـو د امنـئ چـې دالله دکتاب او د پیغمبر (ص) دمبارکواحادیـثو پـه رڼا کې داخلور واړه شیان حق دي نو پخپله فکر وکړئ چې په کوم ځای کې د تقوی اواحسان ریښـې پا یښت ونـه مومـی هلتـه نـو آخـر کـوم شـان روحـانیت مونـدلـی شـي؟دشـریعت جزیـې او فرعـي مسـایل چـې تاسـو ددیـن پـه لومـړنیو غوښـتنو کـې شمیرلې دي دهغـو شـیانو حقیقـي مقـام بـه یـو ځـل بیـا پـه څرګندو ټکو ستاسـو پـه مـخ کـې کښـیږدم تـر څـو مـې خـپل مسـؤلیت سـرته رسـولی وي.لـه ټولـو نـه مخکـې پـه دې پوښـتنې ښـه غـور وکـړئ چـې الله تعالـی جلت عظمتـه نـړۍ والـو تـه خپل استازي د کوم هدف لپاره را لیږي؟ په نـړۍ کـې کـوم فسـادونه او خرابیاتیاوې وې چـې دهغـو د لـه مینځـه وړلـو لپاره یې خپل استازي راولیږل ؟

ایا پیغمبران ددې مقصد لپاره لیږل شوي ؤ چې خلک ډیرې اوږدې کړې ؟ او یا خلک خپل پرتوګونه له پړکیو لاندې ځوړند ، ونه ساتي او د خپلو استازو په وسیله یې دغه نیمګړتیاوې له مینځه وړلې . اویا یې دهغو سنتونو جاري کول غوښتل چې ستاسو ترمینځ زیات شهرت لري ؟ په دغو پوښتنو که څیرې پخپله لږ څه فکر وکړئ نو پخپله به وواياست چې دا نه بنسټیزې نیمګړتیاوې دي او نه دپیغمبرانو دبعثت اصل هدف ؤ اوس پوښتنه داده چې هغه کومې خرابتیاوې وې چې دهغو له مینځه وړل یې مقصد ؤ او هغه حقیقي او رینښتینې نیکۍ کومې وې چې د ټینګښت اړتیا یې محسوسیدله ؟ ددې خبرې ځواب له دې نه پرته تاسو څنګه ورکولی شي چې د واحد او لاشریک الله له بندګۍ او طاعت څخه انحراف اودله خپل ځانه جوړو شویو قوانینو پیروي او دالله جلت عظمته پرورواندې دځواب ورکولو عدم احساس هغه اصولي او بنیادي فسادونه ؤ چې د نړۍ والو په افکارو کې یې ځای نیولی وو دهغوی په وسیله اخلاق فاسد شوې غلطو اصولو او قوانینو دژوند په ډګر رواج موندلی .او پرځمکه کې فساد راولاړشوی ؤ بیا پیغمبران علیهم السلام ددې هدف په خاطر لیږل شوې ؤ چې په خلکو کې دالله په وړاندې دبندګۍ احساس ، اطاعت ، مینې او محبت او دهغه جلت عظمته پر وړاندې دځواب ورکولو جذبه پیدا کړي ، ښو خویونو ته وده ورکړي او د خلکو د ژوند نظام پر هغو بنسټونو ټینګ کړي چې له هغې څخه خیر او نیکي رابرسیره شي اود شراوفساد ټغر ور ټول شي . همدغه ایکې یو مقصد د ټولو پیغمبرانو د بعثت ؤ او په پای کې د همدې هدف لپاره محمد صلوات الله وسلامه علیه مبعوث کړی شو

اوس وګورئ چې د دې هدف د بشپړتیا په خاطر هغه له کوم ترتیب سره په تدریجي توګه کار وکړ هغه ترټولو د مخه خلکو ته د ایمان بلنه وړاندې کړه او هغه یې په پراخه بنسټونو پوخ او ټینګ وګرځاؤ بیا یې د ایمان له غوښتنو سره برابر په تدریجي توګه د خپل تعلیم او تربیت په وسیله د ایمان په غښتنانو کې عملي اطاعت او تابعداري یعنې (اسلام) او تقوی (اخلاقي سپیڅلتیا) او احسان (له الله عزوجل سره یې د مینې او وفادارۍ صفتونه) رامینځته کړل او بیا یې د هغو مخلصو مومنانو د منظمو هلو ځلو په وسیله د زاړه جاهلیت وراسته او فاسد نظام ته د پای ټکی کیښود او د هغه پر ځای یې د الهي اخلاقو او تمدني اصولو پر بنسټ د یو صالح نظام د بنسټ ډبره کیښوده په دې توګه چې کله د غه وګړي د خپل زړه دماغ ، نفس ، اخلاقو ، افکارو ، کړو وړو لنډه دا چې په هر حیثیت واقعي ، پرهیزګار او مخلص مسلمانان جوړ شوا ویه هغه کار کې ولګیدل چې د الله وفادارو سپاهیانو ته یې کول په کار ؤ بیا یې هغوی ته د خبرو اترو اداب ، جامه ، خوراک ، څښاک ، داوسیدو ، ناستې پاستې او په نور ښکاره چلند کې هغه مهذب اخلاق کوم چې له پرهیزګاره خلکو سره ښه ښکاري وروښودل. ګواکې لومړی یې ورڅخه خام سرپ جوړ کړل بیا یې پرې مهر ولګولو یعنې لومړی یې سپاهیان تیار کړل بیا یې ورته درویشي ورواغوستله . داد دې کار صحیح ترتیب دی چې د قران او حدیث له ژورې مطالعې نه صاف په سترګو ښکاري .

د سنتو اتباع د پیغمبر صلوة الله وسلامه علیه د هغې کړنلارې نوم دی چې پیغمبرصلی الله علیه وسلم د الله عزوجل د رضا دلاس ته راوړلو لپاره د الهي لارښوونو تر سیورې لاندې غوره کړی ؤ .

حقیقت دادی چې د ادسنتو پیروي نه بلکې مخالفت دی چې دحقیقي مؤمن ، مسلمان متقي او محسن جوړولو نه پرته دمتقیانو (پرهیزګارانو) په ظاهري قالب کې داچولو لپاره هلې ځلې وکړی شي او له هغوی ځخه د نیکو کارو خلکو څو نامتو او منل شوې عام افعال را نقل کړی شي دا داسې مثال لري لکه چې د سرپو او ژیړو په ټکړو چې د اشرفۍ (سپینوزرو) دروپیو مهر ولګول شي او په بازار کې د چلند لپاره وړاندې کړی شي د سپاهي توب ، وفاداری او سربښندنې پیداکولو نه پرته عسکرو ته درویشي اغوستل او ډګر ته یې راویستل یوه دوکه او فریب ګڼل کیږي ددې فریب او دوکې نتیجه ده چې په بازار کې نه ددې جعلي روپیو څه ارزښت لیدل کیږي او نه دغسې نمایشي عسکر دجګړې ډګر ګټلی شي . تاسو پوهیږي چې د الله عزوجل په وړاندې دڅه شي قدر او قیمت دی فرض کړئ یو سړی ریښتینی مومن ، وظیفه پیژندونکی او د ښو خویونو څښتن دالهي حدودو پابند او دالله جلت عظمته د وفاداری او سربښندنې حق اداء کوي خو د ظاهري فیشن په اعتبار نیمګړی او پریوتی اوسي دده حیثیت دادی چې دغه شخص ډیر ښه نوکر مګر لږ څه بې تمیزه شخصیت دی کیدی شي ددې کار له امله لوړ منصب ته ونه رسیږي مګر تاسو څه فکر کوئ چې دده د قصور او نیمګړتیا سره سره به ده ته دوفاداری عوض نه شي ورکولی ؟ او د ده څښتن به یې یوازې له دې امله په دوزخ کې غورزوي چې هغه ښه وضعیت او پوزیشن نه درلود ؟ فرض کړې دویم شخص ښه شرعي فیشن لري اود تهذیب په التزام کې په بشپړه توګه له احتیاط ځخه کار اخلي ، مګر د هغه په وفاداری اومسؤلیت پیژندنه کې کمبوت او په ایماني غیرت او احساس کې یې نیمګړتیا اوسي تاسو ووایاست چې له دومره نیمګړتیاؤ سره سره به

دظاهري پوزيشن په اعتبار الله عزوجل ته څومره اندازه قدر او ارزښت ولري ؟ دغه دومره ژوره او سپيڅلي قانوني مسئله نه ده چې د څيړنې لپاره به يې کتابونو ته اړتيا وليدل شي . يوازې د معمولي پوهې څښتن پرې پوهيږي چې په دې دواړو کې کوم يو ډير ارزښت لري او په حقيقت کې کوم شی د قدر وړ دی، اوس مهال دانګريزحکومت ستاسو په مخکې موجود دی داخلک دظاهري فيشن د ادابو ډير لحاظ ساتي تاسو په دې ښه پوهيږئ چې د دوی په وړاندې کوم شی ډير اهميت لري ؟ هغه پوځي منصبدار چې دانګريزي حکومت توغ (بيرغ) يې رپانده ساتلی او په دې لار کې يې د خپل زړه ، دماغ ، بدن او روح ټول ځواکونه لګولي دي د پريکړې پروخت له هيڅ رنګ سرښندنې نه مخ نه اړوي هغه د دوی له نظره که څومره بې کاره جامې واغوندي او د ظاهري فيشن او درويشي خيال ونه ساتي ، په خوراک ، څښاک کې دومره دقت ونه کړي اوله ګدا او ټخا سره هم نا اشنا واوسي خود دې ټولو نيمګړتياؤ سره سره به هغه د سر په سترګو ومني او په لوړو پوځي مرتبو به يې ونازوي خو دده پرعکس بل پوځي منصبدار د پوځي ښکاره پوزيشن معياري مجسمه ده خو په سرښندنه او وفادارۍ کې نيمګړی او دکار په مهال په خپلو ګټو نظر ساتي هغه داعزازي رتبو خبره خو پرځای پريږده په ډيرو سختو پوځي سزاګانو به يې محکوم کړي

دا خو د نړۍ دکم عقلو دپوهې او چلند اندازه ده ستاسو دکايناتو دڅښتن په هکله څه ګومان دی ايا هغه به د سرو زرو او زيړو ترمنځ بيلتون ونه کړي يوازې داشرفۍ مهر او ټاپه به د ارزښت وړ بولي .

زما ددغو خبرو څخه دا مفهوم وانخلئ چې ګويا زه ظاهري محاسن بې ارزښته بولم او يا په فرعي او جزيې مسايلو عمل غير

ضروري ګڼم زه بشپړ باور لرم چې مؤمن مسلمان بنده ته دهر حکم عملي کول ضروري دي چې الله او رسول يې لاربنوونه کړې او سي زه منم چې دين دانسان ظاهر او باطن دواړه جوړوي ليکن کوم شی چې زه يې ستاسو په ذهن کې کښينول غواړم هغه دادی چې باطن ته دې دلومړي توب مرتبه ورکړی شي مخکې دې په باطن کې دحقيقت جوهر رامېنځته او بيا ظاهري بڼه د حقيقت په برابر جوړښت وموميی تاسو بايد تر هرڅه زيات هغو اوصافو ته خپله پاملرنه راوګرزوئ چې دالله عزوجل په وړاندې قدر او ارزښت ولري او د هغو وده او پالنه د پيغمبر انو عليهم السلام دبعثت په هدفونو کې شميرل شوې او سي

ظاهري جوړښت خو د باطني جوړښت په نتيجه کې پخپله رامينځته کيږي او که څه نيمګړتيا په کې اوسي په بشپړ تيا يې مراحلو کې به يې پخپله اهتمام وکړی شي .

ګر انو دوستانو او ملګرو !

درنځ او کمزورتيا سره سره مې دومره اوږده وينا ددې په خاطر وړاندې کړه چې زه د حق بشپړوضاحت تاسو ته ورسوم او د الله عزوجل په وړاندې خپل مسئوليت ترسره کړم ژوند ته هيڅ اعتبار نشته چې کله به يې مهلت پای ته رسيږي

له همدې کبله يې ضروري بولم چې د حق رسولو کوم مسؤليت څما پر غاړه ؤ له هغې څخه مې اوږې سپکې شي که کومه خبره زيات وضاحت غواړي مطرح يې کړئ . که چېرته مې په بشپړه توګه حق در رسولي وي نو تاسو ګواه اوسئ الله عزوجل دې ګواه وي

زه په پای کې دالله جلت عظمته سپيڅلي دربارته خپل لاسونه پورته کوم چې موږ او تاسو ته د دين اصلي پوهه راپه برخه او د دې پوهې په برابر دې داسلام د سپيڅلي دين د ټولو غوښتنو د پوره کولو توفيق راوبخښي



۱

# وراني

# وداني

دغه دهند دنيمې وچې د ستر مفكر او دپاكستان داسلامی تحريک د مرشد او لاربنود مولنا سيد ابو الاعلى مودودي رحمة الله عليه دهغی وينا متن ده چې په دارالاسلام پټانكوټ (ختيځ پنجاب) سيمه کې يې دغوايي دمياشتې په لسمه نيټه ۱۳۲۲ هـ ش كال يوې لويې درنې غونډې ته اور ولې وه په اوريدونكو كې دمسلمانانو څخه پرته هندوانو او سكهانو هم په ګڼ شمير كې ګډون كړی ؤ دغه مهال پاكستان او هند سره جلا شوي نه ؤ داور غورځوونكي غره په څير فساد اوتباهی ته تيار ؤ او يو څه وخت وروسته بيا دفساد وراني او تباهی لوی اور ولګيد

## دپيل خبرې

دټولو ستاينواو کاملو صفتونو لايق يوازې هغه ذات دی چې دټولو کائناتو خالق ، مالک حاکم بادار او ساتندوی دی . هغه سپېڅلی ذات چې موږ ته يې دعقل او فکر ځواک راپه برخه کړ ، دښه او بد تميز او بيلتون يې راوبخښه ، دبشر دهدايت او لار ښوونې لپاره يې خپل غوره بندګان انبياء عليهم السلام راوليږل .

درود او سلام دې وي د هغه په نيکو بندګانو (پېغمبرانو) په ځانګړې توګه د پيغمبرانو په سالار حضرت محمد صلواة الله وسلامه عليه باندې چې بشريت ته يې د انسانيت او دشريفانه ژوند تيرولو لارې چارې وښودلې او دژوند له اصلی هدف څخه يې خبر کړل او هغه اصول او بنسټونه يې وروښودل چې په عملي کولو سره يې په دنيا او اخرت کې نجات موندلی شي .

## دقامونو دترقۍ او زوال الهی قانون

درنو لوستونکو !

دغه نړۍ چې کوم ذات پيداکړې دځمکې فرش يې غوړولی او انسانان يې پرې استوګن کړي دي هغه جلت عظمته څه داسې ذات نه دی چې دهغه کارونه د ړانده دلاس ګوزاراو دهغه په دې نړۍ کې دې تور تم وي بلکې هغه عزوجل دخپل مستقل قانون اوپخې ظابطې پر اساس په نړۍ واکمني چلوي .

څنګه چې دغه لمر ، سپوږمۍ ، ځمکه ، ستوري او بالاخره ټول کائنات دهغه جلت عظمته له مضبوط قانون سره تړلې دي ، په دې

توګه موږ او تاسې ټول انسانان هم په تکویني لحاظ دهغه عزوجل دقانون پابند یوُ

دالله جل جلاله قانون زموږ په زیږیدلو مړینې ، کوچنیوالي ځوانۍ، زوړ والې او زموږ دتنفس په سیستم، هاضمې ، دوینې په دوران ، رنځ اوصحت باندې حاکم دی په همدې توګه دهغه یو بل قانون هم دی چې زموږ د تاریخ په لوړو ژورو او زموږ په عروج اوزوال حکومت کوي .

دغه قانون هیڅ بدلون نلري څنګه چې داامکان نلري چې یو سړی دسپوږمو پرځای په سترګو تنفس وکړي او په معده کې د خوړو دهضمولو پرځای زړه ته دغه دنده انتقال کړي نو پردې اساس هیڅکله نه شي کیدلی چې دزوال او بدبختۍ دلارې په انتخاب دې یوڅوک دترقۍ او سوکالۍ په درشل ګام کښیږدي .

څرنګه چې اور دیوه شخص لپاره ګرم او دبل لپاره یخ نه دی په همدې توګه بدکارونه ، فساد او بې لاري دیو چا لپاره دبدمرغۍ او بدبختۍ او بل ته دنیک بختۍ اوپرمختګ اسباب نه شي ګرزیدلی .

## دمالک الملک په حیث الله جلت عظمته دځمکې پرمخ ودانۍ خوښوي .

دکائناتو دڅښتن په حیث دهغه داغوښتنه ده چې دنړۍ نظام دې سمون ومومي او ځمکه دې اباده اوښیرازه کړی شي انسان ته یې چې کوم قوت او پوهه ورپه برخه کړې ده هغه دې په غوره لارو چارو استعمال کړی شي . هغه عزوجل هیڅکله دانه خوښوي او هیڅکله ورڅخه داهیله نه کیږي چې د ژوند په ډګر دې فساد او ورانۍ خپور او

نړۍ دې په ګډوډۍ، بې نظمۍ، بې لارۍ او په زور زياتې ويجاړه کړی شي.

په انسانانو کې هم چې کوم وګړي د نړۍ دقيادت او مشرتابه ستيژ ته دختلو هيله من وي نو په هغوی کې يوازې هغه خلک د الله عزوجل دانتخاب وړ ګرزي چې په هغوی کې دځمکې دودانولو زيات صلاحيت موجود وي هم دوی ته دځمکې دمشرتابه واګې سپاري.
بيا هغه جل جلاله دې ته ګوري چې داخلک دوداني څومره استعداد لري او د وراني څومره ؟

ترڅو پورې چې د دوی ودانی دوراني څخه زيات وي او ددوی په مقابل کې بل څوک ښه ودانونکی او لږ،و رانونکی په ميدان کې موجود نه وي تر هغه وخته به ددوی دټولو خرابيو او نيمګړتياؤ سره سره دنړۍ انتظام او مشرتوب ددوی پرغاړه وي. خو کله چې دهغوی وداني لږه او تخريب اوفساد يې زيات شي نو الله تعالى بيا هغوی دقيادت څخه لرې کړي او بل چا ته دملک انتظام وسپاري دغه يو بنسټيز فطري قانون دی بشري عقل هم په دې ګواهي ورکوي چې همدغسې کيدل په کار دي.

دمثال په توګه کچيرته په تاسې کې ديو چا باغ وي او هغه يې يو ماليار ته وسپاري نو تاسې په خپله ووايااست چې هغه به ددغه بڼ له ماليار کومه غوښتنه کوي ؟ صحيح خبره هم داده چې هغه له هغه څخه د بڼ ود انول غواړي. هغه به ارو مرو له هغه څخه دا تقاضا وکړي چې دهغه باغ دې تل له ميوو ډک وي او هغه دې څرګنده شي چې ماليار يې په ښه زحمت او کوښښ سره دزړه په مينه په ښه لياقت او اخلاص سره دبڼ خدمت اوپالنه کوي تل نوې ونې اوګلان کښينوي نو ارومرو به دبڼ څښتن له هغه څخه خوښ وي. هغه به هيڅکله

داسې لايق ،خدمتګار ،وظيفه پيژندونکی باغوان دخپل بڼ له خدمت څخه ګوښه نه کړي . ليکن ددې پرخلاف کچيرته هغه دا ووينې چې ماليار يې نالايقه اوتنبل ذی په پوهې او يانا پوهی سره د ده د باغ خدمت ته تيار نه ده . ټول باغ له ګندګی ډک بوټی يې وچ کلک او له وښو ډک ،ګلونه او ميوه لرونکې ونې يې بې ځايه غوځ شوې باغ مړاوی پروت دی او به يې بې ځايه بهيږي ، نو تاسې پخپله فکر وکړئ چې دباغ څښتن به داسې باغوان څنګه خوښ کړي ؟ زيات لحاظ يې که وکړي هغه به داوي چې ورته ووايې داسې مه کوه تاته نور دومره وخت دی چې دباغ خدمت وکړې خو کچيرته له دې سره سره هغه له عقل څخه کار وانخلي او باغ هماغه شان وران ويجاړ پروت وي . ددې علاج له دې نه بل څه شی دی چې دباغ څښتن هغه له غوړه ونيسي او له خپلې دندې څخه يې ګوښه کړي او دهغه پرځای بل باغوان ته دباغ دخدمت دنده وسپاري . اوس دغور اوفکر خبره داده چې دخپل باغ په دې معمولي انتظام کې چې هرکله تاسې داسې کړنلاره انتخابوئ نو الله جل جلاله به دا دومره لويه ځمکه له دومره بې شمېره شتمنيو او نعمتونو سره يې چې انسان ته حواله کړې او انسان ته يې دژوند په ډګر واک او اختيار ورکړی دی څنګه داسې چاته وسپاري چې دودانې پر ځای ورانول کوي

نو ايا الله جل جلاله به دا نه ګوري چې تاسې دهغه ځمکه ورانوئ ، او په فساد لاس پورې کوئ اوکه په ودانولو کې يې هڅه کوئ ؟کچيرته تاسې په ودانی لاس پورې کوئ نو هيڅ علت نه شي کيدی چې هغه دې خامخا تاسې له خپلې دندې څخه ګوښه کړي .

البته که تاسې دباغ خدمت نه کوئ ، بلکې لازيات يې په ورانولو او ويجاړولو لاس پورې کوئ نو په دغه صورت کې به يوځل اخطار

درکړي ترڅو تاسې اصلاح او خپله دنده په صحيح توګه سرته ورسوئ
خو د ، نه اصلاح کيدلو په صورت کې به هغوی خامخا ستاسې
دبدلون او له کاره د ګوښه کولو پريکړه کوي .اوس ښه سوچ او فکر
وکړئ چې دخپل باغ په دغه معمولي نظام کې چې هرکله تاسې دغه
تګلاره انتخابوئ نو الله جل جلاله چې دادومره لويه ځمکه ددومره
پراخه وسايلو سره انسانانو ته سپارلې ده او هغوی ته يې دومره ډير
اختيار اوواک ورکړی دی نو هغه به داپوښتنه ولې له نظره غورځوي
چې تاسې دهغه عزوجل دځمکې په ودانولو لاس پوې کوئ او که په
ورانولو ؟ که تاسې دځمکې په تعمير (ودانولو) لاس پورې کوئ نو
هيڅ سبب نه شي کيدلی چې هغه دې ارو مرو دځمکې له مخ څخه
تاسې ګوښه کړي . البته کچيرته تاسې تعمير (وداني) خو هيڅ نه کوئ
خو له ددې سره سره په تخريب (وراني) لاس پورې کوئ دهغه جل جلا
له داعظيم الشان باغ ورانوئ او په ويجاړولو يې لاس پورې کوئ که
تاسې خپله دعوی په خپل فکر کې په هر څومره په قوي بنسټونو
ټينګه کړئ هغه جل جلا له به په خپل باغ باندې ستاسې دهيڅ حق
منلو ته تيار نه شي يو څو تهديدونه اويو څه نوره موقع به هم درکړي
خو په پای کې به تاسې دباغ له انتظام او مشرتابه څخه ګوښه کړي.

په دغه معامله کې دالله جلت عظمته تعامل دانسانانو د تعامل
څخه په هماغه توګه مختلف دی لکه دبڼ څښتن او ماليار چې
نظريات يې سره جلا دي داسې وګڼئ چې دماليارانو يوه کورنۍ د
درې ، څلور پيړيو راپديخوا ديو سړي په باغ کې کارکوي . دموجوده
خلکو اجداد (نيکه ګان) دخپل اهليت او قابليت پر اساس په دې کار
مؤظف شوي وو وروسته يې زامنو هم په بڼ کې ښه کار کاؤ او دښه
لياقت څښتنان وو . دبڼ خاوند پدې فکر کې ؤ چې له دندې څخه د

دوی دګوښه کولو او دبل چا د توظیفولو څه اړتیا ده ؟ ، هرکله چې دوی په بڼ کې ښه کار کوي او خپله دنده په پوره دیانت ، صداقت او امانت سره په ښه توګه سر ته رسوي ، نو د دوی حق دنورو خلکو په نسبت زیات دی په دې توګه دغه کورنی په دغه باغ کې میشته شوه خو اوس ددې کو رنی خلک نالایقه ، نااهل ، دکار غله او وظیفه نه پیژندونکي دي . د بڼوالی یو صفت هم په دوی کې نشته دټول بڼ د ونوموند یې وویستلو بیا هم دوی دغه دعوی لري چې موږ دنیکونو او پلرونو له وخته په دې باغ کې اوسو او په خدمت لګیا یو ، زموږ دغورنیکه په لاسونو دغه باغ اباد شوی ؤ نو ځکه په دې باندې زموږ میراثي حق دی په هیڅ صورت جواز نه لري چې موږ له خپلې دندې څخه لري کړی شو او بل چاته دغه دنده وسپارل شي .

په حقیقت کې خو دغه رایه دناپوه اوجاهل مالیار کیدی شي ، خو دبڼ خاوند دجلا نظر او فکر څښښتن دی ، هغه وایې چې زما په وراندې له ټولو څخه لومړی هدف زما دباغ ښه انتظام اوښه خدمت دی ما خو دغه باغ ستاسې دغور نیکه لپاره نه ؤ اباد کړی ، ستاسې اجداد (نیکونه) مې ددې باغ په خاطر دخدمت ګارو په توګه ساتلي ؤ ستاسې حقوق ستاسو تر اهلیت ، لیاقت او خدمت پورې تړلې دي که بڼ مو ودان وساته نو ستاسې دټولو حقونو ساتنه به کولی شي ځما خو دپخوانیو مالیارانو سره څه شخصي دښمني نه ده چې هغوی دې په پوره اخلاص کار کوي او بیا یې زه بې له هیڅ دلیله له خپلې دندې څخه معزول کړم خو که تاسې دغه باغ وران او ویجاړوئ نو بیا ستاسو هیڅ حق په رسمیت نه پیژنم او نورو خلکو ته به دباغ خدمت ورسپارم او تاسې به دهغوی دنوکرانو او خدمت ګارو په توګه کار کوئ کچیرته ثابته شوه چې تاسې ددې کار اهلیت هم نه لرئ

بلکې مفسد او وران کاري یاست نو تاسې به له دې ځایه وشړل شئ او په تباهۍ به محکوم شئ.

دغه فرق اوبیلتون چې دباغ د څښتن او دمالیار په رایه او فکر کې دی همدغه شان دنړۍ دڅښتن( الله جل جلا له) او دخلکو په رایو کې هم دی دنړۍ بیلا بیل قامونه چې دځمکې په کومې برخې استوګن دي دهغوی دعوی داده چې دغه سیمه زموږ قامي وطن دی موږ له پلار نیکه څخه دلته استوګن پاتې شوي یو په دې سیمه زموږ میراثي حقوق دي نو ځکه دلته زموږ خپل انتظام ضروري دی ، بل چاته ددې حق نشته چې له بیرون څخه دلته راشي او ددې ځای انتظام په خپل لاس کې واخلي.

خو دځمکې داصلي څښتن( الله جل جلا له) دغه نقطه نظر نه دی هغه جلت عظمته دانه مني چې په هر هیواد باندې دهغه هیواد دخلکو میراثي حق دی ، چې له هم دې کبله دوی په هیڅ حالت کې له دې څخه بې صلاحیته کیدی نه شي.

هغه جلت عظمت خو داګوري چې هریو قام په خپل وطن کې څه کوي کچیرته هغه دتعمیر (ودانې) کار پرمخ بیایې او خپل ځواک دځمکې داباد ولو او اصلاح په لاره کې استعمالوي ، دبدو چارو مخه نیسي او نیکو کارونو ته وده ورکوي نو دکائناتو دمالک فیصله داده چې بیشکه تاسو ددې مستحق یاست چې دځمکې انتظام ستاسې په لاس کې وي تاسې له پخوا څخه دلته اوسیدلئ داباد ولو اهلیت او لیاقت لرئ نو ځکه ستاسې حق د نورو خلکوپه نسبت مخته دی ولې که خبره بل شان وي دځمکې تعمیراو ودانی خو نه وې بلکې دځمکې دودانیو په ورانولو لو لاس پورې کوئ دنیکو چارو پرځای په ځمکه کې فساد راولاړوئ او بدکار ونه کوئ دالله عزوجل نعمتونه له مینځه

ورځ. نو بیابه دهیواد دمشرتابه له نظام څخه تاسو لرې کوي او په تباهۍ به مو محکوموي بل یو قام چې ستاسو په نسبت زیات اهلیت ولري نو هغه ته به دقدرت واګې سپاري.

تاریخ په دې ګواهي ورکوي چې الله جل جلاله دخپلې ځمکې انتظام دتل لپاره په همدې بنسټیزو قوانینو ودرولی دی لرې به نه ځو پخپله دهندوستان دتاریخ پاڼې رااړؤو ، دلته چې څه وخت کوم قامونه اباد وو دهغوی تعمیري صلاحیتونه چې کله پای ته ورسیدل نو الله پاک آرین قام ته ددې هیواد انتظام وسپاره هغوی دلته ډیر لوی او پرتمین تمدن بنسټ کیښود ډیر علوم او فنون یې ایجاد کړل ، دځمکې خزانې یې رابرسیره کړې. خو چې کله دوی په تخریب (ورانی) لاس پورې کړ فساد او ورانی یې زیات شو او په اخلاقي انحطاط کې پریوتل ، هرکله چې دوی بشریت وویشلو او خپله ټولنه یې په بیلا بیلو طبقاتو (پاټکېو) تقسیم کړه دساري په توګه ، برهمن، اچوت او شودر ، دبرهمن طبقه یې د الوهیت مقام ته ورخیژوله هر کله چې دوی دالله عزوجل په لکونو اوملیونونو بندګانو داسې ظلمونه وکړل چې تر ننه پورې د چواړیانو په شکل کې موجود دي او کله چې دوی دعلم د روازې دعامو وګړو پر مخ بندې کړې او دهغوی پنډتانو د علم په خزانو خیټه واچوله او دهغوی حکمرانانو دنوروخلکو دلاس په ګټو او خوارۍ مزې او چړچې پیل کړې ، له دې نه پرته هرکار ته یې شاوګرزوله په پای کې الله پاک ددې هیواد انتظام له دوی څخه واخیست او دمرکزي اسیا هغو قامونو ته یې دلته دقیادت واګې وسپارلې چې په هغه مهال هغوی داسلام څخه اغیزمن شوی ؤ او د ژوندانه په بهترینو اصولو لیاقت او قابلیت آراسته ؤ.

دغه وګړي ترسوونو کلونو پورې ددې هیواد په انتظام مقرروو له دوی سره ددې هیواد نورو ډیرو خلکو داسلام سپیڅلي دین ومانه او په اسلام کې شامل شول . حقیقت دادی چې دغوخلکو ډیر څه وران هم کړل خو ، له وراني څخه یې وداني زیاته وه په لوی هندوستان کې چې هغه مهال دوداني ځومره کارونه تر سره شوي ټول ددوی له لاسه شوي هغوی د علم ړنا جوړه کړه دنظریاتو اوافکارو اصلاح یې وکړه تمدن او ټولنیز ژوند یې سم کړ دهیواد وسایل یې دخپل وخت دمعیار مطابق په ښه شکل استعمال کړه دامن او عدل نظام یې په پښو ودراوه اګر که د اسلام په اصلي معیار خو پوره نه ؤ ، خو دپخوا او دشاوخوا هیوادونو دحالت په نسبت ډیر ښه ؤ له دې نه وروسته دوی هم دخپلو اسلافو په څیر وران شول او په دوی کې هم دوداني صلاحیتونه لږ شول او دوراني په لوري هڅې په دوی کې زیاتې شوې ، دوی هم په خپل مینځ کې درانه او سپک نسلي امتیازات او طبقاتي بیلتونونه پیداکړل او خپله ټولنه یې دړې وړې کړه له همدې کبله ګټې اخلاقي ، سیاسي او تمدني نیمګړتیاوې رامېنځته شوې په دوی کې هم انصاف لږ او ظلمونه زیات شول ، دوی دحکومت مسؤلیتونه هیر کړل ، یوازې خپلې ناروا ګټې ورته ارزښتناکه وې دپرمختګ اوسمون چارې یې پریښودلې ، دالله له خوا ورکړې شوې وسایل او ځواکونه یې تباه کړل ، په عیشونو ، مزو ، چړچو ، کې بوخت شول هرکله چې دوی په وورستې خل تیښته کوله د دوی حکمرانان او مشران دډهلي د (لال) قلعه څخه په وتلو اړ شول نو د دوی شاهزادګان دخپل ځان دخلاصون لپاره زغلیدلی هم نه شول داځکه چې په ځمکه تلل خو هغوی پرېښي ؤد مسلمانانو عامه اخلاقي خوړتیا تر دې حده رسیدلې وه چې دعام ولس ، نه واخلئ تر لویو لویو دولتي مسؤلینو پورې هم دغسې ځوک

نه ؤ چې دخپل خان نه پرته دبل چا وفاداراوسي او دوی دې د دین ، وطن او قام خرځونې څخه ژغورل شوې وي . په دوی کې په زرګونو ، لکونو ،سپاهیان پیداشول چې دهغوی حال دساتلی شویو سپیانو په شان ؤ یعنې چې دچاړه وغواړي د ډوډی یوه ټوټه ورکړي او بیایې چې څوک خوښ وي پرې وه یې داړي .

په دوی کې ددې خبرې احساس هم پاتې نه شوچې ددغه ذلیل کسب او کار لـه کبله هغوی په خپله د دوی په لاسونو دغه هیواد فتح کـاؤ خـو د وی تـه پـه دې کـې هـیڅ بـدي او سپکاوی نـه معلومـیده ، دغالب په څیر ملي شاعر په ویاړ سره داوایې چې سپاهي تو ب خو ز موږ په کورنی کې پیړی تر پیړی پاتې شوی ، نو دومره ستر قامي شاعر چې دغه وینا کوله نو دغه سوچ یې نه کاؤ چې سپاهي توب خو څه دفخر خبره نه ده بلکې داخو دیوقام لپاره دمرګ باعث دی . هرکله چې دوی دغه د زوال حالت ته ورسیدل نو الله (ج) د دوی دګوښه کولو او ایسته کولـو پریکړه وکړه او دهندوستان دانتظام منصب د نویـو امید وارانو لپاره پرېښودل شو .

په دې مهال دقیادت او مشرتابه لپاره څلور قامونه دهیلو په ډګر ولاړ ؤ مرهتیان ، سکان ، انګریزان او دمسلمانانو ځینې رئیسان . که دتعصب څخه کار وانه خلو ، دانصاف خبره وکړو او دهغه وخت تاریخ تـه وګورو نو زموږ او ستاسې زړه به ددې خامخا ګواهي ورکړي چې پـه دغو امیدوارا نـو کـې یـوه ، هـم دتعمیر (ودانـي) قابلیت او صلاحیت نه درلود یوازې انګلیسان ددې استعداد څښتنان ؤ، څومره ورانی چې په انګلیسانو کې ؤ پـه هماغـه انـډول تخریب لـه دوی نـه زیات په مرهتیانو سکانو او مسلمانانو کې لاڅوچنده زیات وو څه چې انګلیسانو تعمیر کړل نو ددوی څخه یوه هم دغه کار نه شو کولی

، سره له دې چې په انګلیسانو کې له بېلا بېلو اړخونو څخه ډېرښېمګړتیاوې وې ، خو بیا هم د دوی دوخت د رقیبانو په نسبت په دوی کې ځینې ښیګنې هم وې ، د دوی خرابۍ ډېره لږه خو ښیګڼې او ودانۍ یې زیاتې وې.

همدغه لامل دی چې الهي قانون یوځل بیا دانسانانو جوړکړی شوي اصول او قوانین مات کړل ، یعنې داچې هر یو هیواد دهغه هیواد داستوګنو لپاره دی برابره خبره ده که دوی یې ورانوي او که ابادوي یې نو الله جلت عظمته په خپلې نه بدلیدونکې پریکړې سره ثابته کړه چې دغه ملک د الله جلت عظمته دی او هغه جل جلا له ریښتونې پریکړه کوي ، حق لري چې چاته دځمکې دمشرتابه واګې وسپاري او له چاڅخه یې بیرته واخلي د ،ولسونو دقیادت ، سیاست او مشرتابه پریکړه دڅه نسلي ، پلرني او قامي حق په بنسټ نه کیږي داڅه میراثي دنده نه ده بلکې دصلاحیت ، لیاقت او قابلیت پراساس صورت نیسي دغه د الله (ج) واکمني ده چې چاته یې سپاري او له چا څخه یې بیرته اخلي داڅکه چې هغه عزوجل واکمن او ټولواک ذات دی

ددغه مطلب د څرګندونې په باب قران عظیم الشان فرمایي[قُلْ اللّٰهُمَّ مَالِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَاءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَاءُ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَاءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَاءُ بِيَدِكَ الْخَيْرُ إِنَّكَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ] (آل عمران۲۲) ژباړه : ای محمد (ص) ووایه ای الله ای واکمنه پاچا ! ته پاچاهي هغه چا ته ورکوې چې ستا خوښه شي او چې له چانه ستا خوښه شي ترې یې اخلې چاته چې دې خوښه شي عزتمن کوې یې او چاته چې دې خوښه شي ذلیلوې یې خیر ټول ستا په لاس کې دی بې له شکه ته په هر څه توانا یې .

په دې توګه الله پاک د زرګونو میله لرې سیمې څخه داسې یوقام راوست چې دهغوی شمیر کله هم د درې څلورو لکو څخه زیات نه ؤهغوی د دې سیمې په وسایلو او ددې هیواد دخلکو په لاسونو دهندوانو، سکانو او مسلمانانو ځواک پای ته ورساؤاو ددې هیواد واکې یې په خپل لاس کې ونیولې ددې هیواد په ملیونونو وګړي دیو موټې انګریزانو تر لاس لاندې پاتې شول یوه یوه انګریز به په یوازې ځان په یوې لویې سیمې او یو لوی ولایت حکومت چلوه . په داسې حال کې چې له دوی سره دخپل قام افرادي ځواک نه ؤ دهندوستان خلکو د دوی دخدمتګارانو رول لوباوه .

دغه یو څرګند حقیقت دی چې څومره وخت انګریزان دلته موجود ؤ دودانی ټول کارونه په دې ټوله سیمه کې ددوی په لاس تر سره شوې دهندوستان داشغال له وخت نه چې تر اوسه مقایسه وشي د وراني سره سره د ودانی ډیر کار سرته رسیدلی دی .چې ددې سیمې دخلکو له لاسه یې هیله نه شو ه کیدلی . نو ځکه دالهی تقدیر هغه پریکړه ډیره سمه وه کومه چې داتلسمې پیړۍ په نیمایې کې یې وکړه هر کله چې د انګلیسانو د،وراني اندازه زیاته شو ه دوی چې هر څومره دلته پاتې کیدل دتخریب وراني ګراف یې لوړیده ددوی جرمونه دومره ډیر دي چې بیانول یې ضروري نه بولم ځکه چې هغه دتاریخ په تنده ثبت او دټولو وګړو ترمخ پراته دي اوس نودالهی تقدیر پریکړه داوه چې دوی ددې پراخې سیمې له مشرتابه څخه ګوښه کړي .

البته انګلیسانو له ډیرې هوښیارتیا څخه کار واخیست چې په خپله خوښه له دې هیواده رخصتیدلو ته تیار شول ، که په ابرو اوعزت وتلي نه وای نو په ډیر ذلت او بې شرمۍ به له دې سیمې شړل شوي وای داځکه چې د الله نه بدلیدونکي قانون دوی د دې هیواد له

مشرتابه څخه لرې کړي ؤ .همدغه زموږ او ستاسو سرنوشت دی هرکله چې د زمکې اصلي څښتن په خپله ځمکه کې دیوچا تصرف او دخدمت کولو واک پای ته ورسوي او بل چاته دځمکې دانتظام پریکړه وکړي . ددې ځمکې پخواني کرونده ګر به دغه سوچ نه کوي چې ددې ځمکې دخدمت حقدار زه یم ځکه چې له هغې لرې سیمې او بیرون ځینې د راوستل شوې دهقان ماموریت پای ته ورسیده .

موږ خو فکر کوو چې استعماري ځواکونه له دې هیواده ووتل نور نو ددې هیواد اداره زموږ حق ده، خودا صحیح خبره نه ده دالله جل جلا له پریکړه په دې توګه نه ده هغه چې پردې خلک دلته ګومارلي ؤ بې سببه یې نه ؤ مسلط کړي او نه یې بې سببه له دې هیواده بیرته وباسي . له لوی هند څخه دانګلیسانو دوتلو په مهال دهندوستان مسلمانانو او ددې سیمې نورو استوګنو ددې علاقې دقیادت او مشرتابه دامیدوارانو حیثیت د رلود څنګه چې داخلک له پخوا څخه دلته استوګن دي نو لومړی ددوی حق ؤ خو په دې شرط چې په دوی کې د ابادۍ اوودانۍ صلاحیتونه وی دغه دازمېښت یوه موقع ده کچیرته دوی داثابته کړه چې په دوی کې دوراني پرځای دوداني صلاحیتونه ستر دي نو بیا خو به ددوی استقلال او په دې ځمکه استقرار او واکمني یقیني شي ، او که داسې ونه شي نو ډیر ژربه دوی دهیواد له انتظام او مشرتابه څخه ګوښه کړی شي ، بیا به له لرې او نژدې قامونو څخه چې کوم یو قام ددې خدمت لپاره غوره ؤ هغه به ددې خدمت لپاره انتخاب کړی شي . بیا به ددې پریکړې پرخلاف دوی فریاد هم نه شي کولی اودټولې نړۍ په مخکې به دخپلې نالایقۍ ثبوت له وړاندې کولو وروسته د دوی له شرمه ډک فریاد څوک واوري؟

اوس بـه ددې خبـرې انـدازه ولګـؤو چـې دهندوسـتـان اسـتوګن هندوان ، مسلمانان او سکهان دازمينبت په دې مهال د الله په وړاندې کـوم کـوم قابليتونه او صلاحيتونه دخلکو تنداري ته وړاندې کوي چې دهغې پر اساس دوى داهيله وکړي چې ددې هيواد انتظام او مشرتوب دوى ته وسپاري ؟ پـه دې وخت کې کچيرته زه په زغرده ووايم او ددې هـيواد دافـرادو جرايمو تـه ګـوته ونيسم چې ددې سيمې اسـتوګن يې پرې لاس پورې کوې زه دخپلو هـيوادوالو عـيبونه نه بربنډوم ، خو زما زړه ژاړي زه ويريږم چـې دغـه عـيـبونه بـه دغـه قـام دتـاريخ کـندې تـه وسپاري مـوږ او تاسې هـيڅوک بـه ددې بدانجام څخه خلاصـون ونـه مومـو نو ځکه زه دزړه له درده وايم که څوک غوږ ونه ولري چې هغه يې واوري او داصلاح لپاره خپل فکر اوډماغ په کار واچوي

زمـوږ دملت دعامـو خلکـو دغـه اخلاقي حالت دى چې تاسو يې په خپلو سـترګو وينې پـه سـلو کـې بـه څومـره وګـړي ومونـدلـى شـي چـې هغـوى دې ديـو چا پـه حق تلفـي او بـل ته په زيان رسولو اود دروغـو په ويلـو څه کموالـى ونـه کړي ؟ چيرته چې دقانون نيوکه نه وي هلته به په سلو خلکـو کـې څومـره وګـړي داخلاقـي احسـاس پر اساس دڅه جرم او بدو چـارو لـه کولـو څخـه منعه شي په خلکو کـې لـه نورو خلکـو سـره دښـيګنې ، همدردۍ ايـثـار ، ښـه سـلوک اوښـو کړو وړو اندازه څومره ده ؟ پـه سـوداګرو کـې بـه د داسـې سـوداګرانو اندازه څومره وي چې بل چاتـه لـه دوکـې ورکـولـو او ټګـى څخـه ځـان وسـاتـي زمـوږ پـه صـنعت کاروکـې بـه دداسـې وګـړو نسبت څومـره وي ، چـې لـه خپلـې ګټـې سره سره دهيـواد او ملي ګـټـو سـاتونکي اوسـي ؟ زموږ په کروندګرو او مال دارو خلکـو کـې بـه څومـره وګـړي وي چې خپل اجناس دنرخ لوړيدو ته ونـه سـاتي او پـه ظلـم کولـو لاس پـورې نـه کـړي ؟ زمـوږ پـه مامورينـو او

دولتـي کارکوونکـو کـې بـه څومـره خلـک وي چـې پـه ایمانـداری او اخلاص سره خپله دنده تر سره او له رشوت ، خیانت او ظلم څخه ځان وژغوري ؟ زموږ په وکیلانو ، ډاکترانو ،پوهانو، لیکوالانو ، اوولسي خدمتګارانو کې داسې وګړي شته چې هغوی ته دخپلو ګټو په خاطر دناروا لارو چارو په غوره کولو او خلکو ته په ذهني ، اخلاقي ،مالي او ځاني زیان رسولو کې دڅه شرم احساس وي ؟

بنـایې مبالغه بـه مـې نه وي کړې کچیرته ووایم چې زموږ دخلکو په سلو تنو کې بـه پنځه وګړي داسې وي چې ددې اخلاقي جرایمو په رنځ بـه اخته نه وي . په دې معامله کې دهندوستان ټول خلک مسلمان او نا مسـلمان یو شان دي دټولو اخلاقي فساد لوړې پوړې ته رسیدلی دی . داخلاقـي زوال رنـځ چې ددې هیواد عـام وګـړي یې پـه خپله لمن کې راونغاړل په ټولنیز شکل یې څرګندونه وشوه ددې هیواد وګړو یو لـه بـل سره دخودغرضی ، بې دردی ،و حشت او بربریت داسې سلوک وکـړ چې دځنګلونو ځناور ورڅخـه شرم احساسوي دبیلا بیلو ډلـو ترمېنځ دجګړو داور لمبې بلې شوې هیواد دفساد په کنده کې پریوت دکلکتې تر فساد او وراني وروسته دهندوانو ،مسلمانانو او سکهانو ترمینځ دقامـي وژنـو دروازه پرانسـتله شوه ، په دې کې دغو درې وارو قامونو دخپلو ډېرو سپکو سپاندو صفتونو څرګندونه وکړه . چې له یو بشرڅخه یې تصور نـه شي کیدلی .دکلیو او باندو خلکو لوټ او تالان پیل کـړ، تې رودونکي ماشومان یې دمیندو پـه مخ کې ذبحـه کړل . ژوندي انسانان یې په اور کې وریت کړل پاک لمنې او پتمنې ښځې یې په بازارونو کې لغړې کړې او دزرګونو خلکو پـه وړاندې یې د دوی عـزت او ناموس لـوټ کـړ دپلرونو ، میړونو او ورونـو پـه وړاندې یـې دهغوی دلوڼو ، ښځو او خویندو بې عزتي وکړی شوه په عبادتخانو او

ديني كتابونو يې غوسې وويستلې . رنځوران ، زخميان ، اوبوړاګان په ډيرې بې رحمې سره ووهل شول دژوند يو انسانانو اندامونه غوڅ او مسافر له روان موټر څخه وغورځولی شول بې وسه او مظلوم انسانان دځناورو په څير په وينو كې لت پت شول . ګاونډيانو خپل ګاونډيان لوټ كړل فوځ او پوليسو پخپله په فساد او وراني كې برخه واخيسته او نور خلك يې فساد او وراني ته وهڅول .

لنډه داچې دظلم او فساد ، وحشت ، بې رحمۍ هيڅ ډول پاتې نه شو چې زموږ دهيواد استوګنو په ټولنيز شكل پرې لاس نه وي پوري كړی . ما خو تاسې ته څرګنده كړه چې ددې هيواد په سلوخلكو كې پنځه نوي په اخلاقي حيثيت ناروغه دي ، نوهركله چې ديو هيواد دخلكو دومره لوی شمير بد اخلاقه شي نو دولسونو ټولنيزه رويه اوسلوك به څنګه صحيح پاتې شي . نبي نبياني داسې دي چې هر څه له دې څخه په ډير لوړ كچ په ډير بدشكل لاپياهم كيدونكي دي . ايا تاسې فكر كوې چې داهر څه دناځاپه پاريدلو نتيجه ده ؟ كه چيرې ستاسې هم داسې تصور وي نو بيا داستاسو ناپوهي ده مخكې مې څرګنده كړه چې زموږ دهيواد په سلو خلكو كې پنځه نوي وګړي په اخلاقي فساد اخته دي ، نوهركله چې دملت دومره زيات شمير وګړي په بداخلاقۍ اخته شي نو ټولنيز سلوك او طريقه به څنګه روغه پاتې شي . له همدې امله په هندو ، سكهه اومسلمان قام كې دريښتينولۍ ، انصاف او حق پالنې هيڅ ارزښت پاتې نه شو دبدو چارو مخنيوی او په نيكيو امر ددوۍ په ټولنه كې يوداسې جرم دی چې دزغملو وړتيا نه لري ، دحق او انصاف ويناؤ اوريدلو ته اوس څوك تيار نه دي ، په دوۍ كې دهر قام داسې خلك خوښ دي چې هغوۍ په لوړه اندازه د

دوی د غوښتنو وکالت وکړي او د نورو پر خلاف د تعصوبونو اور ته لمن ووهي

هغوی ترټولو زیات بد او ناکاره خلک ولټول او هغوی یې خپل نمایندګان وټاکل او دخپلو معاملاتو واګې یې دغو مجرمانو ته په لاس کې ورکړې ، په ټولنه کې چې کوم خلک داخلاقو په لحاظ بې هدفه او بې بنسټه ؤ هغوی د دوی د ترجمانۍ لپاره راپورته شول دلیکوالۍ په ډګر له ټولو څخه وړاندې شول بیا یې هم خپل ولس دوران کارۍ په لاره وخوځاؤ ، د دوی متضادې قامي غوښتنې د دې پرځای چې خلک دانصاف اوعدالت په یوه محور راټول کړي هغه یې دې اندازې ته ورساؤ چې په خپلو مېنځونو کې وجنګیدل دوی د اقتصادي او سیاسي هدفونو په مبارزه کې دغوسې ، نفرت او دښمنۍ زهر ورګډ او هغه یې ورځ په ورځ لا زیات کړل هغوی خپلو پیروانو ته دخپلو پارونکو وینا ؤ او لیکنو په وسیله داسې احساسات ور وبخښل چې هغوی بیا دلیوانو او سپیانو په څیر په خپلو مخالفینو حملې کولې ، دوی د عامو او خاصو خلکو په زړونو کې د کرکې او نفرت دناپاکه احساساتو اورونه بل کړل او له هغوی نه یې د دښمنۍ تنورونه جوړ کړل .

اوس مهال چې کوم ستر طوفان ستاسې په مخ کې راروان دی داناڅاپه نه دی څرګند شوی ، داخو د ورانیو دهغو بې شمیره اسبابو نتیجه ده چې له ډیره وخته ورته کار کیده ، دغه نتیجه په یو ځل نه څرګندیږي بلکې دغه له زهرو څخه ډک یو فصل دی چې څو کاله پخوا کرل شوی او اوس د پوخوالي مرحلې ته رسیدلی ، څرګنده نه ده چې دغه زهر څو راتلونکي نسلونه هم له منیځه وړي .

درنو لوستونکو

تاسې پوره غور اوفکر وکړئ چې دالهي پریکړې په برابر ددې هیواد نوی برخلیک تاکل کیږي انګریزان له دې سېمې په وتلو مجبور شوي دامهال موږ دکائناتو دمالک الملک په وړاندې دخپل اهلیت اوقابلیت کوم یوثبوت وړاندې کؤو ؟ په کار خو داوه چې موږ دخپلې کړنلارې او عمل په وسیله څرګنده کړې وای چې کچیرته هغه جل جلا له دځمکې انتظام موږ ته راوسپاري موږ یې په سنبالښت لاس پورې کړو او له هغې نه یوګلبڼ جوړکړو موږ به دلته عدل او انصاف ټینګوو دظلم جرړې به له ستې راوباسو د الله (ج) ځمکه به دمرستې ، سولې ، امن او محبت زانګو ګرزؤو ځمکني وسایل به دخپل ځان او ټول بشریت دسوکالۍ او ارامۍ لپاره په کار راولو . په دې کې به نیکیو ، ته وده ورکؤو او بدکارونه به پای ته رسؤو .

خو ددې پرعکس موږ د لوټ مارۍ ، فساد ، ورانکارۍ ،قتل ، وحشت او بربریت ثبوت وړاندې کړ . موږ خپل مالک الملک څښتن ته دغه څرګندؤو چې موږ دومره لوټ ماران او دشراو فساد څواک یُو کچیرته تا موږ ته دځمکې واکمني او اقتدار راوسپارلو موږ به یې په کنډر او کنډواله واړؤو ،کلي او ښارونه به په اور وسوزؤو ،دانسان دژوند ارزښت به له موږ سره دمچ دوزر په څیر نه هم وي موږ به دښځو بې عزتي کؤو واړه ماشومان به وژنو په بوډاګانو او ټپیانو به هم زړه نه سوزؤو ، عبادت ځایونه او دیني کتابونه به هم روغ نه پریږدو ، دځمکې پرمخ چې تاانسانان استوګن کړې دي دهغې ښکلا ، به موږ دانسانانو په مړو او اور سوو عمارتونو بدلوو ایا ستاسو وجدان به داومني چې ددې پورتنیو پریوتو صفتونو او کارنامو سره به د الله

جلت عظمته په وړاندې دځمکې دخلافت او مشرتابه لپاره اهل ثابت شي ؟

دغه وينا زه تاسې ته ددې لپاره نه کوم چې تاسې له خپل ځان او خپل راتلونکي څخه مايوسه شئ دخپل راتلونکي په هکله خو زه نه په خپله مايوس يم او نه نور خلک نا اميده کول غواړم په حقيقت کې ځما هدف تا سوته دابنودل دي چې دهندوستان وګړي دخپل جهالت او ناپوهۍ له کبله دغه زرينه موقع له لاسه ورکوي ، چې دکائناتو مالک يې له سوونو کلونو ، وروسته دهغه هيواد خلکو ته ورکوي دامهال خو ددې خبرې سخت ضرورت ؤ چې دې خلکو له يو بل نه زيات دخپلو اعلى صفتونو او خپلو بهترينو صلاحيتونو ثبوت وړاندې کړي و ی تر څو د الله جل جلاله په نظر کې دځمکې دانتظام داهليت څښتنان ګڼل شوی وای خو په زيات تاسف سره بايد ووايم چې په دوی کې زيات خونړي ، لوټ مار او د الله (ج) په غضب اخته قام دغه نخرې د آزادۍ ، پرمختګ او سرلوړۍ ترعنوان لاندې ترسره کوي ، زه ويريږم چې هسې نه ديوې اوږدې مودې لپاره د الله (ج) له لوري زموږ په هکله دغلامۍ ، بردګۍ ، اسارت او دنورو ترلاس لاندې دژوند تيرولو پريکړه صادره نه شي ، نو ځکه چې کوم خلک دعقل او پوهې څښتنان دي هغوی ته دحالاتو دسمون سوچ او فکر په کار دی .

په دې پړاو کې به ستاسې په زړه کې داخبره پيدا کيږي چې داصلاح لارې چارې به څه وي ؟ نو دغه پوښتنه په لاندې توګه ځوابوم .

دناپوهۍ په دغه توره تياره کې دهيلو دړنا يوځرک په سترګو کيږي او هغه دا چې زموږ دهيواد ټول وګړي په فساد او وراني اخته نه دي په سلو خلکو کې څلور پنځه تنه خامخا له دغې عامې بد اخلاقۍ

څخه خوندي پاتې دي ، داهغه پانګه ده چې داصلاح او سمون دپيل په مقصد بايد ور څخه کار واخيستل شي داصلاح او سمون په لاره بايد لومړی ګام داسې پوره شي چې دټولنې صالحو اونيک صفته وګړو لټون دې پيل او هغوی دې منظم کړی شي ، زموږ دخلکو دبد بختۍ لامل دادی چې زموږ نيک او صالح وګړي غير منظم تيت ا ويرک دي ، په ټولنه کې نيک خلک خامخا موجود دي ، خو پراګنده دي دهغوی ترمينځ هيڅ رابطه ، تړون ، مرسته او دګډ کار کولو احساس نشته دهغوی دکار دايره محدوده او ديوه اواز څښتنان نه دي او په ټولنه کې يې هيڅ اغيزه او اثر نشته ، ځينې وخت د الله جل جلاله يونيک بنده په خپلې شاوخوا کې دبدو چارو او فساد په ليدلو سره دمخالفت چغه پورته کړي ، خو چې له بل لوري د ده په مرسته کې غږ پورته نه شي نو دده زړه به هم مات شي او پرځای به کښيني هر کله چې يو سړی دحق او انصاف وينا په پوره ميړانې او زړورتيا سره په زغرده وکړي ، خو دفساد او بدو چارو منظم ځواک په پوره زور او قوت سره دده ژبه وروتړي ، حق پالونکي او ښه خلک يوازې په چوپه خوله هغه ته شاباسی ووايې او نور غلې کښيني .

د مثال په توګه که يو سړی دانسان وژنې ، وينو بيولو ، لوټ ، تالان ، فساد او بی لاری پرخلاف راپورته شي او پر ضد يې غږ اوچت کړې ، خو ظالمان او بدمعاشان په هغه راټول شي او ستونی يې ور خپه کړی ، په دې کار سره به د نورو خلکو زړونه هم مات شي .

ددغه وضعيت پای ته رسول په کار دي ، کچيرته موږ دا ونه غواړو چې زموږ هيواد دې د الله (ج) په قهر او غضب اخته شي او ددې هيواد ښه او بد وګړي دې د الله (ج) په عذاب کې مبتلاء شي نو موږ ته ددې کوښښ په کار دی چې په موږ کې کوم نيک خلک له دې رنځ

څخه ژغورل شوې هغوی دې راټول او منظم شي او په خپل ټولنيز ځواک دې د دې فتنې مقابله وکړي .تاسې له دې خبرې مه ويريږی چې دغه صالح او نيکو کاره خلک دغه مهال په لږ شمير کې دي ، حقيقت دادی چې کچيرې دغه لږ شان خلک منظم شي او د دوی شخصي او ټولنيزه تګلاره په پوره اخلاص ،رېښتينولۍ ،ديانت او دحقپالنې پربنسټ ولاړه وي نو په پوره باور سره په زغرده ويلی شم چې د دې منظمې ډلې مقابله د فساد منظم ځواک او دلښکرو او وسايلو موجوديت نه شي تر سره کولی .

دانسان فطرت شرغوښتونکی نه دی ، هغه ته دوکه ورکولی شي او تر ډيرې اندازې بشري فطرت له مينځه تللی هم شي . البته چې په ده کې دنيکۍ خومره ماده الله (ج) ايښې هغه په بنسټيز ډول له مينځه نه شي تللی په انسانانو کې به ډير وګړي داسې وي چې هغوی به له بدو کارونو سره مينه ولري او دهغې جنډې به ريانده ساتي خو د دې برعکس داسې خلک هم لږ نه وي چې دنيک کار مينه ونه لري او دټينګښت لپاره يې په هلو ځلو بوخت نه وي ، د دې دواړو ډلو تر مېنځ عام وګړي دنيکۍ او بدۍ ګډې وډې هڅې لري هغوی خو نه دفساد او بدو چارو لپاره په هلو ځلو بوخت وي او نه دنيکۍ په لور په ځغليدو وي . د دوی د تمايل ټول انحصار په دې کې دی چې دخير او شر په توغ اوچتونکو کې څوک ورڅخه وړاندې کيږي اود خپلې لارې په لور يې راکاږي نو کچيرته دخير علمبرداران په پوره توګه ميدان ته راونه دانګي او د دوی له خوا دعام ولس دخير او نيکۍ په لور د بوتللو هيڅ کوښښ نه وي نو په يقيني توګه لوبه د شر دتوغ اوچتونکو په ګټه پای ته رسيږي . البته که چيرته د خير علمبرداران هم په ډګر موجود وي او هغوی داصلاح حق بيخي سم اداء کړي نو په عام ولس

کې دشريرو ځواکونو اغيزې تر ډيره وخته نه شي پاتې کيدلی داځکه چې ددې دوارو ځواکونو مقابله به داخلاقو په ډګر وي ، پدې ډګر بدانسانان نيکو خلکو ته هيچرې ماتې نه شي ورکولی . د ريښتياؤ په مقابل کې دروغ دايمان په وړاندې بې ايماني او دنيکو چارو په مقابل کې بد کرداري که هر څومره شور او زور ولري غلبه نه شي موندلی . وروستنی بری په هر حال د حق په برخه دی . نړۍ وال دومره بې حسه نه دي چې دښو اخلاقو خوږوالی او دخرابو خويونو تريخوالي ونه څکي ، بيا به هم داپريکړه کوي چې د تريخوالي نه خوږ والی بهتر او غوره دی . داصلاح او سمون په خاطر دنيک صفته انسانانو له تنظيم سره يو بل ضروري او ارزښتناکه شی دادی چې زموږ په وړاندې دتعمير (ودانۍ) او تخريب (و رانې ) يو څرګند تصور موجود دی مو ږ ته په ښه شان په دې خبره پوهيدل ضروري دي چې تخريب څه شی دی چې د له مينځه وړلو کوښښ يې وکړی شي او تعمير (ودانی) څه شی ته وايې چې دعملي کولو لپاره يې پوره ځواک په کار ولويږي ، زه به په ډير لنډ ډول د دوارو يو تصوير وړاندې کړم .

په بشري ژوند کې چې د کومو شيانو له کبله تخريب (ورانی) پيداکيږي هغه موږ په څلورو لويو عنوانونو (سرليکونو ) کې يوځای کولی شو .

## دتخریب (وراني) عوامل اواسباب.

۱: *له الله جل جلاله څخه نه ویریدل* : په حقیقت کې همدغه خبره په نړۍ کې دظلم ، بې انصافۍ ، بې رحمۍ ،خیانت او فساد او دنورو ټولو اخلاقي فسادونو بنسټ دی .

۲:-*د الهي لارښوونو څخه بې پروایي* :-په دغه صورت کې دانسان لپاره د ژوند په هیڅ معامله کې څه داسې مستقل بنسټیز قوانین او اصول نه پاتې کیږي چې پابندي یې وکړی شي ، له همدې کبله داشخاصو ، قامونو او ډلو کړنلاره داسې شکل اختیاروي چې د شخصي ګټو ، ماده پالنې او دنفسي غوښتنو په بنسټ اینښودل شوې وي خپلو اهدافو ته درسیدلو لپاره د روا او ناروا بیلتون له مینځه ځي .

۳:- *خپل غرضي* : داخبره نه یوازې خلک دیو بل دحقوقو لوټ کولو ته تیاروي بلکې په لوی کچ د قام پالنې او دطبقاتي (پاڅکیزه) امتیازونو شکل هم غوره کوي له دې کار څخه دفساد او وراني ګڼ شمیر صورتونه رامینځته کیدی شي .

۴:- *جمود او بې لاري* : ددې لـه امله انسان دالله جلت عظمتـه ورکـړي قوتونه په بشپړ ډول په کار نه راولي او یا یې په ناروا لارو کې استعمالوي په لومړي صورت کې د الله عزوجل داقانون دی چې هغه جلت عظمته بې توښې خلک په خپله ځمکه کې نه پریږدي بلکې د دوی پر ځای داسې خلک راولي چې هغوی څه ناڅه دځمکې په ودانولو لاس پورې کوي .

په دویم صورت کې کله چې دناکاره قـامونو تخریب (ورانـی) دهغـوی لـه تعمیر (وداني) څخه زیات شي نو هغوی ګوښه کوي او ډیر ځله داسې وشي چې هغوی دخپلو فسادونو او بې لاریو له امله په بربادۍ محکوم او دتاریخ کندې ته وسپارل شي .ددې اصولو په مقابل کې هغه شیان چې دهغو له کبله دانسان ژوند جوړښت او ښکلا مومي تر څلورو عنوانو لاندې راتللی شي .

## دتعمير عوامل او اسباب

۱ : *تقوى (له الله (ج) څخه ويره)* :دايو داسې داعتماد او باور وړ تضمين دى چې سړى پرې له بدو چارو څخه ژغورل كيږي او پر سمه لار تللى شي ر يښتينولي ، عدالت ، امانت ، حق پيژندنه د نفس قابو كول او نورې هغه ټولې ښيګڼې چې په هغو باندې دسوله ئيز او پرمختللي تهذيب او تمدن دبنسټ ډبره ايښودل شوې ټينګښت مومي ، ټولې ښيګڼې او نيكې چارې دتقوى له سپيڅلې زړې څخه پيدا كيږي .

۲ :- *دالهي لارښوونو پيروي* : دالهى لارښوونو دپيروي له كبله د انسان انفرادي ، ټولنيزه ، ملي او بين المللي كړنلاره داخلاقي مستقلو اصولو او قوانينو پربنسټ ټينګيږي . داځكه چې تر څو پورې يوشخص دخپلو اخلاقي اصولو او قوانينو په خپله جوړونكى واوسي او له الهي (ج) لارښوونو څخه ازاد او مستقل اصول تدوين كړي له هغه سره يوازې د وينا لپاره يو شان قوانين وي او دعمل لپاره بل شان ، په كتابونو كې دسرو زرو په اوبو رنګ قوانين ليكې او په معاملاتو كې د خپلې خوښې په برابر له بل شان قوانينو څخه كار اخلي . له نورو خلكو څخه چې دكومو قوانينو دتعميل غوښتنه كوي هغه يو څه وي او په خپله چې په څه رنګ چارو لاس پورې كوي هغه بل شان وي .دوخت ، شخصي ګټو ،نفسي غوښتنو او دضرورت په برابر دهغه اصول او قوانين بدليږي رابدليږي .دهغه داخلاقو اصلي چورليز حق نه بلكې شخصي ګټې وي هغه هيڅكله دي ته سر نه ټيټوي چې دهغه عمل دې له حق سره سمون ولري د دې پرځاى هغه داغواړي چې حق دې دهغه دګټو مطابق شي .له همدې كبله له افرادو څخه واخله تر

قامونو پورې دټولو تګلاره غلطه شي ، نو ځکه له دې نه په نړۍ کې وراني خپور شي .

خو د دې پرخلاف کوم شیان چې انسان ته امن ، خوښي ، نیک مرغي وربخښلی شي هغه دادی چې داخلاقو ټه داسې اصول او قواعد په کار دي چې هغه دچادګټو په لحاظ ، نه بلکې دحق پر اساس جوړ شوې وي او هغه دتغیر او تبدیل وړ ونه بلل شي په ټولو معاملاتو کې په هغه عمل وکړی شي ، برابره خبره ده که هغه معاملات شخصي وي او که ټولنیز او ملي . که دسوداګرۍ سره اړیکه ولري اویا له سیاست، جګړې اوسولې سره ځرګنده خبره ده چې دارنګه اصول او قواعد موږ ته دالهي لاربنوونو څخه په لاس راتلی شي او په هغو باندې دعمل کولو یوازې هم دغه صورت دی اوبس ، او هغه داچې انسان دې په دې لاربنوونو کې دځه بدلون څخه لاس واخلي او دهغو پیروي دې پوره په پوره پرځان لازمه وګڼي .

۳:- *دانسانیت نظام* : داچې هغه دې دشخصي ، نسلي ، ملي او طبقاتي هدفونو پرځای دټولو انسانانو دبرابرې مرتبې او برابرو حقوقو په بنسټ اینبودل شوی وي ، نه په کې بې ځایه امتیازات وي نه کرکه او نفرت او نه جوړشوې تعصبونه .دځینو خلکو لپاره ځانګړي حقوق او دځینو لپاره بې بنسټه بندیزونه

لنډه دا چې په هغې کې هرچاته د پرمختګ او ښیرازۍ موقع په برخه وي او چې هغه دومره پراخه او ارت وي چې دځمکې دمخ ټول انسانان په هغې کې په برابرۍ سره شریکیدلای شي .

۴:- *نیک عمل* : یعنی هغه قوتونه او وسایل چې الله جل جلا له موږ ته راکړي هغه په سمه لاره او په پوره ډول استعمال کړی شي .

# پایله

درنو لوستونکو!

داڅلورشیان دتعمیر (ودانی) اساسات او بنستهونه دي زموږ دټولو نیکمرغي او ښیګنه په دې کې ده چې زموږ په مینځ کې دې دنیکو خلکو یوداسې منظم ټولګی موجود وي چې دتخریب (وراني) داسبابو دبندولو او دتعمیر (ودانی) دعواملو د پیداکولو هلې ځلې وکړي که دغه کوښښ او ستړې ستوماني بري ته ورسیدې او د دې هیواد استوګن په سمه لار روان شول نو الله جل جلا له هیڅ کله داسې بې انصافه نه دی چې هغه به خامخا دخپلې ځمکې انتظام ددې ځای داستوګنو څخه بیرته واخلي او بل چاته به یې وسپاري

خو که الله (ج) دې نه کړې دغه کوښښ ځای ونه نیولو نو موږ نه شو ویلی چې زموږ او ستاسې او دځمکې د نورو استوګنو پای اوعاقبت به څه وي

## دپیل خبرې

په عام ډول دجهاد لفظ په انګلیسي ژبه کې په سپیڅلې جنګ (Holy War) سره تعبیرېږي له ډيرې پخوا څخه يې شرح اوتوضيح په داسې عباراتو صورت موندلی چې اوس مهال یې داسلام دښمن ځواکونه دلیونتوب جوش بولي ددې خبرې په اوریدلو سره سړی بل فکر کوي او یوه داسې نقشه سترګو ته انځور کیږي او هغه داچې یوه ډله وګړي چې دګڼو ږيرو ببرو ویښتانو اود سرو سترګو څښتنان دي توري يې راویستلي او دالله اکبر نارې وهي او مخته درومي چېرته هم چې کافر وينې پرغاړه يې توره ږدي او ورته وايې ژر کوه کلمه ووايه او که نه سر دې غوڅوم

د اسلام دښمنان دغسې کارتونونه رسموي او تر لاندې يې په څرګندو الفاظو داسې لیکي ( بیا ددې ملت له تیرو افسانو څخه د وینې بوی رازي ) ډيره د حیرانتیا خبره ده چې د دغو کارتونونو رسامان او نقاشان هغه وګړي دي چې په پرله پسې توګه څو پیړۍ په لوړه کچه په دغه نامقدس جنګ (UnHoly War) کې اخته دي داپخپله دهغه چا تصویر دی چې داقتدار او پیسو وږې دي هر رنګ وسلې ته لاس وړي دوی هغه داړه ماران او غله دي چې دنړۍ دبې وسه ملتونو پر شتمنيو یرغل کوي دهغوی مارکیټونه ،خام مواد ، کانونه او څمکې ترخپلې ولکې لاندې راولي دهغوی جنګ اوجګړه دالله عزجل په لار کې نه بلکې دخیټې او دهوی او هوس لپاره ده دهغوی په نزد په یو ملت دحملې او تعرض دجواز په خاطر همدومره بس ده چې دهغوی په خاوره کې کانونه ، زیاتې غلې دانې ، نعمتونه ، ګاز ، تیل او یا د پخو موادو دخرڅلاو لپاره بهترین باز ا رو نه دي نو د زور

، فریب او دوکې له لارې یې تسخیروي او تر خپل واک لاندې یې راولي او که چېرته نور هیڅ بهانه نه وي د دوی لپاره همدومره کفایت کوي چې ووایې دغه هیواد زموږ دمستعمرې په څنګ کې پروت دی اوس غواړو چې تر خپلې ولکې لاندې یې راولو . هغه څه چې موږ بیان کړي دتیروخت کیسه ده البته دښکیلاکګرو کړه وړه دي چې دنړۍ والو تر ستر ګو تیرېږي داسیا ، افریقا ، اروپا او امریکا تر دې پورې چې دځمکې داسې هیڅ برخه نه ده پاتې چې د دغو خونړیو ناپاکو جګړو څخه خوندي پاتې وي البته ښکیلاکګرو په خپل بد پروپاګند او چالاکۍ سره داسلام او مسلمانانو تصویر خراب ترسیم کړی او پخپله د پردې ترشا ولاړ دي دبشري حقونو ، عدالت او انسانیت نارې سورې وهي له بلې خوا موږ هم دومره ساده ګان یو کله چې مو د دښمن په لاس زموږ جوړ شوی خونړی تصویر ولید دومره وارخطاشو ددې پر ځای چې دتصویر جوړونکو څېره وګورو د دې پرعکس مو له هغوی څخه دمعذرت په غوښتلو پیل وکړ چې صیب ! موږ په جنګ او جګړې څه پوهیږو موږ خو دعیسوي پاپانو او کشیشانو په څېر سوله غوښتونکي خلک یو او دیو څو مذهبي مراسمو لوري ته بلنه کوو زموږ له توري ، توپ او ټوپک سره څه کار دی ؟ موږ یوازې دومره نیمګړتیالرو چې که چېرې یو څوک پر موږ تعرض وکړي موږ دهغوی په ځواب کې لاس پورته کوو او اوس مو ور څخه توبه ویستلې ده ستاسو د لاریات ډاډ په خاطر مو جهاد او توره رسماً منسوخه اعلان کړې او س دجهاد مفهوم یوازې دژبې او قلم له کوښښ څخه عبارت دی . دتوپ او ټوپک استعمال دحکومت کار او د ژبې او قلم استعمال زموږ دنده او مسؤلیت دی .

## دجهاد په هکله دسؤ تفاهم لاملونه

دا د سیاسـي دسیسـو خبـره وه اوس مـوږ نومـوړي موضـوع پـه علمـي تـوګه څیـړو او لاملـونه یـې په نښـه کـؤو . چې لـه کبله یې دفـی سبیل الله جهاد حقیقت نه یوازې دنامسلمانو وګړو لپاره بلکې پخپله مسـلمانانو تـه یـې هـم سـتونزې راولاړې کـړې دلـته مـوږ د دوه رنګـه اساسي سوء تفاهماتو سره مخامخ کیږو .

لومړی : دا چې اسلام مـو دمـذهب په توګه پیژندلی چې په عامه توګه یې خلک ورڅخه یادونه کوي .

دویـم :- داچې مسـلمانان د داسې ملت په توګه پیژندل کیږي چې هلته همدغـه ناکـاره ویـناوې اسـتعمال شـوې او د یـو وحشـي خونـړي قـام نسبت ورته کیږي ددغو دوو سؤ تفاهماتو لامله نه یوازې دا چې دجهاد مسـئله بلکې پـه مجموعـی تـوګه یـې داسـلام نقشـه بدلـه کـړې ده او د مسلمانانو بشپړ حیثیت یې ترګوابښ لاندې نیولی دی .

مـذهب پـه عامـه اصـطلاح کـې یـوازې دانـه دی چې ګوا کـې دڅو عقایـدو عـباداتو او مراسـمو مجمـوعه ده د دغـه مفهـوم لـه مخـې بـایـد دمـذهب دایـره دشخصـي ژوند په محدوده کې رالنډه کړی شي . تاسې کولی شي هره عقیده چې مـو خوښـه وي غـوره یې کړئ او هر عبادت چې مـو خوښ وي سرته یې ورسـوئ .کـه دخپـل دیـن په خاطر جذبه او ولـوله لرئ کولی شئ پـه نړۍ کې دخپلې عقیدې دخپرونې لپاره سفر وکـړئ او دنـورو عقـیدو لـه ښښتنانو سره پـه بحث او خبـرو اترو لاس پـورې کـړئ . د دې کـار دسـرته رسـولو لـپاره تـورې تـه څـه اړتـیا ده ؟ ایاتاسـو غـواړئ د تورې پـه زور خلـک مسـلمان کـړئ ؟ دلته داپوښتنه ارو مـرو راولاړیـږي هـرکله چې تاسـو اسـلام پـه عـام ډول دیـومذهب پـه

توګه وپيژاند كه واقعاً همداسې وي نو بيا دجهاد ثبوت امكان نه لري په همدې توګه دملت مفهوم دادی چې دبيلو بيلو جنسيتونو يوه ډله HomogeneousofMen چې د اساسي چارو پر بنسټ سره يوځای شوې او له نورو ډلو ټپلو څخه يې امتياز ترلاسه كړی هغه ملت چې دهمدغه مفهوم پر اساس يې دبنسټ ډبره ايښودل شوې او سي هغوی د دوو لاملونو پر بنسټ توري ته لاس ورغځوي .

لومړی : داچې دهغو په روا حقوقو بل څوک تيری وكړي

دويم : داچې دبل چا دحقوقو دغصب په خاطر په بل چا تجاوز وكړي په لومړي صورت كې دجنګ په خاطر اخلاقي جواز شتون لري اګر كه دهندو مذهب ځينې مشران دغه كار هم ناجايز بولي البته دويم صورت له ځينو دكتاتورانو نه پرته يې هيڅوک روانه ګڼي تر دې پورې چې دبرتانيې ، فرانسې او امريكا سياسي چارواكي يې دجواز قايل نه دي خو دوی په نورو بهانو او دسيسو ملتونه او هيوادونه تسخيروي .

## دجهاد حقيقت

هر كله چې اسلام مذهب او مسلمان يوملت دی په دغه صورت كې دجهاد مفهوم ته چې داسلام په رڼا كې غوره ګڼل شوی دپای ټكی ايښودل كيږي .

حقيقت دادی چې اسلام دكوم مذهب او ملت نوم نه دی په اصل كې اسلام يوه عقيده او انقلابي تګلاره ده چې غواړي دټولې نړۍ وضعيت ته بدلون وبخښي او دخپلې عقيدې او كړنلارې په برابر يې له سره ودان كړي . اسلام ديوانقلابي او نړۍ وال خوځښت InternationalRevolutionParty نوم دی. جهاد انقلابي مبارزه

Revolutionary Struggle او دالله په لار کې دټولو څواکونو مصرفول دي چې هدف ته د رسیدلو په لار کې اسلامي جماعت ورڅخه کار اخلي اسلام هم دانقلابي خوځښتونو په شان له ټېرو مروجو عباراتو څخه یوه ځانګړي اصطلاح خپل ځان ته غوره کوي ترڅو یې انقلابي عقیده له نورو عقایدو څخه امتیاز حاصل کړي .

دجهاد عبارت هم د دغې ژبې ځانګړې اصطلاح ده . داسلام سپیڅلي دین دحرب او د دې په څیر نور الفاظ چې دجنګ (War) مفهوم افاده کړي په قصدي توګه پرې ایښې دي و دهغې پرعوض یې دجهاد لفظ چې د مبارزې Struggl له مفهوم سره ترادف لري کار ولی او له دې څخه وړاندې یې دغه مفهوم داسې ګڼلی دی To exer one's utmost (endeavor in promoting a cause) یعنې دخپل هدف دحصول په خاطر دټولو کوښښونو په کار اچول.

دلته یوه پوښتنه راپور ته کیږي چې اسلام څنګه پخوانی عبارت پرې ایښی او دغه اصطلاح یې غوره کړې ده ؟ ځواب یې دادی چې دجنګ اصطلاح دملتونو ،قامونو او دولتونو د کارلپاره ترننه پورې استعمالیږي . هغه خلک او ډلې چې دخپلو ځاني اهدافو دتحقق په خاطر په جګړې لاس پورې کوي دداسې جګړو اصلي محرک یوازې شخصي او ټولنیزې ګټې وي چې هلته دهیڅ عقیدې اواصولو د ساتنې نښه په سترګو نه لیدل کیږي .

داچې داسلام شخړه داسې نه ده له همدې کبله یې د دداسې الفاظو له استعمال څخه ډډه کړې . داسلام پروړاندې دیوقام اوملت ګټې په نظر کې نه دي نیول شوې او له هغوی سره یې هیڅ اړیکه نشته چې یو سلطنت دې پرځمکه واکمن واوسي .اسلام دبشریت دفلاح او خلاصون په خاطر یوه ځانګړې عقیده او کړنلاره ده . ددغې

عقیدې مخالفین چې هرچېرته وي له ښنو یې غورځوي برابره خبره ده چې یوملت وي او که کوم هیواد ، داسلام هدف دخپلې عقیدې او مسلک په برابر دحکومت تشکیلول دي پرته له دې نه چې داپه نظرکې وساتل شي چې توغ یې څوک پورته کوي او دچا واکمني ته د پای ټکی ږدي

ددې پاڅون هدف دا نه دی چې دځمکې واکمني له یوه لاسه بل ته انتقال کړي بلکې اصلي موخه یې داده چې ملتونو ته ازا دي ور په برخه کړي او دظلم له پنجو څخه یې وژغوري تر څو انسان بریالی او داسلام دځلانده پلوشو څخه ګټه واخلي.

دغه مقصد ته درسیدلو په خاطر له ټولو ځواکونو څخه کار اخلي چې داسلامي پاڅون لپاره اغیزمن ثابتیدلی شي له دغه ځواک څخه دکار اخیستلو په خاطر ورته هراړخیزه نوم جهاد ورکړی شو.

دژبې اوقلم په وسیله په خلکو کې فکري بدلون راوستل جهاد دی دتورې په زور دیو استبدادي ظالمانه نظام داقتدار ړنګول او دیو عادلانه نظام ټینګښت او په دغه لار کې دپیسو لګول او ځاني هلې ځلې هم جهاد شمیرل کیږي.

## دفی سبیل الله لازمي قید

د اسلام جهاد یوازې جهاد نه بلکې د فی سبیل الله قید یې لازمي عنصر دی دغه عبارت هم داسلام ځانګړې اصطلاح پورې اړیکه نیسي چې مخکې مو ورته اشاره وکړه چې لفظي ژباړه یې دالله په لار کې دی.

ځینو خلکو ته اشتباه پیداشوې او فکر کوي چې فی سبیل الله جهاد له دې څخه عبارت دی چې د زور او قوت له لارې خپله عقیده

په خلکو وروتپي داځکه چې د داسې تنګ نظرو خلکو په ذهن او دماغ کې د الله د لارې مفهوم له دې نه پرته په بل شان نه ځائيږي . مګر داسلام په ژبه کې دغه لفظ پراخه مفهوم لري . هر هغه کار چې هدف يې دخلکو فلاح او ټولنېزه ښيګڼه وي او سرته رسونکي يې هيڅ يوه دنيوي ګټه په نظر کې ونه نيسي بلکې مقصد يې يوازې او يوازې دالله پاک رضا او خوشالي وي اسلام هغه د في سبيل الله په نوم يادوي

دمثال په توګه تاسو په دې نيت په خيرات لاس پورې کوي چې هدف مو ورڅخه مادي او اخلاقي استفاده وي ستاسو دغه خيرات في سبيل الله نه شميرل کيږي البته که چېرې ستاسو نيت له يو بې وزله انسان سره مرسته او د الله رضاحاصلول وي في سبيل الله ګڼل کيږي نو پر دې اساس دغه اصطلاح دهغو کړو وړو لپاره استعماليږي چې په اخلاص او له ټولو نفساني اغراضو څخه پاکه او سپيڅلې اوسي .

دانساني ژوند وروستی هدف دکايناتو د ښښتن له خوښې څخه پرته بل څه نه دی د جهاد لپاره د في سبيل الله قيد ددې په خاطر انتخاب شوی چې يو څوک د ژوندپه ډګر د بد لون او د يو نوي نظام د ټينګښت په مقصد په پا څون لاس پورې کوي چې په دغه ستره سر ښندنه کې هيڅ نفساني هدف و نه لري هيڅکله يې هدف دانه وي چې کسری او قيصر له واکه ګوښه او پخپله کسری او قيصر جوړ شي دهغه دمبارزې په اهدافوکې به د مال ،شهرت اود جاه او جلال دلاسته راوړلو هيڅ تصور نه وي دهغه دټولو سرښندنواو کوښښونو يواځېنی مقصد به داوي چې د الله عز وجل دبندګانو په مېنځ کې يو عادلانه نظام ټينګ اوپه دغه کار کې يې دالله عزوجل له رضا اوخوښې څخه پرته بل هيڅ مطلب شامل نه وي قرآن عظيم

الشان فرمايي: الذين امنوا يقاتلون في سبيل الله والذين كفروا يقاتلون في سبيل الطاغوت. دنساء سورة ۷۶ايات.ژباړه :- مؤمنان دالله په لار کې جنګ کوي او کافران د شيطان او طاغوت په لاره کې.

دطاغوت لفظ د طغيان دمصدر څخه دی چې له حد څخه د تجاوز او تيرې مفهوم افاده کوي هغه سمندرچې څپې يې له خپلې اندازې څخه راپورته شي تاسو وایاست چې سمندر طغياني شوی. په همدې توګه هغه انسان چې له خپل مشروع او روا حد څخه تيری وکړي او ددغه هدف لپاره وسلې ته لاس وغځوي تر څو دانسانانو خدای جوړ شي او يا له خپلې برخې زياته ګټه واخلي. ددغه سړي دغه کار دطاغوت عمل او جګړه يې د طاغوت په لاره کې ده. دده په مقابل کې دالله عزوجل په لار کې جنګيدل دادي چې مقصد يې دقانون او عدالت تامين پخپله هم دالله عزوجل اطاعت ته سر ښکته کړي او په نورو خلکو هم دالله اطاعت ومني قرآن عظيم الشان همدغه مطلب داسې روښانه کوي. [تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ] (القصص۸۳ژباړه : - داد اخرت کور موږ يوازې هغو خلکو ته ورکړو چې په ځمکه کې د لويې او فساد هڅې نه کوي او اخرنۍ برې د پرهيزګارانو په برخه دی.

وروستنۍ برې يوازې هغه چاته په برخه کيږي چې له الله عزوجل څخه ويريږي په يو حديث شريف کې راغلي دي چې يوسړی له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه وپوښتل چې دالله په لارکې دجنګ مفهوم څه شی دی؟ يوسړی دمال او شتمنۍ په خاطر په جګړې لاس پورې کوي بل سړی دشهرت لپاره جنګيږي بل سړی دعداوت او شخصي دښمنۍ اويا دملي حمايې داحساس پر اساس جنګيږي. د دوی له جملې څخه کوم يو في سبيل الله جنګ دی؟ رسول الله صلی

الله علیه وسلم ورته په ځواب کې وویل . دغه یو هم فی سبیل الله نه دی فی سبیل الله جنګ هغه دی چې دالله د کلمې د لوړتیا په خاطر وي په یو بل حدیث کې راغلي دي چې که چېرې یوڅوک له دښمن سره په جګړه لاس پورې کړې او په زړه کې یې داوښ تړلو رسۍ وي ثواب یې ضایع او برباد شو الله تعالی یوازې دهغه چاعمل قبلوي چې د هغه جلت عظمته درضا په خاطر وي له هغه څخه یې هیڅ رنګ شخصي او یا ډله ئیزې ګټې په نظر کې نه وي . له همدې کبله د فی سبیل الله قید دجهاد لپاره داسلام په رڼا کې خاص ارزښت لري . تشې هلې ځلې ، محنت او خواري په دنیا کې هر څوک سرته رسوي او هریو دخپل هدف په خاطر خپل ځواکونه په کار راولي . البته مسلمان دیوې ډلې نوم دی - چې دهغه انقلابې مفکوره به داوي چې خپل ځان ، مال او هرڅه به په لګښت رسوي او د نړۍ له سرکښو ځواکونو سره به په جګړه لاس پورې کوي تر څو مستکبر ځواکونه په ګونډو او دالله قانون په ځمکه کې جاري کړی شي .

له دغې لنډې څېړنې وروسته غواړم دفی سبیل الله جهاد په مفهوم کې چې داسلامي انقلاب کومه بلنه ده هم تشریح کړم تر څو په اسانه توګه پوه شو چې ددغه ضرورت هدف څه شی دی ؟

# داسلامي انقلاب پیلامه

داسلامي پاخون پیلامه په لاندې توګه ده. الله عزوجل فرمايي [يَاأَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ] (البقرة ۲۱ ژباړه: ای خلکو! دهغه رب ستاینه او عبادت وکړئ چې تاسې او له تاسې څخه وړاندې تول خلک يې پيدا کړي دي.

ستاسې دخلاصون هيله يوازې په همدې ډول کيدی شي داسلام دسپيڅلې بلنې خطاب کاريګرو ، کروندګرو ، څمکوالو او د فابريکو څښتنانو ته متوجه نه دی بلکې ټول انسانان يې مخاطب ګرزولي دي دالله عزوجل خطاب او وينا انسان ته د انسانيت له امله دی او ورته فرمايي ؟ که تاسې له الله عزوجل نه پرته دبل چا په طاعت او بندګی کې بوخت ياست هغه پريږدئ که چيرې دتاسو په دماغ او فکر کې پخپله دخدايي ادعاوي له خپل دماغ څخه يې لرې کړئ داڅکه چې په بل چا د خپلې بندګی منل او ستاسو په وړاندې دخلکو دسرونو ښکته کول هيڅکله هم ستاسو حق نه دی تاسې ټول بايد دالله عزوجل بندګي وکړئ او دهغه جلت عظمته په بندګی کولو کې يو شان اوسئ قران عظيم الشان دغه مطلب ته داشارې په ترڅ کې فرمايي: [قُلْ يَاأَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ] (آل عمران د ۶۴ ايات برخه ژباړه: ای محمد (ص) ووايه چې ای اهل کتابو! راځئ له موږ سره يوه خبره ومنئ چې زموږ او ستاسې ترمينځ يو برابره او هغه دا چې پرته له يو الله څخه به دبل چا عبادت نه کوو له هغه سره به هيڅ شی شريک نه نيسو او نه به څينې زموږ څينې نور پرته له الله څخه باداران نيسي)

داؤ دنړی وال او هراړخيز انقلاب شعار هلته چې قران فرمايي (ان الحکم الالله) د يوسف دسورة برخه ۳۹ ايات ژباړه: واکمني يوازې د يو الله ده. يعنې هيڅوک حق نه لري چې پخپله دانسانانو حکمران شي او له خپلې غوښتنې سره سم پرې حکم وچلوي او د امر او نهې قوانين جاري کړي دژوند په چارو کې په مطلق ډول انسان شريکول او هغه ته خپل واک سپارل په حقيقت کې په الوهيت کې دهغه شريکول دي همدغه خبره په نړۍ

کې دفساد اصل او بنسټ دی دخلکو د انحراف یواځینی علت دادی چې خلکو الله عزوجل هیر کړی دی چې په نتیجه کې دخپل ځان حقیقت هم هیروي چې په پای کې ځینې خلک، کورنۍ او یا ډلې په پټه او یا په ښکاره توګه دالوهیت دعوی کوي او د وسلې داستعمال په زور له خلکو څخه بده استفاده کوي او د خپل ځان بندګان یې ګرځوي له بلې خوا د دغې خدای هیرونې او خپل ځان هیرولو نتیجه دا کیږي چې ځینې خلک د زور او رو الوهیت او خدایي مني او د هغوی حق یې بولي چې هغوی فرمان صادر کړي او دوی یې پرې اندې داطاعت سرونه ټیټ کړي هم دغه د ظلم، فساد او د ناروا ګټې اخیستنې (استثمار) بنسټ دی چې په لومړي پړاو کې یې اسلام محکوموي او د له منځه وړلو په خاطر یې غرېبورته کوي او وایې [وَلَا تُطِيعُوا أَمْرَ الْمُسْرِفِينَ] (الشعراء ۱۵۱) [الَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ] (الشعراء ۱۵۲. ژباړه: او له پولو نه داوښتونکو خلکو حکم مه منئ دهغو چې په ځمکه کې فساد کوي او هیڅکله روغ کارنه کوي. په بل ځای کی داسې فرمایې وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوَاهُ وَكَانَ أَمْرُهُ فُرُطًا] (الکهف د ۲۸ ایات برخه ژباړه: او د هغه چا مننه او اطاعت مه کوه چې دهغه زړه مو له خپل ذکر نه غافل کړی، په خپلو خواهشاتو پسې روان او د ژوند کار یې له پولې وراوښتی دی. په بل ځای کې ارشاد دی (أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ] (هود ۱۸) [ الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا ] (هود ۱۹ ژباړه واورئ چې پر ظالمانو دالله لعنت دی پر هغو ظالمانو چې دالله له لارې خلک منعه کوي او هڅه کوي چې کږه یې خلکو ته وړاندې کړي په بل ځای کې الله عزوجل له خلکو پوښتنه کوي؛ أَأَرْبَابٌ مُتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ] (یوسف ۳۹). ژباړه: خواره واره بادارانښه دي او که زورور الله ۶ که چېرې یوه الله ته غاړه کښېنږدئ یوه شی چې دغه کوچني او د روغږن خدایان تاسو ته نجات نه شي درکولی هغوی به ارو مرو په یو ډول پر تاسو برلاسی حاصلوي او په فساد به لاس پورې کوي. قرآن عظیم الشان هم دغه مطلب ته داشارې په ترځ کې فرمایې (قَالَتْ إِنَّ الْمُلُوكَ إِذَا دَخَلُوا قَرْيَةً أَفْسَدُوهَا وَجَعَلُوا أَعِزَّةَ أَهْلِهَا أَذِلَّةً وَكَذَلِكَ يَفْعَلُونَ] (النمل ۳۴). ژباړه: ویې ویل په یقیني ډول پاچایان چې کله هم په زور کوم کلي ته ننوځي نو

ورانوي يې او عزتمن خلک سپکوي هو! همدا يې کړنه وي په بل ځای کې فرمايي: [وَإِذَا تَوَلَّى سَعَى فِي الْأَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ] (البقرة ۲۰۵) ژباړه: او کله چې ستا له مخې ولاړ او يا واکمن شي نو ټوله هڅه يې همداوي چې په ځمکه کې فساد جوړ، کښتونه او نسلونه تباه کړي او الله پاک فساد نه خوښوي.

دلته د زيات تفصيل فرصت نشته په لنډه توګه غواړم چې ستاسو په ذهن کې داخبره کښينوم چې د توحيد او الله پالنې بلنه يوازې کومه مذهبي بلنه نه ده چې په عامه توګه يوازې ديني عقايد بيان شي بلکې په حقيقت کې دغه ديو ټولنيز انقلاب او اوښتون SocialRevolution بلنه او اعلان هم دی. په دغه صورت کې دغه دعوت په مستقيم ډول په هغو طبقو ګوزار دی چې د مذهب او دين په جامه کې خپل ځان د راهب او مذهبي پېشوا د سياست په جامه کې پادشاه، حکمران، قبيلوي مشر او په اقتصادي لباس کې يې خپل ځان د پانګوال او ځمکه وال په توګه مطرح کړی او ټول وګړي يې د خپل امر او فرمان تر ولکې لاندې راوستي وي.

په دې توګه له الله نه پرته باطل خدايان ځان راڅرګندوي او له ټولې نړۍ نه د خپلو طبيعي او طبقاتي حقوقو پر بنسټ د اطاعت او بندګۍ غوښتنه کوي او په ډاګه يې اعلانوي چې. (مالکم من اله غيری) يعنې: ستاسو لپاره له مانه پرته بل معبود نشته او يا (انا ربکم الاعلی) يعنې: زه ستاسو لوی واکمن يم او يا (انا أُحی واميت) يعنې: زه ژوندي کول او مړه کول کوم. او يا (من اشد منا قوة) يعنې: له مونږ نه څوک ډير ځواکمن دی.)

په ځينو وختونو کې دخلکو له ناپوهۍ نه په ګټې اخيستنې سره يې خپل ځانونه مصنوعي خدايان او بوتان جوړ کړي وي تر څو په دې توګه د خپل فريب او چل پر بنسټ د الله (ج) د بندګانو حقونه غصب کړي او خپلې دروغژنې خدايې ته پياړوتيا وروبخښي. له همدې امله

داسلام بلنه دکفر ، شرک ، او بت پالنې پرخلاف ده او په مستقیم ډول دباطلو ځواکونو دمقاصدواو اهدافو سره په ټکر کې قرارلري.

هرکله چې د وخت پیغمبر د (یاقوم اعبدوالله مالکم من اله غیره یعنی: ای ځما قامه! تاسو ته له الله نه پرته بل معبود نشته . اواز پورته کړی نو بې له ځنډه يې ټول خاین طبقات مخالفت ته تیار شوي داځکه چې دغه اواز یوه مابعد الطبیعي Metaphysical Proposition قضیه نه وه بلکې د یو ټولنیز اوبنسټون او بدلون اعلان ؤ او له لومړي وخته یې دسیاسي ولولو بوی احساس کیده .

## داسلام دانقلابي دعوت ځانګړتیاوې .

بېله شکه چې ټول پیغمبران انقلابي شخصیتونه ؤاو داسلام ستر پیغمبر حضرت محمد صلواة الله وسلامه علیه ستر انقلابي قاید ؤ. البته هغه امتیازي کرښه چې د نړۍ د نورو انقلابي زعامتونو او پیغمبرانو تر مینځ بیلوونکې نښه جوړوي. هغه دادی سره له دې چې دنړۍ نور انقلابي رهبران به هم بنایي بنه نیت ولري البته هیڅکله يې عدل او برابري نه دی رامینځته کړې یاخو یې په خپله د مستضعفو پر ګنو له مینځه سر راپورته کړی او یا یې له دغې طبقې خپله تګه اعلان کړې او راپورته شوي نتیجه داشوې چې یوې طبقې ته د حقارت او نفرت په سترګه کتل شوي اوله بلې ډلې حمایه او دفاع شوې هغوی چې د ظلم او تیري خواب په ظلم او تیري سره ورکړی هغوی ته دیو ټولنیز معتدل او متوازن نظام تجویز چې له غیچ اخیستنې ، کینې او دښمنۍ ځخه پرته وي ممکن په سترګو نه ښکاریده چې په هغه کې ټول خلک ارام او اسوده ژوند ولري.

ددې پرعکس پیغمبرانو چې څومره کړاونه ګاللي دي او څومره ظلم او تیري چې ددوی په پېروانو ترسره شوې خو له دې سره سره یې هیڅکله په پالیسي کې شخصي احساساتو او اهدافو ته ځای خالي نه کړ بلکې د الهی لارښوونو په رڼا کې یې مستقیمه لاره ونیوله او خپلې دندې او مسؤلیتونه یې سرته ورسول څرنګه چې الله عزوجل له

بشري عواطفو څخه پاک او لوړ دی او د بشري پاتکیو له هیڅ یوې طبقې سره څه ځانګړی پیوند او تړون او له هیڅ طبقې او له ډلې سره څه شخصي دښمني نه لري. د همدغه واقعیت او الهي لارښوونو په رڼا کې پیغمبران علیهم السلام سره له دې نه چې ژوند تولې چارې یې په بشپړ عدالت او انصاف سره پرمخ وړلې د عامو وګړو رفاه او هوساینه یې هم په نظر کې نیوله او د تل لپاره یې د تولو انسانانو د فلاح، بري او هوساینې پیغام له ځان سره درلود.

پیغمبرانو غوښتل تر څو په تولنه کې داسې یو نظام په پښو ودروي چې د هغه په سیوري کې هر شخص د خپلو روا حقونو په چوکاټ کې ژوند وکړي او له خپلو قانوني حقوقو څخه برخمن وي او د خلکو خپل مینځي اړیکې او د فرد او تولنې د اړیکو ترمینځ یوه بشپړه موازنه رامینځته شي.

پر همدغه بنسټ د پیغمبرانو انقلابي خوځښتونه هیڅکله هم د طبقاتي شخړو (Cass War) ښکار شوي نه دي. هغوی د تولنې نوې تشکیل، Social-Re-Construction په دې توګه ترتیب نه کړ چې یوه طبقه پر بلې طبقې مسلطه شي بلکې د دغه کار د سرته رسولو لپاره یې عادلانه لاره غوره کړه چې په هغه کې تولو خلکو ته د مادي او روحاني پرمختګ یو شان شرایط برابر شي.

## دجهاد ضرورت او هدف

ما ته به ډیره سخته وي چې په دغه لنډه مقاله کې د تولنیز نظام تول تفصیلات Socialorder چې اسلام یې په پام کې لري ستاسې په مخ کې وړاندې کړم هیله لرم چې په نورو وختونو کې د دې تفصیل څرګند کړم. دلته چې د کومې موضوع وضاحت مې غوښت هغه دا ؤ چې اسلام یوازې یوه مذهبي عقیده او د څو عباداتو مجموعه نه ده بلکې اسلام یو تولنیز نظام هم دی چې غواړي د نړۍ تول ظالمانه او د

فساد نظامونه له مونږ نه راوباسي او پر ځای یې داسلام اصلاحي پروګرام چې د بشریت دفلاح او بري ضامن دی جاري کاندي
اسلام د تخریب او تعمیر او داصلاح او انقلاب په دغه پروسه کې کومه ډله او یا ځانګړی ملت نه بلکې ټولې انساني او بشري ټولنې ته دعوت ورکوي په همدې توګه اسلام هغو طبقاتو، ظالمو او خاینو ډلو ټپلوته که پادشاهان او ولس مشران هم دي خپل پیغام و ررسوي چې راشئ د خپلو روا حقه حقوقو په حدودو کې ژوند وکړئ چې الله جلت عظمته تاسو ته ټاکلې دي که چېرې تاسو د عدل او حق نظام ومانه په امن او سلامتیا کې به ژوند تر سره کړئ دلته له هیڅ انسان سره دښمني نه ترسره کیږي دلته که چیري دښمني ده له ظلم او تیري او له فساد او بداخلاقي سره ده دلته له هغه چاسره په دښمنۍ لاس پوري کیږي چې له خپل طبیعي حق څخه تیری کوي. هغه څوک چې دغه دعوت ومني که د هرې طبقې ، نسل ملت او هیواد پورې اړیکه ولري د برابرو حقوقو او حیثیت سره داسلامي ټولګي غړی ګڼل کیږي
په دې ترتیب یو نړیوال انقلابي ټولګی رامینځ ته کیږي چې قران عظیم الشان یې دالله حزب بولي او دویم نوم یې اسلامي جماعت او یا اسلامي امت اېښودل شوی دغه ټولګی رامینځته شوی چې خپل هدف ته د رسیدلو لپاره جهاد پیل کړي ددې ټولګي دجوړیدو مقصد دادی چې دغیر اسلامي نظام واکمنۍ ته د پای ټکی کښیږدي او پرځای یې د معتدلو او برابرو اصولو حکومت ټینګ کړي. چې په قران کریم کې یې په هراړخیز لفظ (کلمة الله) سره تعبیر شوی که چېرې دغه ټولګی داسلامي حکومت دمینځته راوستلو لپاره په هلو ځلو او کوښښونو لاس پورې نه کړي له شکه پرته دتاسیس هدف یې بابیزه او عبث ګرزي داځکه چې دغه ټولګی دبل یو هدف او مقصد په

خاطر نه دی رامینځته شوی او له دغه جهاد او هلو ځلو پر ته بله لار په مخ کې نه لري .قران کریم ددې اُمت دتاسیس اوجوړښت هدف داسې بیانوي [کُنْتُمْ خَیْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ (آل عمران د ۱۱۰ ایات برخه) ژباړه : تاسې دامت هغه غوره ډله یې چې دخلکو دښیګڼې لپاره راوېستلی شوې یاست ځکه چې دنیکۍ په لوړ بلنه کوي او د بدۍ مخه نیسئ او په الله ایمان لرې .

دغه جماعت یوازې واعظان Preachers اود مذهبي چارو د تبلیغ مبشرین Missionaries نه دي بلکې دالله د سرښندونکو لښکرو ټولګی دی هلته چې قرآن عظیم الشان یې د مینځته راتلو هدف داسې روښانه کوي . (( لتکونوا شهداء علی الناس ) : ژباړه :- تر څو تاسو په ګرد بشریت ګواهان واست

دهغه منصبی فریضه او رسالت د ظلم ، زیاتي ، فتنو ، فساد بداخلاقۍ، تیري او خیانت د ټولو ډولونو له مینځه وړل او په همدې توګه د (ارباباً من دون الله ) یعنې له الله عزوجل نه پرته دباطلو اربابانو د اقتدار او واکمنۍ تخت نسکورول او د بدیو پرځای د نیکیو استقرار او ټینګول دي . قران عظیم الشان دغه مطلب داسې بیانوي [ وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ ] (الأنفال د ۳۹ ایات برخه) ژباړه :- او تر هغه ورسره وجنګیږئ چې فتنه له مینځه ولاړه او یوازې دالله دین واکمن شي . په بل ځای کې بې داسې فرمایلي إِلَّا تَفْعَلُوهُ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيرٌ] (الأنفال۷۳ ژباړه : که تاسې داسې ونه کړل نو په ځمکه کې به لوی فساد او فتنه راپورته شي . په بل ځای کې ارشاد دی [هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ

بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ] التوبة۳۳ .ژباړه : الله هغه ذات دی چې خپل استازی يې له ښوونې او حق دين سره ليږلی دی تر څو يې په ټولو دينونو برلاسی کړي که څه هم مشرکان ناخوښه وي .

له همدې امله ددې ټولګي لپاره دسياسي قدرت او دحکومت دچارو دواګو د لاسته راوړلو نه پرته بله چاره نه ليدل کيږي داځکه چې د تمدن فاسد نظام د فاسد حکومت پر اساساتو ولاړ وي او د تمدن صالح نظام ترهغه پورې ټينګيدی نه شي تر څو د مفسدو اوورانکارو لاس دحکومت له چارو څخه غوڅ او نيکان او مصلح وګړي دچارو واک په لاس کې ونيسي .

دنړۍ اوسنی وضعيت داسلامي ټولګي له مفکورې او هدفونو سره ضديت لري که چېرې دحکومت نظام د بلې مفکورې او ايديالوژۍ په محور وڅرخيږي هغه ټولګی چې خپله عقيده او مفکوره ريښتينې ګڼي دنورو مفکورو او نظرياتو دحکومت په سيوري کې دخپلې عقيدې او مفکورې سره يوځای ژوند نه شي ترسره کولی . دمثال په توګه که چېرته يو څوک دسوسيالستي مفکورې څښتن وي او وغواړي چې په انګلستان او فرانسه کې د سوسيالستي اصولو او قوانينو په رڼا کې ژوندسرته ورسوي په هيڅ صورت کې به دغه هدف ته ونه رسيږي داځکه چې د پانګوالـه نظام (کاپيټاليزم) اصول او د ژوند قوانين له حکومتي ځواک سره پرده واکمن دي او هغه يې له اغيزې څخه نه شي خلاصيدلی په همدې توګه که چېرته يو مسلمان هم د يو غير اسلامي نظام تر سيوري لاندې ژوند ترسره کړي او غوښتنه يې داوي چې د ژوندانه ټول اړخونه يې د اسلامي اصولو په رڼا کې ښايسته شې داکار هيڅکله امکان نه لري . داځکه هغه

قوانین چې دی یې باطل ګڼي هغه ټکسونه او مالیات چې دی یې حرام او ناروا بولي هغه معاملات چې ورته په جواز قایل نه دی په همدې ډول دژوند هغه تګلاره چې هلته فساد ترسترګو کیږي هغه تعلیمي اصلاحات چې دده له نظره مهلک او تباه کونکي په سترګو ښکاري داټول پرده او دده په کورنۍ داسې سیوری غورځوي چې په هیڅ صورت ورڅخه خلاصیدلی نه شي

په پای کې دې نتیجې ته رسیږو هغه څوک چې له خپلې ډلې سره پریوې عقیدې باور لري دخپلې عقیدې له طبیعي غوښتنو سره سم مکلفیت لري تر څو د خپلې عقیدې دمخالفې ایدیالوژۍ له حکومت سره په مخالفت لاس پورې کړي او دخپلې مفکورې پربنسټ دحکومت نظام پرپښو ودروي . داځکه چې که چېرې دده د عقیدې اوفکر مخالف حکومت دچارو واکي په لاس کې ولري په دې صورت کې نه شي کولی دخپلې عقیدې پر اصولو او قوانینو عمل وکړي . البته که چېرې په دغه لار کې هلې ځلې نه کوي او له غفلت څخه کاراخلي څرګنده دی چې هغه په حقیقت کې له خپلې عقیدې او مسلک څخه انحراف کړی . قرآن عظیم الشان فرمایي[عَفَا اللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَتَعْلَمَ الْكَاذِبِينَ] (التوبة۴۳) [لَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَن يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالْمُتَّقِينَ] (التوبة۴۴)ژباړه : ای پیغمبره ! الله درته عفوه وکړه ولې دې هغوی ته اجازه ورکوله ترڅو درته رېښتیني او درواغجن په ډاګه شوي وی . هغه کسان چې په الله او داخرت په ورځ ایمان لري هیڅکله به له تا نه اجازه ونه غواړي چې هغوی دې په خپلو سرونو او مالونو له جهادکولو څخه معاف کړی شي او الله ته پرهیزګاران ښه معلوم دي اجازه یوازې هغه کسان غواړي چې په الله

او داخرت په ورځ ایمان نه لري .) په دغه ایات کریمه کې قرآن عظیم الشان په صراحت سره فتوی ورکوي چې له یو ټولګي سره د ریښتینولۍ او وفا دارۍ معیار په شخصي اعتقاد کې دادی چې دخپلې عقیدې او مفکورې دحاکمیت او واکمنۍ په خاطر په خپل ځان او مال سره په جهاد لاس پورې کړي البته که چېرې دمخالفې ایدلوژۍ حکومت ته په ښه نظروګوري داکار ددې خبرې دلیل دی چې تاسې په خپله عقیده کې دروغژن یاست نتیجه به داشي چې په پای کې به ستاسې تش په نامه عقیده هم له مینځه ولاړه شي په لومړي سرکې که چېرې ستاسې دعقیدې او فکر مخالف حکومت په ناخوښه توګه ومنئ اوملا تړ یې وکړئ بیا به ورو ورو ورسره اموخته شئ تر دې پورې چې دغه کراهت او دزړه ناخوښي به ورسره په مینې واوړي په پای کې به کار دې نتیجې ته ورسیږي چې تاسې به پخپله دمخالف نظام د حمایې او ملاتړ په خاطر هلې ځلې کوئ او دخدمت مصدر به يې وګرزئ

ستاسې ځاني او مالي سربښندنې به ددې په خاطر ترسره کیږي تر څو داسلامي عقیدې پرځای غیر اسلامي عقیده پر ټولنې حاکمه وګرزي ستاسو ټول ځواک او استعداد به د اسلامي تګلارې په کمزوري کولو په لګښت رسیږي هر کله چې دغه پړاو ته ورسیږئ ستاسو او دکافرانو ترمینځ به داسلام دمنافقانه دعوی نه پرته بل څه امتیاز نه وي . رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په خپله مبارکه وینا کې دغه نتیجه په صراحت سره بیانوي : ( والذی نفسی بیده لتامرن بالمعروف ولتنهون عن المنکر ولتاخذن ید المسیئ ولتاطرنه علی الحق اطراً او لیضربن الله قلوب بعضکم علی بعضٍ اولیلعنکم کما لعنهم ) ژباړه : په هغه ذات سوګند چې ځما روح دهغه په لاس کې ده

تاسو به ارو مرو په ښو کارونو امر او له بدو چارو څخه به خلک منعه کوي او ارو مرو به د بدکاره انسان لاس له بدو کارونو نيسي . او ارو مرو به يې پر حق راټرخوي او که داسې ونه کړئ نو ارو مرو به ستاسې دځينو زړونه په ځينو نورو سره ووهي يعنې (له بدو خلکو به ستاسې زړونه متاثر کړي او ارو مرو به تاسې په لعنت او غضب اخته کړي . لکه چې بدکاران يې پرې اخته کړې وو .

## نړۍ وال انقلاب

ددغې څېړنې په کتنې سره به څرګنده شي چې داسلامي جهاد هدف دغير اسلامي حکومت له پښو غورزول او داسلامي Objective نظام ټينګول دي اسلام ددغه انقلاب په پښو درول په يو ځانګړي هيواد او يا په څو محدودو هيوادونو کې نه غواړي بلکې غوښتنه يې داده چې ددغه ځلانده پاڅون رڼا د نړۍ دټولو ګوټونو تياري روښانه کړي اګر که په لومړي پړاؤ کې داسلامي تنظيمونو پر غړو لازمه ده چې دخپلو هيوادونو په حکومتونو کې بدلون رامينځته کړي خو وروستی پړاؤ يې له يوه نړی وال انقلاب World Revolution څخه پرته بل څه نه دی

هغه عقيده او انقلابي مسلک چې د خپل قام او ملت دګټو لپاره کوښښ نه کوي بلکې د ټولې نړۍ دانسانانو د لوړو ګټو او منافعو په خاطر په مبارزې لاس پورې کوي دهغه فکر او نظر او لوړ نړيوال اهداف يوازې ديوقام او ملت په چاپيريال کې محصور نه دي بلکې دده دمسؤليتونو طبيعي غوښتنه يونړی وال انقلاب دی چې هغه بايد په نظر کې ولري . هغه د جغرافيايي پولو حدودنه پېژني دحق غوښتنه دادی چې که چېرې ديو غره او ياسمندر په څنډه کې پرحق او

سم په بل اړخ کې هم باید حق وجودو لري . د نړۍ هیڅ برخه او څنډه باید له مانه محرومه او بې برخې نه وي هر چېرته چې انسان دظلم او زیاتي افراط او تفریط په اور کې سوځي مرسته یې پرما لازمه او ضروري ده دغه فکر قرآن عظیم الشان په دغه مبارک ایات کې داسې بیانوي . ﴿ومالکم لاتقاتلون فی سبیل الله والمستضعفین من الرجال والنساء والولدان الذین یقولو ن ربنا اخرجنا من هذه القریة الظالم اهلها ﴾ دنساء سورة : ۷۵ایات .

ژباړه : او پر تاسو څه دي چې دالله په لار او د ناتوانو کړو شوېو سړیو ، ښځو او کوچنیانو دخلاصون لپاره جهاد نه کوئ هغوی چې وایې ای زموږ ربه ! موږ له دې کلي څخه وباسه چې اوسیدونکي یې ظالمان او تیري کونکي دي .)

اوس مهال سره له دې چې هیوادونه جلا پولې لري دبشري اړیکو تعامل دادی چې هیڅ یو هیواد خپله عقیده اصول او قوانین ترهغه دعمل ډګر ته نه شي راویستلی ترڅو ګاونډی هیواد هماغه اصول اوکړنلاره دخپلې لارې ډیوه ونه ګرزوي پردې اساس اسلامي ډلې او حزبونه دعامې اصلاح او د خپل ځان د ساتنې په خاطر له دې نه پرته بله چاره نه لري چې داسلامي نظام دټینګښت په خاطر په یوه ځانګړې سیمه اکتفاء وکړي .بلکې هغه ته به پیاوړتیا بخښي او د نړۍ نورو څنډو ته به هم دخپل دعوت لړۍ خپروي ترڅو دغه مسلک او تګلاره چې دفلاح ، بري او نیکمرغۍ ضامن ده قبوله کړی شي له بلې خوا که چېرې زیاته وسه ولري دغیر اسلامي حکومتونو پرخلاف توغ پورته کړي او له پښو یې وغورځوي او اسلامي حکومت یې پرځای ټینګ کړي .

داهماغـه تګلاره ده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم او له هغه نه وروسته راشدينو خليفه ګانو پـه مخکې نيولې وه .دعربو خاوره هغه ځمکه چې دلومړي ځل لپاره په کې اسلامي خوځښت پيل شُو ترټولو مخکې يې همدغه سيمه داسلامي حکومت تراغېزې لاندې راوستله لـه هغې نه وروسته پيغمبر صلوة الله وسلامه عليه ګاونډي هيوادونه دخپلې رېښتېنې عقيدې اصـولو تـه دعـوت کـړل هـرکله چې ددغـو هيوادونو پادشاهانو دالله درسـول اصـلاحي بلنه رد کړه له هغوی سره يې پـه وسلوال جهـاد پـيل وکـړ چې د تبوک غـزا ددغه سپيڅلي جهاد پيل ؤ .لـه هغـه وروسـته چې ابـو بکـر صـديق رضى الله عنه درسول الله صلى الله علـيه وسلم تروفاته وروسـته دخليفه په توګه وټاکل شو هغه د دؤو غيـر اسـلامي حکـومـتونو روم او فـارس پر خـلاف دجګـړې اعـلان وکـړ تـر هغـه وروسـته حضـرت عمـر فـاروق رضـى الله عـنه دغـه جګـړه دخـپل خلافـت پرمهال د بري تـر درشـله ورسـوله دايران ، روم ، شام او مصـر وګـړو پـه لومـړي سـر کـې دغـه اسـلامي جهـاد د عـرب قـام امپرياليستي اواستعماري پاليسي وګڼله هغوی ګومان کاؤ چې پخوا به خلکـو د بـل قـام دغـلام ګرز ولـو پـه خاطر پـه پاځون لاس پـورې کاؤ اوس هـم يـوه قـام دهمدغـه هدف پـه خاطر قيام کړی دهمدغه سؤ تفاهم لـه امله ددغـو سيمو خلـک د قيصر او کسری د بيرغ ترسيوري لاندې دمسلمانانو مقابلې تـه تيار شـول خـو کلـه چې يې داسـلام دانقلابي نهضت پـه اهدافـو پـوهه ترلاسـه کـړه او هغه داچې دغه غورځنګ کومه قامي غلـبه Aggressive Nationalism پـه پام کـې نـه لـري بلکې لـه ټولـو قامـي مصـالحو او اهدافـو څخـه سـپيڅلی دی يـوازې او يـوازې ديـو عادلانه نظـام داسـتقرار لـپاره مـبارزه کـوي حقيقـي مرام او مقصد يې دطبقاتي ، استبدادي نظام ټغر ټولول دي چې د کسری او قيصر په

بنه يې ولسونه راښكيل كړي پردې اساس خپله همدردي او اخلاقي مرسته يې له اسلامي خوځښت سره پيل كړه دكسرى او قيصر بيرغونه يې راكوز كړل كه چېرې به د زور له لارې دجګړې ډګر ته دمسلمانانو پرخلاف راوستل كېدل له جګړې سره به يې خپله علاقه نه ښودله

همدغه واقعيتونه ؤ چې مسلمانان په اريانونكو فتوحاتو او برياؤ لاس بري شول . دغه كار دغه زمينه او شرايط برابر. كړل چې ولسونو داسلامي حكومت د ټولنيز نظام د عملي څېرې په ليدلو سره په داوطلبانه ډول ددغه نړۍ وال خوځښت سره په څنګ كې ودريدل او ددغې لارې دسالارانو په توګه يې تبارز وكړ تر څو يې په نورو هيوادونو كې لوړ اهداف خپاره كړې .

## تيري كونكي او دفاع كونكي يو تربله سره متضاد دي

دتيرو مطالبو په رڼا كې موخر ګنده كړې وه او دغه حقيقت به تاسو ته په ډاګه شوى وي چې د جنګ او جګړې هغه اصطلاح چې په هجومي Aggressive او دفاعي Defensive سره نومول شوي په اسلامي جهاد يې اطلاق نه كيږي بلكې دجګړې دغه رنګ ويش له قبيلوي او سيمه ئيزو جنګونو سره سمون خوري داځكه چې دتعرض او دفاع كلمات قبيلوي او ملكي جګړو ته استعما ليدلى شي البته كله چې يو بين المللي سازمان يوه نظريه او نړۍ وال مسلك خلكو ته وړاندې كوي او ټولو ملتونو ته دانساني حيثيت پر بنسټ دعوت وركوي دهر ملت او قبيلې افراد دخپل مساوي حيثيت په ساتنې سره په خپل تنظيم كې جذبوي او يوازې دبل مسلك حكومت له ړنګو

غورځوي او دخپلې عقيدې او مفکورې حکومت ټينګوي او په دغه لار کې زياتې هلې ځلې کوي په دې حالت کې دتعرض او دفاع اصطلاح ګانو ته اړتيا نه پيښيږي او پوښتنه هم نه رامينځته کيږي که چيرې له ذکر شويو اصطلاحاتو ورتيرشو بيا هم د مدافعانه او تجاوز ګرانه جنګ ويش په اسلامي جهاد نه تطبيق کيږي اسلامي جهاد په خپل وخت کې هم تجاوز ګرانه او هم مدافعانه دی ، تجاوز ګرانه په دې مفهوم چې اسلامي نظم او جماعت دخپل مسلک په مخالفينو يرغل کوي او مدافعانه په دې خاطر چې دخپلو اعتقادي اهدافو د تطبيق په خاطر دحکومتي قدرت اوواک په لاسته راوړلو مکلف دی .

ديو تنظيم او جماعت مثال يو کور ته ورته نه دی چې له هغه نه دفاع صورت ونيسي حقيقت دادی چې اسلامي ټولګی له خپلو اعتقادي اصولو او بنسټونو څخه دفاع کوي .

په همدې ترتيب دخپلو مخالفينو په کورونو يرغل نه کوي بلکې دهغوی اعتقادي بنسټيز اصول تريرغل لاندې نيسي او له دې حملې څخه دانه استنباط کيږي چې دقوت او ځواک په وسيله به دمخالفو ځواکونو اعتقادي اصول هم تر پښو لاندې شي بلکې اساسي اهداف يې دادي چې له ظوابطو او اصولو څخه د ګټې اخيستنې په لړ کې د حکومت واګې په لاس کې ونيسي .

## داهل ذمه ؤ حيثيت

دلته بايد هم دغې پوښتنې ته ځواب وويل شي چې داسلامي نظام داستقرار په صورت کې به د نورو هيوادونو پيروان او د نورو مسلکونو او عقايدو وګړي څه حيثيت ولري ؟

اسلامي جهاد دخلکو په عقیده ، مسلک په عباداتو او ټولنیزو قوانینو تیري نه کوي هغوی له بشپړې خپلواکۍ برخمن دي او کولی شي دخپلې غوښتنې سره سم دخپلې عقیدې ازادې ولري او په شخصي چارو کې دخپل دین تابع واوسي البته معاملات به يې داسلام داصولو په رڼا کې تنظیمولی شي

دمثال په ډول دسود ټول اشکال چې اسلامي حکومت منع کړي په همدې توګه قمار او جواري ته په هیڅ صورت اجازه نه ورکول کیږي دسالې چارو داخیستلو او خرڅولو ټولې لارې چارې چې اسلام پرې بندیز لګولی نه شي ترسره کولی دفحاشۍ او شراب څښلو ټول مرکزونه به يې بندیږي په نامسلمانو ښځو به یو څه ناڅه دستر او پردې قیودات وضع کولی شي په ښارونو کې په ګرزیدلو او دجاهلیت دوخت په شان کړنو به بندېز لګولی شي په سینماګانو به قیودات اینښودل کیږي په دې ترتیب ډیر مسایل دي چې اسلامي حکومت يې دغیر اسلامي تمدن تګلارو ته دخپل هیواد په دننه کې اجازه نه ورکوي .

که چیرته یوڅوک داسلام په دغو بندیزونو اعتراض وکړي چې د خلکو بشپړه ازادي يې سلبه کړې ده هغوی دې پخپله قضاوت وکړي چې دنړۍ کوم غیر اسلامي هیواد خپلو اوسیدونکو ته مطلقه ازادي ورکړې چې د نوموړي دولت له ایدیالوژۍ اوفکر سره ضدیت ولري ؟

څومره چې اسلام نامسلمانو اوسیدونکو ته په خپل قلمرو کې ازادي ورکړې دنړۍ په زیاترو برخو کې به يې وګورئ چې دهغو هیوادونو په اتباعو څه تیریږي او په څومره سختو او تنګو شرایطو کې ژوند ترسره کوي تر دې پورې چې دهیواد په پرېښودو مجبورولی شي

اما اسلام د نورو عقایدو او مسلکونو پیروانو ته دامنیت او پرمختګ بشپړه بهترینه فضاء تهنګه کړې چې ساری يې په سترګو نه لیدل کیږي .

# امپرپالستي اهداف

دلته باید بیا بیا داخبره څرګنده کړو چې جهاد داسلام په رڼا کې یوازې فی سبیل الله دی هرکله چې د دې جهاد په نتیجه کې اسلامي حکومت ټینګ شي مسلمانانو ته روا نه دی چې قیصر او کسری له منځه یوسي او پخپله دکسری او قیصر ځای ونیسي دمسلمان هدف له جهاد څخه دانه دی چې شخصي حکومت ټینګ شي او دالله بندګان دانسان غلامان جوړ شي دخلکو حقوق اودلاس ګټه یې په ناروا لارو چارو غصب او خپل ځان ته په ځمکه کې جنت جوړ کړي.

دي ته فی سبیل الله جهاد نه وایي بلکې داجهاد فی سبیل الطاغوت بللی شي دداسې حکومت له اسلامي حکومت سره هیڅ اړیکه نشته اسلامي جهاد یوشان هلې ځلې او داسې خواري ده چې په هغه کې دځان مال او ټولو نفساني غوښتنو له ځارولو نه پرته بل څه نه موندل کیږي که چېرې دجهاد د بریالیتوب په نتیجه کې کوم حکومت رامینځته کیږي داسلام په ریښتینو مشرانو دمسؤلیتونو دومره لوی بار اینبودل کیږي چې دشپې او ورځې ارام پرې حراموي ددې په بدل کې هغه له حکومت او اقتدار څخه هیڅ خوند او لذت نه ترلاسه کوي.

مسلمان ولسمشر دهیواد د نورو افرادو په نسبت نه امتیازي شخصیت وي او نه د شان او شوکت په تختونو او پالنګونو ارام او اسوده ناست او نه ورڅخه چاپلوس خلک راتاو وي دشریعت او قانون له پریکړې پرته یوه خښته پربلې نه شي اینبودلی او نه له دغه څخه

استفاده کولی شي چې پخپله او یا خپلوان دیوغریب او بیچاره شخص په مقابل کې حمایه کړي .

په ناروا توګه نه یوه روپۍ ترلاسه کولی شي او نه د چا یوه لویشت ځمکه نیولی شي له هغې تنخوا څخه چې د ټولنې د یو متوسط وګړي لپاره کفایت وکړي مستحق ګرزي لـه دې نه پرته له بیت المال نه یوه روپۍ او یوه پیسه ترلاسه کول پرې حرام دي مسلمان ولس مشر ، نه دخپل ځان لپاره یو پرتمېن قصر ودانولی شي او نه دعیش ، خوراک او څښناک سامان الات ځان ته برابرولی شي هغه د تل لپاره له دې څخه ویره لري چې یوه ورځ به و رسره د اعمالو محاسبه کیږي که چېرته یې دحرامویوه روپۍ او یوه لویشت ځمکه هم غصب کړې واوسي او یا په کې یوه ذره کبر ، لویې او فرعونیت ، ظلم او بې انصافي او د ځاني غوښتنو احساس څرګند شوی وي په سختو مجازاتوبه محکوم شي

که چېرې یو څوک په واقعي ډول دمادي او دنیوي ګټو شوق ولري او داسلامي قانون په برابر دچوکۍ او منصب دلاسته راوړلو هلې ځلې وکړي له احمق او ناپوه نه پرته بل څه نه دی داځکه چې د یو معمولي سوداګر حیثیت داسلامي حکومت له مشرتابه څخه زیات دی یو سوداګر هره ورځ له یو اسلامي خلیفه څخه ډیر عواید لري شپه هم په ارام تیروي جوته ده چې اسلامي خلیفه او ولس مشر د ده په تناسب نه مادي عایدات لري او نه دشپې ارام خوب کولی شي همدغه داسلامي او غیر اسلامي حکومت ترمینځ امتیازي کرښه ده .

په غیر اسلامي حکومتونو کې د خلکو مشر خپلې خدایې او باداري ته قوت بخښي او ټول ملي وسایل په خپله ګټه په کار راولي البته د ده پر خلاف داسلامي حکومت مشر یوازې خدمت کوي او له عامو وګړو څخه زیاته ګټه نه لري که چېرې هغه لږ معاش چې

داسلامي حکومت عادي مامورين يې ترلاسه کوي دامپرياليستي او استعماري هيوادونو د دولتي پرسونل له عوايدو سره پرتله او مقايسه کړې شي دا حقيقت به تاسو ته روښانه شي چې داسلامي حکومت او د امپرياليستي استعماري ځواکونو په پراختيا غوښتنه کې مادي او معنوي بيلتون څرګند په سترګو ښکاري.

په خراسان ، شام ، عراق او مصر کې داسلامي حکومت د واليانو معاش له ټيټ رتبه مامورينو سره يوشان په سترګو کيده . حضرت ابو بکر صديق رضی الله عنه داسلام لومړی خليفه دشل روپيو په تنخوا سره ديوه عظيم الشانه اسلامي دولت رياست پر مخ بيولو په همدې توګه د حضرت عمر فاورق رضی الله عنه تنخوا له يوسل او پنځوس روپيو څخه نه زياتيدله سره له دې چې داسلامي خلافت بيت المال د دؤو سترو حکومتونو روم او فارس له خزانو او غنيمتونو څخه ډک ؤ په ښکاره ډول امپرياليزم يو هيواد راښکيلوي او اسلام په سويمن ډول يو هيواد تسخيروي خو د دواړو په فتو حاتو کې دځمکې او اسمان په شان فرق او بيلتون وي لکه چې شاعر وايې:

مې پرند هردو دريک فضا
وليکن جهان زغن ديګراست
جهان شاهين ديګر است.

دادجهاد حقيقت دی چې تاسو به دهغې په هکله ډير څه اوريدلي وي اوس که چيرې له ماڅخه وپوښتنې دغه فکر او تصور چې ماتاسو ته له اسلام او اسلامي ټولګي څخه بيان کړ دا چيرته پټ شوی او څه لامل دی چې د نړۍ په ټولو مسلمانانو کې يې نښان نه ليدل کيږي زه به په ځواب کې دومره ووايم چې دغه پوښتنه له ماڅخه مه کوئ بلکې له هغه چاڅخه يې وکړئ چې دمسلمانانو پام يې له خپل رسالت او

حقیقي مسؤلیت او دندې څخه لرې ساتلی او هغوی یې تعویذونو ، دم ، چُف مراقبو او ریاضت ته سوق کړي هغوی چې دخلاصون ، سوکالۍ اهدافو ته د رسیدلو په خاطر لنډه لاره انتخاب کړې له باطل سره دمبارزې او دغرو وهلو پرته دتسپو په تیرولو اویا د منجاورۍ په وسیله د پیسو دراټولولو کار بنه ترسره کولی شي

هغه څوک چې داسلام سپیڅلي کلي اهداف او مقاصد را اخلي او په یوه تیاره ځای کې یې غورځوي دمسلمانانو فکر په امین بالجهر ، رفع الیدین ، ایصال ثواب ، دقبرونو په زیارت او په داسې نورو جزیي مسایلو مصروفوي هغوی د خپل ژوند هدف او داسلام حقیقت هیر کړی دی او که چېرې په دې هم ستاسو قناعت حاصل نه کړی شم مهرباني وکړئ دغه پوښتنه چارواکو او صلاحیت لرونکو مقاماتو ته وسپارئ سره له دې نه چې په محمد صلوة الله وسلامه علیه او په قران کریم دایمان دعوی لري خو دقران او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د لارښوونو حق له دې نه پرته نه مني او هغه دا چې یوازې په ختمونو اود میلادونو په مجلسونو کې دې قرات شي او کله کله دې نغوذ بالله د الله عزوجل له شاعرۍ څخه توصیف وکړی شي

دقران دعملي نفاد په هکله باید دومره یادونه وکړم چې داخلک له دې کار څخه خپل ځانونه برئ الذمه بولي داځکه چې په حقیقت کې هغوی کله هم د دغو قیوداتو او مقرراتو منلو ته تیارنه دي چې اسلام د دوی په غاړه ایښې هغوی په ارزانه توګه د نجات غوښتونکي دي .

# د

# حق شهادت

## (ګواهي)

## او یا

## داسلامي امت مسئولیت

داد سید ابوالاعلی مودودي رحمة الله علیه دهغې تاریخي وینا متن دی ، چې د سپتمبر دمیاشتې په دیرشمه نیټه ۱۹۴۲ میلادي کال یې دجماعت اسلامي دلاهور په لویه اجتماع دمرادپور په مقام کې چې سیالکوټ ته نژدې پروت دی اوروله وه

# داسلامي امت مسئوليت او د مينځته راتلو هدف

*حمد او ثنا :*

دکمال ټول صفتونه او ستاينې يوازې هغه ذات لره دي چې دکايناتو پيداکونکی ، بادار او حاکم دی چې په بشپړ حکمت ، قدرت او حکمت سره په کې واکمني چلوي ، هغه سپېڅلی ذات چې انسان يې پيداکړ او بيا يې دعلم او عقل څواک ور په برخه کړ او په ځمکه کې يې دخلافت مقام ور وبخښه اودهغه دلاربښوونې لپاره يې خپل اسماني کتابونه او پيغمبران راوليږل دالله جلت عظمته رحمتونه دې وي دهغه په نيکو او غوره بندګانو باندې چې هغوی انسان ته سرپټوب او دژوند تېرولو صحيح لاره وروښودله نن چې په نړۍ کې دهدايت رڼا ، داخلاقو سپيڅلتيا او دنيکۍ او پرهيزګارۍ هرڅه موندلی شي داټول دالله عزوجل د دې نيکو بندګانو دلاربښوونې برکت دی چې بشريت به د تل لپاره ددوی د احسان مرهون وي

ګرانو ورونو:

موږ خپلې غونډې په دؤو برخو ويشو يوه برخه ددې مقصد لپاره ځانګړې شوې ده چې يو تربله سره کښينواو دخپل دعوتي کارجاج واخلو دويمه برخه ددې هدف په خاطر ځانګړې شوې ده چې په کوم ځای کې زموږ لو يه غونډه جوړه شوې وي دهغه ځای عامو خلکو ته خپله بلنه وړاندې کړو زموږ اوسنۍ غونډه ددې دويم مقصد په خاطر ترتيب شوې ده موږ تاسو ته زحمت درکړی دی ترڅو تاسو ته واضح شي چې زموږ دعوت څه شی او دکوم شي په لور خلکو ته بلنه ورکؤو .

## زموږ بلنه

زموږ ددې بلنې خطاب يو خودهغو خلکو لپاره متوجه دی چې هغوی له پخوا څخه مسلمانان دي ، دويم: زموږ بلنه دالله جلت عظمته دعامو بندګانو لپاره ده چې هغوی مسلمانان نه دي ددوی دهريو لپاره له موږ سره يوپيغام دی . ولې ډير دافسوس ځای دی چې له موږ سره ددويمې ډلې خلک په سترګو نه ښکاري دازموږ دتېرو اشتباهاتو او اوسنيو بې تدبيريو نتيجه ده چې دالله (ج) دبندګانو يوه ډيره لويه برخه له موږ څخه لری شوې د ه موږته به په ډېره سختنه توګه دا فرصت په لاس راشي چې هغوی خپل ځان ته راوبولو او يا موږ پخپله هغوی ته ورشو اوهغه پيغام هغوی ته و اورؤو چې دالله جلت عظمته له لوري زموږ دټولو دلارښوونې لپاره د پيغمبرانو په وسيله رارسيدلی دی.

په هرحال اوس چې هغوی دلته نه شته زه ددې دعوت هغه برخه وړاندې کوم چې مسلمانانو پورې ځانګړې شوې مسلمانانوته چې موږ دکوم شي په لوري بلنه ورکؤو هغه دادی چې هغوی دې په هغو مسؤليتونو پوهه حاصله کړي او دسرته رسولو لپاره دې ملاوتړي کوم چې دمسلمان په حيث د هغوی پر غاړه شوی تاسې يوازې په دې خبره نه شئ خلاصيد لی چې ووايې موږ مسلمانان يُو او موږ الله عزوجل اودهغه جلت عظمته دين ومنلو حقيقت دادی چې هرکله تاسو الله عزوجل اُودهغه دين ومانه نو له دې سره په تاسې باندې څه مسئوليتونه هم راغلي او هغه تاسو ته څرګند يدل اودعملي کولو فکر يې په کار دی که چېرې تاسو هغه سرته ونه رسوئ نو دهغې له عذاب څخه به په دنيا او اخرت کې خلاصون ونه مومئ .

## دمسلمانانو مسؤليتونه

هغه مسؤليتونه څه شی دي ؟ هغه يوازې دانه دي چې تاسې په الله عزوجل اودهغه په پرښتو ، اسماني كتابونو ، پيغمبرانو او داخرت په ورځ ايمان راوړئ هغه يوازې داهم نه دی چې تاسو دلمونځ ، روژه ، حج اوزكات پرځای كړئ .

په همدې توګه هغه مسئوليت يوازې داهم نه دي چې تاسې دنكاح ، طلاق ، ميراث او په داسې نورو معاملاتو كې داسلام دټاكلو قوانينو پابندي وكړئ بلكې له دې نه پرته ډيره لويه ذمه واري او مسئوليت پرتاسې ايښودل شوی او هغه داچې دټولې نړۍ په وړاندې دهغه نظام دګواهانو او بلونكو په حيثيت كې ودرېږي په كوم چې تاسې ايمان راوړی دی .

په قران عظيم الشان كې چې دمسلمان په نوم ديو مستقل اُمت دجوړښت مقصد بيان شوی هغه دادی چې تاسو دالله عزوجل په ټولو بندګانو دحق دګواهۍ درسولو دليل پوره كړئ الله عزوجل فرمايلي دي[وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا (البقرة د ۱۴۳ ايات برخه) ژباړه : او په همدې توګه مو تاسې غوره امت ګرځولي ياست ترڅو تاسې پرګرد بشريت شاهدان واست او پيغمبر پرتاسې شاهدوي .

## داسلامي امت دمينځته راتلو هدف

دغه زموږ او ستاسو دامت ذاتي هدف دی كه چېرې مو پوره نه كړ نو ګواكې خپل ژوند مو بېهوده تيركړ دغه دالله عزوجل له خوا پر موږ او تاسې ايښودل شوی مسئوليت دی دالله جل جلاله حكم دی

چې يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ (المائدةد ٨ ايات برخه) ژباړه: اې مؤمنانو !بايد دالله لپاره كلك ودريږئ په عدل او انصاف شاهدان اوسې .داد الله جلت عظمته تاكيدي حكم دی ځكه چې قران عظيم الشان فرمايي وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهُ مِنَ اللَّهِ ] (البقرةد ١۴٠ ايات برخه). ژباړه :- او لـه هغه چاڅخه به بل لوی ظالم څوک وي چې دالله لـه لوري وركړ شوی علم او شـهادت لـه ځان سره پټوي .

لـه دې نـه وروسـته الله تعالـی تاسـو تـه داهـم ويلـي كـه څـوک دغـه فريضـه او مسـئوليت سرته ونـه رسـوي نـو دهغـه انجـام بـه څـه وي ؟ لـه تاسـو نـه دمخـه دگواهـی او دقامونـو دلاربښوونې پـه منصـب يهـوديان (بنـي اسرائيل ) ودرولی شوي ؤ خو هغوی حق پټ وساته او څه يې دحق پـرخلاف اسـتعمال كړ او پـه بشپړه توگه دباطل گواهان شول نتيجه يې داشوه چې هغـوی ورټـل شـول او پـه لعـنت اختـه شـول قـران كـريم دغـه مطلـب داسې بيانوي (ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوا إِلَّا بِحَبْلٍ مِنَ اللَّهِ وَحَبْلٍ مِنَ النَّاسِ وَبَاءُوا بِغَضَبٍ مِنَ اللَّهِ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ] (آل عمـران ١١٢ ايـات بـرخه ) ژبـاړه :- پـه هـرځای كـې چـې وي لـه سپكاوي سره بـه مـخ وي مگـر يـوازې دالله او دخلكـو پـه پـناه كـې لـه سپكاوې څخـه خلاصـيدی شـي او دالله پـه قهـراختـه شـوی خـواري او ذلت پرې واكمن شوی دی .

## دحق شهادت (گواهي)

شـهادت اوگواهـي چـې مسـئوليت يـې تاسـې تـه پر غاړې شوی لـه دې نـه هـدف دادی چـې كـوم حق تاسـې تـه رارسيدلی او ربښتينولي يې تاسـو تـه څرگنده شوې تاسـو بـه دنړی والـو پـروړاندې ددې شـاهدي

ورکوئ چې دغه دین حق ، ریښتیا اوپر سمه لار دی په داسې توګه ګواهي چې نړۍ والو ته څرګنده شي چې داحق او ریښتیادی او هم په نړۍ والو تاسو ددین حجت پوره کړئ دحق دګواهۍ اوشهادت لپاره پیغمبران دنیاته راولیږل شول دادهغوی فریضه او مسؤلیت ؤ خو بیا هم دغه ستر مسئولیت دپیغمبرانو څخه وروسته دهغوی په امتونو فرض کیدلو اوس درسول الله صلی الله علیه وسلم تررحلته وروسته دغه فریضه په مجموعي توګه دامت پر غاړه شوې ده لکه څنګه چې درسول الله (ص) په ژوند په هغه مبارک ایښودل شوې وه .

## دشهادت (ګواهۍ) اهمیت

ددې ګواهۍ داهمیت اندازه له دې څخه ولګوئ چې دبشري نوعې لپاره الله عزوجل دپوښتنې ، جزا اوسزا کوم قانون ټاکلی دی دهغې ټول بنسټ په همدې ګواهۍ ایښودل شوی ، الله جلت عظمته ، حکیم ،رحیم او عادل دی ، داخبره دهغه عزوجل دحکمت ، رحمت او دهغه له انصاف سره نه ښایي چې خلک دې دهغه عزوجل په رضامندۍ خبرنه وي او هغه دې دوی په دې خبره ونیسي چې دوی دهغه دخوښۍ خلاف چلند څنګه غوره کړی دی ؟ خلکو ته دې داخبره هیڅ معلومه نه وي چې سمه لاره کومه ده ؟ او هغه عزوجل دې هغوی دکږې لارې په تللو ونیسي،

خلکو ته دې هیڅ معلومه نه وي چې له دوی څخه به د څه په باره کې پوښتنه کیږي او هغه دې دیونامعلوم په هکله پوښتنه وکړي نو ځکه الله جلت عظمتهٔ دبشر دپیدا ښت پیل له پیغمبر څخه وکړ اوبیا یې وخت پروخت خپل استازي راولیږل ددې په خاطر چې دوی انسانان خبرکړي چې ستاسو په اړه ستاسو د خالق رضا او خوښي دغه

شی دی او هم ستاسو لپاره په دنیا کې دژوند تېرولو صحیح لاره چاره داده په دغه چلند تاسو دخپل ښتن رضا حاصلولی شي ، ددې کارونو کول ضروري دي او له دې کارونو څخه ځان ساتل په کار دي . داهغه خبرې دي چې ددې په باره کې به له تاسو نه پوښتنه کولی شي .

## دنړۍ په قامونو دحجت (بهانې) پای ته رسیدل

دغه شهادت چې الله عزوجل دخپلو پیغمبرانو په ژبه څرګند کړی هدف يې په قران کریم کې په واضحه توګه دابښودلی شوی دی چې خلکو ته په الله پاک باندې ددې حجت او بهانې وړاندې کولو فرصت پاتې نه شي چې موږ خبرنه ؤواوته موږدهغه شي په باره کې رانیسي چې دهغې په باره کې موږ ته خبرنه ؤ راکړ شوی .قران عظیم الشان فر مايې [رُسُلًا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ وكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا] (النساء ۱۲۵) [ژباړه : ټول پیغمبران زیري ورکونکي اوویروونکي لیږل شوي دي چې دالله په وړاندې درسولانو له راتګه وروسته چاته کومه بهانه او پلمه پاتې نه شي او الله پاک ښه زور ور اودحکمت ښتن دی .

په دې توګه الله جلت عظمته دخلکو حجت او بهانه له خپل ځانه لرې کړه او دپیغمبرانو په غاړه يې کړه ، او پیغمبران علیهم السلام ددې ارزښتناکې ذمه وارې په منصب ودرولی شول چې که چېرته هغوی دحق دشهادت حق پوره پوره ترسره کړ نو خلک به بیا دخپلو اعمالو پخپله ذمه وار وي او له هغوی نه به دهغې په هکله پوښتنه کیږي او که چېرته ددوی دلوري نه ددې ګواهی په سرته رسولو کې څه نیمګړتیا ترسره شوې وي نو دخلکو دبې لارتیا پوښتنه به بیا له

پیغمبرانو څخه کیږي اویا په بل عبارت داسې ویلی شُو چې دپیغمبرانو دمنصب نزاکت داؤ چې یا خو دهغوی دحق شهادت سم تر سره او په خلکو دي حجت پوره کړي او که داسې ونه شي نو دخلکو حجت به پردوی قایم شي

مطلب داچې دحق او حقیقت کوم علم الله پاک تاسو ته درکړی ؤ هغه موتر موږ پورې راونه رسولو او دژوند کومه صحیح لاره چې الله پاک تاسو ته ښودلې وه هغه تاسو موږ ته ونه ښودله له همدې کبله پیغمبرانو علیهم السلامو په خپل ځان باندې دغه بار ډیر درونډ محسوس کاؤ ځکه هغوی دخپل لوري نه دریښتینې ګواهی اودحق دعوت په سرته رسولو او په خلکو باندې دحجت او دلیل دقایمولو په لړ کې زیاتې هلې ځلې کولې .

## دریښتینې ګواهی په نه اداء کولوالهي مؤاخذه

له دې نه وروسته چې دپیغمبرانو په وسیله کومو وګړو دحق علم او هدایت لاره ومونده هغه یو امت جوړشُو او دشهادت دمنصب مسئولیت چې دپیغمبرانو ترغاړې شوی ؤ اوس ددې امت په اوږو بار شو دپیغمبرانو علیهم السلامو دځای ناستي په حیث دې امت ته دامرتبه په برخه شوه چې که چېرې دې امت دشهادت حق سرته ورساؤ او خلک سم او اصلاح نه شول نودوی به ددې اجر مومي او که چېرې یې دحق شهادت په سرته رسولو کې له نیمګړتیا څخه کار واخیست او یا یې دحق پرخلاف دباطل ګواهي ورکړه نو ترټولو مخکې به دده مؤاخذه کیږي له ده څخه به دخپلو کړنو اود هغو خلکو دکړو وړوپوښتنه کېږي چې دصحیح شهادت دنشتوالي او یادغلط شهادت (دباطل دعوت) له کبله یې خلک په فساد اوبې لاریو اخته شوې دي .

## دشهادت (ګواهی) لار

ښاغلو! دادی دحق شهادت هغه حساس مسئولیت چې هغه زموږ او ستاسو او دهغو خلکو ترغاړې ؤ چې ځان په اسلامي امت کې شمیري اوهغوی دالله عزوجل وروستنی نړی وال پیغام پر لاس کې لري . ښه نو اوس خبره داده چې ددې شهادت دسرته رسولو طریقه کومه ده ؟ ددې پوښتنې ځواب داده چې شهادت په دوه ډوله ده قولي شهادت اوعملي شهادت .

### قولي شهادت

دقولي شهادت یوه بڼه داده چې موږ دژبې اوقلم په واسطه نړی والو ته هغه حق ځرګند کړو چې دپیغمبرانو په وسیله ترموږ پورې رارسیدلی دی ، دپوهونې چې څومره ممکنې لارې چارې دي له هغو ټولو څخه کار واخلود تبلیغ اودعوت چې څومره دخپرونې وسایل دي هغه ټولې په کار راوستل شي اوسنیو علومو او فنونو چې څومره الات برابر کړي هغه ټول په خپل لاس کې واخلو او موږ له هغه دین اوحق نظام سره دنړۍ والو پیژند ګلوی راولو چې الله جلت عظمته دبشریت دلارښوونې لپاره غوره کړی دی په فکر اوعقیده ، په اخلاقو اوسیرت په تمدن او ټولنیز ژوند په کسب ، معاش ، اقتصاد او معاملاتو په قانون اوعدالت په سیاست اودهیواد په اداره اود انسانانو ترمینځ دمعاملاتو په نورو ټولو اړخونو کې چې داسلام سپیځلي دین دانسان دلارښوونې لپاره څه وړاندې کړي دي هغه موږ په واضح او ځرګند ډول بیان کړو په دلایلو او شهادتونو ددې حقانیت ثابت کړو او هرهغه څه

چې ددې پرخلاف دي په هغو معقول تنقید وکړو اونړۍ والو ته څرګنده کړو چې په دې کې داخرابي اوفساد دی.

البته ددې قولي شهادت حق ترهغه پورې نه شي ترسره کیدی ترڅو پورې ټول امت په مجموعي توګه دخلکو دهدایت په باب هغه شان فکرمن اوغمژن نه شي څنګه به چې پیغمبران علیهم السلام په انفرادي ډول ددې کار لپاره فکرمن وو

ددې حق دسرته رسولو لپاره داضروري ده چې داکار زموږ د ټولو ټولنیزو او قامي کوښښونو مرکزي نقطه وي. موږ ته په دې لړ کې دخپلو زړونو او دماغي صلاحیتونو ټولې وسیلې استعمالول په کار دي زموږ په ټولو کارونو کې دې داهدف ارو مرو موجود وي او په خپل مینځ کې خو دې په هیڅ حال کې موږ څه داسې اواز پورته نه کړو چې هغه دحق پر خلاف شهادت وي.

## عملي شهادت

دعملي شهادت څخه هدف دادی چې موږ په خپل ژوند کې دهغو اصولو څرګندونه وکړو کومو ته چې موږ حق وایُو نړیوال دې یوازې زموږ په ژبه ددې دین دصداقت او ریښتینولۍ خبرې نه اوري بلکې هغوی دې په خپلو سترګو زموږ په ژوندد هغو ښیګڼو او برکتونو مشاهده وکړي هغوی دې زموږ په سلوک او چلند کې له خوږ والي نه خوند واخلي هغه چې دایمان دخوږوالي له امله دانسان په اخلاقو او معاملاتو کې رامینځته کیږي ، نړۍ وال دې پخپلو سترګو وګوري چې ددې سپیڅلي دین په لارښوونه کې څنګه ښه ښه انسانان او څنګه یوه باانصافه او صالحه ټولنه او صفا سپیڅلی تمدن رامینځته کیږي ، څنګه په سمو کرښو کې علوم ، اداب اوفنون وده او پرمختګ مومي او څنګه په خلکو کې بې جنګ او شوره دهمدردۍ منصفانه

اقتصادي تعاون څرګندیږي دانفرادي او ټولنیز ژوند هر اړخ څنګه ښه سمون مومي چې دنیکیو او ښیګڼو څخه معموردی.

ددې شهادت حق یوازې په دې شان اداء کیدلی شي چې موږ په انفرادي اجتماعي او قامي شکل کې هم دخپل دین په حقانیت دیو څرګند شهادت په صورت کې را ښکاره شو . زموږ د افرادو عمل اوکړه وړه دې داسې وي چې ددې شهادت صداقت ترې څرګند وي زموږ کورونه ، دوکانونه او کارخانې ددې په رڼا روښانه وي زموږ ادارې ، زموږ مدرسې ددې په رڼا وځلیږي . زموږ خپرونې زموږ فرهنګ او کلتور ددې ښېګڼو سند وړاندې کړې زموږ قامي پالیسي اوټولنیز زیار اوکوښښ ددې دین دحقانیت دلیل وي

لنډه داچې له موږ سره چېرته او په کوم حیثیت کې هم چې دکوم شخص او یاقام څه اړیکه پېښیږي هغه دې زموږ په شخصي او قامي کردار اوعمل کې دهغو اصولو او قوانینو ثبوت ومومي چې کوم اصول موږ حق ګڼو ، واقعیت دادی چې دغه دین حق او ریښتینیی دی او ددې په وسیله دانسان ژوند ډیر لوړ ، بهتر او غوره شان ته رسیدلی شي .

## دشهادت تکمیل

بیا به هم عرض وکړم چې ددې شهادت تکمیل او بشپړ تیا که چېرته کېدی شي نو هغه یواځې هغه وخت چې کله یو اسلامي دولت ددې اصولو په رڼاکې په ښو ودریږي او بشپړ دین په عملي شکل څرګند شي دخپل عدل او انصاف په وسیله او دخپل اصلاحي پروګرام په نتیجو او دخپل ښه انتظام په برکت دخپل امن ، دخپل رعیت دښیګڼې او بهترۍ ، دخپلو سیاسي چارواکو دنیک فکر اوعمل ،

دخپل ملي اوقامي سياست اودخپلې ريښتېنې امن ناکه بهرونۍ پاليسۍ، دخپل شريفانه جنګ اوجګړې اودخپلې وفانه ډکې سولې اوامن په ذريعه دټولې نړۍ په مخکې ددې خبرې ګواهي وړاندې کړي چې دکوم سپيڅلي دين پراساس دغه اسلامي دولت رامينځته شوی هغه په حقيقت کې دانسان دبهترۍ او ښېګڼې ضامن او ددې په پيروۍ کې دبشري نوعې بهتري اوښيګڼه ده .

نو هرکله چې دغه عملي شهادت له قولي شهادت سره يوځای شي نو بيا هغه بشپړ شي کوم چې اسلامي اُمت ته وربه غاړه شوی دی اوله دې نه وروسته به په بشري نوعې حجت پای ته ورسيږي او زموږ دا امت به ددې وړ وګرځي چې دقيامت دورځې دپريکړې په لوی ډګر په رسول الله صلى الله عليه وسلم پسې ولاړ وي اود خپل رب په حضور کې داګواهي ورکړي چې کوم دين موږ ته پيغمبر صلى الله عليه وسلم رارسولی ؤ هغه موږ نړۍ والو ته ورساؤ، او که چېرې له دې نه وروسته هم خلک له خپلې کږې لارې نه وانه وښتل نور نو پخپله مسئول دي .

درنو لوستونکو !

داخو هغه شهادت اوګواهي ده چې دمسلمان په حيث موږ ته دخپلې وينا اوعمل نه ددې ثبوت ورکول په کار ؤ خو اوس وګورئ چې موږ نن په واقعيت کې څنګه شهادت ورکوو

## زموږد قولي شهادت ارزونه

لومړی به خپل قولي شهادت وارزوو موږ کې يو ډېر کوچنی ټولګی داسې دی چې هغه څينې وخت په انفرادي توګه په خپلې ژبې اوقلم داسلام ګواهي ورکوي او په همدې ډول په دوی کې دګوتو په

شمير خلک به داسې وي چې هغوی به په بشپړه توګه د دې حق دپرځای کولو هڅه کوي ، که چېرې دغه لړ شان خلک ګوښه کړئ نو تاسو به وګورئ چې دمسلمانانو عامه ګواهي داسلام په حق کې نه بلکې د دې پرخلاف ورکولی شي زموږ دولسونو ځمکه وال وګړي ګواهي ورکوي چې داسلام دمېراث قانون ناسم او دجاهليت رواجونه صحت لري زموږ وکيلان ، قاضيان او څارنوالان د دې ګواهي ورکوي چې داسلام قوانين په بشپړ ډول غلط او داسلامي قانون نظريه دقبول وړنه ده صحيح يوازې هغه قوانين دي چې انسانانو جوړ کړي او دانګليسانو او نورو کفارو په لارښوونه موږ ته رارسيدلي دي .

زموږ ښوونکي ، پروفيسران او تعليمي اداري د دې خبرې ګواهي ورکوي چې دفلسفې ، حکمت ، تاريخ ، اجتماعياتو ، اقتصاد ، سياست ، قانون او اخلاقو هغه افکار او نظريات ريښتيني دي کوم چې دلويديځ دملحدانه تعليم نه اخيستل شوي په پورتنيو چارو کې داسلام لارښوونې هيڅ دتوجه وړنه بولي ، زموږ اديبان اوليکوالان د دې خبرې ګواهي ورکوي چې له دوی سره داداب او هنر هغه پيغام دی کوم چې دانګلستان ، فرانسې او روسيې د بې دينه اديبانو سره دی دمسلمان په حيثيت کې له دوی سره داداب څه مستقل روح نشته زموږ مطبوعات اوخپروني د دې ګواهي ورکوي چې له موږ سره دبحث اوپرو پاګند هغه لارې چارې دي کومې چې دنامسلمانو سره دي زموږ سوداګر او دکارخانو څښتنان د دې شهادت ورکوي چې داسلام سپيڅلي دين په معاملاتو کې چې دحرامو اوحلالو کوم بنديزونه لګولي دعمل وړ نه دي ، کاروبار اومعاملات يوازې په هغو لارو کيدلی شي چې کافرانو موږ ته غوره کړي دي زموږ سياسي مشران اورهبران داګواهي ورکوي چې له دوی

سره دوطن اوقام هغه ناري سورې اومقاصد اودملي پېښو دحل ، دسياست اوقانون هغه اصول اولوايح دي کوم چې کافرانو سره دي په دي هکله اسلام هيڅ دلارښوونې اورهنماېې ور نه بولي چې دهغه په لور رجوع وکړی شي.

زموږ عام ولس دغه ګواهي ورکوي چې له موږ سره ددې دين څه داسې شی نشته چې موږ پرې ددنيا دمعاملاتو خبرې وکړو او يا پرې خپل وخت مصرف کړو داهغه قولي شهادت دی چې په مجموعي توګه يې زموږ ټول امت په دې هيواد کې نه بلکې په ټوله نړۍ کې ورکوي.

## زموږ دعملي شهادت ارزونه

اوس دعملي شهادت حال وګورئ ددې حال دقولي شهادت څخه هم بتر دی بې له شکه په موږ کې ځينې داسې نيک افراد هم شتون لري چې په خپل ژوند کې داسلام څرګندونه کوي خو عام وګړي چې دمسلمانانو په کورکې داسلام تراغېزې لاندې روزل شوي او لوی شوي دي هغوۍ دهغو خلکو څخه په هيڅ حيثيت کې بهتر نه دي چې په کفر کې پالل شوي حقيقت دادی چې په ډيرو حيثيتونو کې دوۍ له هغوۍ څخه بتر دي .دوۍ په ښکاره ډول دروغ وايې په خيانت ، ظلم ، رشوت،فريب او په خپل مينځي جګړو لاس پورې کوي په وعده خلافی ،غلا، لوټ اوتالان اخته دي او په دې ټولو بداخلاقيو کې دوۍ په اوسط ډول له هيڅ کافر قام څخه کم نه دي .بيانو زموږ ټولنيز ژوند ، داستوګنې لارې چارې رسمونه او رواجونه زموږ ميلې او غونډې لنډه داچې زموږ دټولنيز ژوند هيڅ يو اړخ داسې نه دی چې په هغې موږ د اسلام نمايندګي وکړو.

داخبره يوژوندی ثبوت دی چې داسلام پېروان پخپله دخپل ځان لپاره داسلام پرځای جهالت ته ترجيح ورکوي . موږ چې ښوونځي جوړوو نوعلم او دښوونې روزنې نظام او دعلم روح هرڅه دکافرانو څخه ترلاسه کوو موږ چې ټولنې او انجمنونه جوړوو نو دهغې مقصد ، دکار طريقه اود نظام هرڅه هغه شان ساتو څنګه چې دکافرانو ديوانجمن کيدلی شي ، زموږ ولس چې په مجموعي حيثيت کې که دڅه زيات کوښښ لپاره پورته کيږي نودهغوی غوښتنې دکوښښ لارې چارې دهغوی دټولګي اصول اوقوانين ، دهغوی وړاند يزونه ، ويناوې هرڅه دکافرو قامونو دجدوجهد تمثيل وي .

تردې پورې چې دځمکې په کومه برخه کې زموږ ازاد اويا نيم ازاد حکومتونه موجود دي هلته هم دحکومت اساسي نظام او دقوانينو مجموعه له کافرانو اخيستلی شوې ده .داسلام قانون په ځينو حکومتونو کې يوازې ترشخصي احوالو پورې محدود شوی او ځينو هيوادونو په دې کې هم ترميم کړی دی اوس مهال يوانګريز ليکوال Lawrence Bron په خپل کتاب The Prospects of Islam کې مسلمانانو ته پيغور ورکړی چې موږ په هندوستان دغلبې پروخت داسلام اداري اودجزاقانون له دې کبله منسوخ کړی ؤ چې ډير زاړه اودعمل وړ نه ؤدمسلمانانو لپاره مو يوازې دشخصي احوالو قوانين پريښي ؤ نو داخبره په مسلمانانو ډيره بده لګيدلې وه څکه چې په دې صورت کې هغوی ته هغه حيثيت پاتې کيده کوم چې په يو وخت کې به په اسلامي حکومت کې دذميانو لپاره وو

خو اوس نه يوازې داچې په هندوستان کې مسلمانانو زموږ قانون خوښ کړی دی بلکې ډيرو ازادو مسلمانو حکومتونو هم په دې معامله کې زموږ پيروي کړې ده دترکيې او البانيې دولتونو خودومره

تجاوز کړی چې د نکاح ، طلاقو او میراث په قانون کې یې زموږ دمعیارونو مطابق اصلاحات کړي دي

اوس داخبره جوته ده چې دمسلمانانو داتصور اوفکر چې دقانون ماخذ او سرچینه دي دالله اراده وي دیوې مقدسې افسانې (Pious Fiction) څخه زیات څه اهمیت نه لري داهغه عملي شهادت دی چې دټولې دنیا مسلمانان یې درایو په یو والي داسلام پرخلاف ورکوي موږ چې په ژبه هرڅه وایو خوز موږ ټولنیز عمل ګواهي ورکوي چې ددې دین هیڅ یوه طریقه زموږ خوښه نه ده او دده په هیڅ یوه قانون کې هم موږ خپله بهتري اونجات نه شوموندلی .

## دحق پټولو سزا

کـه موږ دحق پټونې اود دروغود ګواهۍ مرتکب شو نو دداسې یو خطرناک انجام سره به مخامخ شوڅنګه چې دداسې سخت جرم لپاره یې په الهي قانون کې ټاکنه شوې دی کله چې یوقام دالله عزوجل دنعمت ناشکري اوله خپل خالق سره غداري وکړي نو الله عزوجل په دنیااو اخرت کې هغه ته سزا ورکوي دیهودیانو په معامله کې خو دالله عزوجل قانون ربښتیني شوی دئ اوس ددې امت واردی دالله پاک له یهودیانو سره څه شخصي دښمني خو نه وه چې یوازې ددې جرم له کبله یې هغوی ته سزا ورکوله اونه یې له موږ سره څه قرابت اوخپلولي شته چې موږ دجرم دارتکاب له امله له سزا څخه بچ پاتې شو

حقیقت دادی چې موږ دحق شهادت په ورکولو کې چې په څومره نیمګړتیا لاس پورې کړو او دباطل دګواهۍ په ادا کولو کې څومره په څغاسته وړاندې روان یو له دې سره جوخت زموږ تنزل او خوړتیا پیل

شوې ده په تېره یوه پېړۍ کې د دننه د مراکش نه تر ختيځ هند پورې لویه سیمه د مسلمانانو له لاسه ووتله او موږ د محکومیت او ذلت په تیته کنده کې سقوط وکړ د مسلمان نوم د عزت او فخر نوم پاتې نه شو بلکې د ذلت ، بربادۍ او پسماندګۍ یو نښان ورڅخه جوړ کړی شُو.

په نړۍ کې زموږ عزت او ابرو پاتې نه شوه په ځينو ځايو نوکې له کورونو وويستل شو او په ځينو کې مو په عامه وژنه لاس پورې کړی شو او په ځينو کې راته سخت عذاب راکړی شو او په ځينو ځايونو کې د نوکرۍ او چاکرۍ په خاطر ژوندي پرېښودل شُو او په کوم ځای کې چې د مسلمانانو خپل ازاد حکومتونه دي هلته هم هغوی پرله پسې شکستونه وخوړل او نن د هغوی د غه حالت دی چې د بهرونیو ځواکونو له ويرې رېږي حال دادی چې که چېرته هغوی د اسلام د عملي او قولي شهادت مسؤليت سرته رسولی وی نو د کفري ملتونو واکمنان به د هغوی له ويرې په لرزه اخته وی.

د ډېر لرې مثالونو ضرورت نشته پخپله د هندوستان حالت وګورئ د حق شهادت په اداء کولو کې کومه نیمګړتیا نه یوازې دلته وشوه بلکې د حق پرخلاف شهادت چې تاسو په وینا او عمل کې وکړ داخو هم د هغې نتیجه وه چې دا ډېر لوی هیواد د مسلمانانو له لاسه ووت لومړی د مرهټیانو او سکانو د لاسه د غه سیمه وځپل شوه او وروسته یې بیا د انګلیسانو غلامي په برخه شوه.

اوس مهال ډېرې ستونزې زموږ اوستاسو په مخ کې پرتې دي نن ستاسې ترمخه د اکثریت او اقلیت پوښتنه پرته ده اوتاسو ددې له غم نه په لرزه اخته یاست چې هسې نه د هندوستان د اکثریت محکوم نه شئ ولې د الله جلت عظمته په خاطر که چېرته نن هم تاسو په خپل قول او عمل د اسلام ګواهي ورکونکی شئ نو دلته به د اکثریت او اقلیت

مسئله له مینځه ولاړه شي دعربو په ټاپو وزمه کې خو داسلام دلومړنیو لړو افرادو پرخلاف یوډیر سخت ، ظالم او جابر اکثریت د دوی دله مینځه وړلو پریکړه کړې وه خو داسلام ریښتیني ګواهی دلسو کلونو دننه هماغه اقلیت سل په سلو کې په اکثریت بدل کړ او هرکله چې داسلام ګواهان له عربو نه بهرون وتل نو دپینځه ویشت کلونو په دوران کې له ترکستان نه ترمراکشه ټولو ولسونو ددوی په دې شهادت ایمان راوړ او په کومو هیوادونو کې چې سل په سلو کې مجوسیان (اورپالونکي) ، بت پالونکي او عیسویان او سیدل هلته ټول له یوې مخې خلک مسلمانان شول هیڅ ضد او هیڅ قامي او مذهبي تعصب پاتې نه شو چې دحق دڅوندی اوریښتیني ګواهی په وړاندې مقاومت وکړي اوس نو که چېرته له لیرې خپل ځانونه په خطر کې وینئ نو دادحق پټولو او دروغو دګواهی دسزانه پرته نورڅه (؟؟)

## دآخرت سزا

دغه خو دهغه جرم سزاده چې موږ اوتاسو ته په دنیا کې راکولی شي په اخرت کې له دې نه هم دسختې سزا ویره ده .ترڅو پورې چې تاسو دحق دګواه په حیث خپل مسؤلیت سرته ونه رسوئ په نړی کې چې څومره ګمراهي خپریږي او په ظلم او فساد لاس پورې کولی شي ددې دمسؤلیت څخه تاسو هیڅکله نه شئ خلاصیدی که چېرته دبدو کارونو دکولو مسؤلیت په غاړې نه لرئ نو ددوی داسبابو دپېد اینبت او هغو ته دفرصت ورکولو مسؤلیت خو ارومرو ستاسو په غاړه پروت دی .

## دمسلمانانو حقونه ستونزې اودحل لارې يې

ورونړو ! هغه څه چې تاسو ته وړاندې شول له دې نه به تاسو ته ځرګنده شوې وي چې ديو مسلمان په حيث موږ ته څه په کار ؤ او موږ په څه شي کې اخته يو موږ چې څه کوو دهغې بشپړ قصور له موږ نه وزي په دې برخه کې که چيرته تاسو دمعاملې په حقيقت نظر واچوئ نو

داخبره به تاسو ته ځرګنده شي چې په اسلامي هيوادونو او دنړۍ په نورو برخو کې چې کومې مسئلې د قامي ژوند اصل مسئلې ګڼلې شي دهغې دحل لپاره څه لارې چارې هغوۍ په خپل ذهن کې جوړې کړې دي او دزياترو پيښو دحل لارې دنورو قامونو څخه دزده کولو کوښښ کوي .

حقيقت دادی چې په دې کې يوه مسئله هم دهغوۍ اصل مسئله نه ده او دهغې دحل په تدبير کې دوخت ، قوت او مال لګول په بشپړه توګه دناوان کار بولې په دې توګه پوښتنې چې يواقليت ديوغالب اکثريت په مينځ کې پروت وي تل رامنځته کيږي . هغه به خپل وجود خپله ګټه اوخپل حقوق څنګه خوندي ساتي او يو اکثريت قام به په خپلو حدودو کې هغه اقتدار څنګه لاس ته راوړي هغه چې داکثريت کيدلو له امله هغه ته په برخه کيدل په کار ؤ او يو محکوم قام به دزوراور قام له منګولو څخه څنګه ازادي حاصلوي او يو کمزوری قام به د يوځواکمن قام دغلبې څخه څنګه خوندي شي او يو وروسته پاتې

قام به څرنګه دپرمختګ او خوشالی لوړ معیار ته ورسیږي کوم چې دنړۍ پرمختللیو قامونو ته په برخه دی .

دغه او داسې نورې مسئلې دنامسلمانو قامونو لپاره له ټولو نه ارزښتناکې ګڼل کیږي او د ټولو کوښښونو مرکز او محور هم ګرځیدلی شي مګر موږ مسلمانانو ته داپخپل ځای څه مستقلې مسئلې نه دي بلکې داپه واقعیت کې دهغه غفلت اسباب دي کوم چې موږ دخپل اصلي کار په هکله غوره کړې دي اوتر نن ورځې پورې په کې بوخت یو که چېرته مو خپل مسئولیت پېژندلی وی نو نن به ددومره کړکیچنو او ورانو ویجاړو مسئلو داځنګل زموږ مخې ته نه وی راغلی اوس هم ددې پرځای چې موږ ددې ځنګله په پریکولو کې خپل ټول ځواکونه په لګښت ورسوو که چېرته خپله توجه او خپلې ټولې هلې ځلې ددې خپل کار او مسئولیت په لوري راوګرځوو نو ډیر ژر به نه یوازې زموږ لپاره بلکې دټولې نړۍ دقامونو لپاره د ډیرو سختو مسئلو داځنګل پخپله صفا ډاګ شي ځکه چې دنړۍ دصفایې او اصلاح مسؤل خو موږ یو موږ چې خپلې منصبي ذمه وارۍ ته شاکړه نو نړۍ داغزنو جړو او بوټو نه ډکه شوه او له ټولو نه زیاته اغزنه برخه زموږ په برخه ولیکلی شوه .

ډیر دافسوس ځای دی چې دمسلمانانو سیاسي او دیني رهبران په دې خبره دپوهیدلو هلې ځلې نه کوي هرځای د دوی په دې خبره یقین راوستلی شي چې ستاسو اصل مسئله داکثریت ، اقلیت او دهیواد دازادۍ دقام دتحفظ اودمادي پرمختګ مسایل دي دمسلمانانو سیاسي رهبران مسلمانانو ته ددې مسئلو دحل تدبیرونه وربښئ کوم چې هغوی له نامسلمانو څخه زده کړې دي ،مګر څومره چې زه دالله عزوجل پرذات ټینګ باور لرم همدومره ځما په دې خبره

پوخ يقين دى چې ستاسو ناسمه لاربنوونه کيږي او په دې لارو باندې په تللو کې تاسو هيڅکله دخپل نجات تر سر منزله نه شئ رسيدلى .

## اصل او بنستيزه مسئله

زه به ستاسو ډير بدخواه اوسم که چېرې په ډاګه يې تاسو ته ونه وايم چې ستاسو دژوند اصل مسئله څه ده زما په علم کې ستاسو حال او مستقبل پروت دى اوس پوښتنه داده چې تاسو د الله جلت عظمته له سپيڅلي هدايت او قانون سره څه تعامل کوئ کوم چې مونږ او تاسو ته د الله جل جلا له دپيغمبر په وسيله رارسيدلى دى .چې دهغه له کبله تاسو ته مسلمان او پر همدې بنسټ تاسو ته په نړۍ کې داسلام دنماينده نسبت کولى شي . که چېرې تاسو دهغه سمه پېروي وکړئ او دخپلې وينا اوعمل پراساس دهغه رېښتينې ګواهي ورکړي او ستاسو په ټولنيز عمل کې داسلام سمه ځرګندونه وشي نو تاسو به په نړۍ کې سرلوړي او په اخرت کې سرخرويه شئ دويرې ، غم ، ذلت ، بربادۍ ، مغلوبيت او محکوميت داتورې ورېځې چې پرتا سو راخپرې دي ډېرې ژرلرې کړى شي ستاسې رېښتېنى دعوت او نېک سېرت او اخلاق به د قامونو زړونه او د ماغونه مسخر کړي او ستاسو اعتبار اودبدبه به په نړۍ کې خپره شي دنړۍ مظلومې پرګنې به دانصاف هيلې پر تاسو پورې وتړي ستاسو په امانت او ديانت به باور کيدى شي اوستاسو وينا به دسند په توګه وړاندې کولى شي دخير او ښېګنې طمعه به له تاسو څينې کولى شي دکفر او بې دينۍ دمشرانو اعتبار به ستاسو په مقابل کې پاتې نه شي دهغوى ټولې فلسفې سياسي او اقتصادي نظريات به ستاسو دصداقت او رېښتينولۍ په مقابل کې د دروغو يوه ځلا ښکاره شي کوم ځواکونه چې د دوى پلوي

کوي لـه دوی سره بـه خپلې اړيکې غوڅوي او داسلام غېږې تـه بـه رادرومي.

تـردې چې يو وخت به داسې راورسيږي چې کمونيزم به په خپله په ماسکو کـې دخپـل ځـان دخلاصـون لـپاره سرګردانه وي ، پانګـواله جمهوريت بـه خپله په واشنګټن او نيويارک کې دخپل ځان دساتنې په غم کـې پـه لـرزه وي . مـاده پالـنه او الحـاد بـه خـپله دلـندن او پارېس په پوهنتونونو کـې ځـای نـه شـي مونـدلـی ، نسـل پرستي او قـام پرستي به خپله په بامبړانو اوجوګـيانو کې خپـل معتقد ، ونه مومي او دااوسنی دور به يوازې ديو داستان په حيثيت کې پاتې شي

مطلـب داچې داسلام په شان دنړۍ وال او بريالي ځواک پتنګان يو مهـال داسـې بې وقـوفه شـوې وو چې دموسی عليه السلام امسايې په تخرګ کـې نيولـې وه او چې لـوی لرګـي او پړ ي به يې وليدل ورڅخه به رپـيدل .ستاسـو راتلونکـی خو بـه هلتـه ځلانـده او روښـانه وي چې کله تاسـو داسـلام مخلـص پيـروان او ريښـتيني ګـواهان شـئ . البـته ددې بـرعکس کـه چېرې ستاسـو چلـند همداسـې پاتـې شـو چـې دالله جلت عظمـته لـه خـوا چـې کوم هدايت رالـيږل شوی دی نـه مو ور ځېنې پخپله ګټه واخېسـته او نـه مـو نـور خلـک و رڅخـه ګټهور وګرزول خپـل ځان ته خو مسلمان وايې او داسـلام د نمايندګۍ اد عالر ئ خو په مجموعي تـوګه دخپلـې وينـا او عمـل پر اساس دشرک ، جاهليت ، دنيا پالنې او بداخلاقـۍ لـور تـه خلّـک رابولـې. دالله جلت عظمته کتاب (قرانکريم) مـو پـه تـا خونـو کـې غـورځولی او دژوند پـه ډګر دلارښوونې او رهنمايې لـپاره دکفـر او بـې دينـۍ دهـر لارښـود اودګمراهـۍ دهـرې سرچينې پـه لـوري ور درومـۍ پـه ژبـه خـو دالله دبندګـۍ دعـوه لـر ئ خو سـمه دمـه بندګـي دهرشـيطان او ابلـيس کـوئ ددوسـتۍ او دښـمنۍ معـيارمو

دنفس په غوښتنو ولاړ دی په هرحال کې داسلام نوم اخلئ په دې توګه خپل ژوند داسلام له برکتونو څخه بې برخې ساتئ.

نړۍ وال ددې پرځای چې ستاسو په لوري توجه وکړي نور درڅخه نفرت کوي په دې صورت کې خو نه ستاسو دنیا سمون موندلی شي اونه اخرت ددې انجام خو دالهي اصولو په برابر هماغه څه دی کوم چې تاسو یې وینئ او لرې نه بریښي چې ستاسو راتلونکی وخت له اوس نه هم بتر شي که داسلام نوم له ځانه لرې او په ښکاره توګه کفر غوره کړئ نو په وینا او عمل کې به مو مطابقت را مینځته شي خو دمسلمان په حیثیت اقرار او دنامسلمانۍ عملي تمثیل او ددین نمایندګي کول دنړۍ والو په وړاندې دهدایت دروازه بندول دي.

ددې جرم سزا چې په قران کریم کې لیکلې شوې وه دهغې ژوندی ثبوت یهودي قام ستاسو په مخکې دی دغه حکم هیڅوک نه شي ځنډولی برابره خبره ده که دمتحده قومیت شکل غوره کړې او یا خپل ځان دمسلمان قام په حیثیت څرګند کړئ له دغه عذابه دخلاصون یوصورت دادی چې له دې ګناه څخه لاس واخلئ.

## زموږ موخه( هدف )

اوس به زه په یو څو جملو کې تاسې ته څرګنده کړم چې موږ دکوم هدف لپاره راپورته شوي یُو ؟ موږ ټولو خلکو ته چې اسلام خپل دین بولي دعوت ورکوُو چې هغوی دې دغه دین خپل واقعي دین وګڼي دهر مسلمان په شخصي او انفرادي ژوند کې دې هم عملي او په ټولنیزه توګه دبشپړ قام په حیث دې هم په خپل ولسي ژوند کې دنافذولو لپاره تیاری څرګند کړی شي.

موږ دوی ته وایو چې تاسو په خپلو کورونو په خپله ټولنه ، ښوونځیو په خپل ادب او فرهنګ ، په خپل کاروبار او اقتصادي معاملاتو په خپلو انجمنونو او حکومتي ادارو او په مجموعي حیثیت په خپلې قامي پالیسۍ کې یې په عملي ډول قایم کړي او دخپلې وینا او عمل په وسیله دنړۍ والو په

مخکې ددې رېښتيني ګواهي ورکړئ موږ دوی ته وايو چې دمسلمان په حيثيت ستاسو دژوند اصلي هدف ددين اقامه اودحق دين ګواهي ده نو ځکه ستاسو دټولو هلو ځلو مرکز او محور بايد همدغه شی وي دهرې هغې خبرې او کارنه لاس واخلئ چې ددې پرخلاف وي چې دهغې له کبله داسلام ناسمه نماينده ګي کولی شي خپل ځان اسلام ته وراندې کړئ او بيا دخپلې بشپړې قولي اوعملي تګلارې جايزه واخلئ او خپل ټول کوښښونه په دې لاره کې په کار واچوئ ددې په خاطر چې دين په پوره ډول په عملي توګه قايم او ګواهي يې په ټولو شتو لارو چارو سمه اداء کړی شي او ددې په لور نړۍ والو ته داسې بلنه ورکړی شي چې دحجت قايمولو لپاره بس وي.

## زموږ دکار طريقه

داسلامي خوځښت دقايمولو يواځينی مقصد او دې هدف ته درسيدلو لپاره چې کومه لار موږ غوره کړې هغه دادی چې موږ له ټولو نه لومړی مسلمانانو ته خپل مسئوليت وريادوو او هغوی ته په ډاګه وايو چې اسلام څه شی دی ، غوښتنې يې کومې دي دمسلمانيدو معنا څه شی ده او له مسلمانيدو سره سم کوم کوم مسئوليتونه دمؤمن مسلمان پر غاړه کيږي ؟

کوم خلک چې په دې خبره پوه شي هغو ته بيا موږ وايو چې داسلام ټولې غوښتنې په انفرادي توګه نه شي عملي کيدی ددې لپاره ټولنيزې هلې ځلې په کار دي داځکه چې ددين ډيره لړه برخه انفرادي ژوند پورې اړه لري که هغه تاسو عملي کړئ نو پوره دين نه قائميږي اونه به ددې شهادت اداء کړی شي هر کله چې په ټولنيز ژوند دکفر نظام برلاسی دی . نو دانفرادي ژوند په زياترو برخو کې به هم دين قايم نه کړی شي ټولنيز نظام به ورځ په ورځ دانفرادي اسلام حدود په تدريجي توګه ورلنډوي نو ځکه دبشپړ دين دقايمولو او دهغې دصحيح شهادت دترسره کولو لپاره له دې نه پرته بله چاره نشته چې ټول داسې وګړي چې دمسلمانيدو دمسئوليتونو احساس اودهغو دعملي کولو پوخ تصميم ولري نو هغوی دې په خپلو مينځو نوکې

دیو ځای کیدلو مظاهره وکړي او په منظمه طریقه دې په عملي ډول ددین دقایمولو او نړۍ والو ته ددعوت ورکولو کوښښ وکړي او هغه خنډونه دې لرې کړي چې ددین دقایمولو او ددین ددعوت په لاره کې پراته دي .

## ټولنیز نظم

همدغه لامل دی چې په دین کې دجماعت او ټولنیز نظم وجود لازمي ګڼل شوی دی . ددین دقایمولو او ددین ددعوت دکوښښونو لپاره داترتیب اینښودلی شوی چې لومړی دې یوجماعت جوړ شي وروسته دې دالله په لار کې هلې ځلې پیل شي . همدغه لامل دی چې دجماعت اوتنظیم نه پرته ژوند ته دجاهلیت ژوند او له جماعت نه جلا کیدل داسلام نه دبیلیدو په معنا ښودل شوي دي.(۱)

---

ـ(۱):- دا هغه حدیث شریف ته اشاره ده چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : انا امرکم بخمسٍ الله امرنی بهن الجماعة والسمع والطاعة والهجرة والجهاد فی سبیل الله فانهٌ من خرج من الجماعة قید شبرٍ فقد خلع ربقة الاسلام من عنقه الاان یراجع ومن دعابدعوی ا لجاهلیة فهو من جثی جهنم قالوا یارسو الله وان صام وصلی ؟ قال وان صلی وصام وزعم انه مسلم (احمد اوحاکم).
ژباړه :- زه تاسې ته په پینځو شیانو امر کوم الله تعالی ماته پرې حکم کړی دی ـ جماعت او منظم ژوند ، سمع ، طاعت ، هجرت اودالله په لار کې جهاد . کوم شخص چې له جماعت نه یو ه لویشت نرې شي هغه داسلام پړی له خپل څټ نه وویستلو مګر داچې هغه بیا داسلام په لور راستون شي او چاچې دجاهلیت (یعنی انتشار او ګډوډۍ ) لورته دعوت ورکړ هغه دوزخي دی اصحابو کرامو عرض وکړ چې ای دالله رسوله که هغه لمونځ کوي او روژې نیسي؟ و یې فرمایل اګر که هغه لمونځ کوي او روژې نیسي او دمسلمانۍ دعوه لرې . له دې مبارک حدیث څخه درې خبرې ثابتیږي

۱ ) ددین دکار صحیح ترتیب دادی چې لومړی دې جماعت وي او دهغې تنظیم دې داسې وي چې هلته دې دیوه سرې خبره اوریدل کیږي اود هغه اطاعت ته دې خلک تیاروي بیا چې څنګه موقع برابره شوه دهغې مطابق دې هجرت اوجهاد کوي .

۲ : دجماعت او تنظیم څخه جلا کیدل ګواکې داسلام نه بیلیدل دي ددې معنا داده چې انسان دیوداسې ژوند په لور ورګرزي چې هغه داسلام نه وړاندې دجاهلیت زمانه ده چې په هغې کې ځان ځاني وه ۳ :- داسلام زیا تر ه غوښتنې او اهداف دجماعت او تنظیم او ټولنیزو کوښښونو په وسیله پوره کیدلی شي نو له همدې کبله پیغمبر (ص) له تنظیم او جماعت نه بیلیدونکی شخص سره له دې چې لمونځ او روژې نیسي داسلام نه وتونکی بللی دی دغه ددې مضمون شرحه ده چې حضرت عمر رضی الله عنه ویلی دي چې لااسلام الابجماعةٍ یعنې داسلام بشپړه عملي نمونه له جماعت نه پرته موجودیدلی نه شي (جامع ا لبیان لابن عبدالبر)

# دکار د رې لارې چارې

کوم خلک چې په دې خبره پوه شي او د دې پوهې له کبله په دوی کې د اسلامي مسؤلیت احساس دومره پیاوړی شي چې دوی د دین په خاطر خپل انفرادیت قربانولی او دجماعت او تنظیم دنظم پابندی ته غاړه ایښودلی شي نو موږ دوی ته وایو چې اوس ستاسو په مخکې درې لارې دي ستاسو خوښه ده چې په دې کې کومه یوه لار ستاسو خوښه وي هغه غوره کړئ .

لومړی : که چېرته ستاسو زړه زموږ په دعوت ، عقیده، نصب العین دجماعت نظام او دکار په لارو چارو ډاډه وي او پردې پوه واوسئ چې موږ دهغه کار لپاره راپورته شوې یو چې دقران او حدیثو له مخې داسلامي امت مسؤلیت دی نو موږ سره شامل شئ .

دویم : که چېرې په څه وجه تاسو پرموږ ډاډه نه اوسئ او یو بل جماعت او تنظیم ستاسو په نظر کې داسې وي چې هغه خالص په اسلامي طریقه داسلامي اهدافو په خاطر کارکوي نو په هغه کې شامل شئ موږ که چېرته داسې یو مثالي جماعت موندلی وی نو په هغه کې به شامل شوې وی داځکه چې موږ په کورکې بل کور جوړول نه غواړو

.دریم : که چېرې تاسو نه پر موږ ډاډ لرئ او نه پر بل چا نو تاسو ته بیا داسلامي فریضې داداء کولو په خاطر پخپله دجماعت او تنظیم جوړول په کار دي چې مقصد یې د دین قایمول وي .

په دې درې صورتونو کې چې تاسو هریو صورت غوره کړ ان شاء الله چې حق ته رسیدلي یاست .موږ هیڅکله هم دادعوی نه ده کړې او نه دادعوی کولی شُو چې یوازې زموږ جماعت پرحق دی او

څوک چې زموږ په تنظیم کې شامل نه دي هغوی ګواکې په باطله دي موږ هیڅکله هم خلکو ته دخپل جماعت او تنظیم په لور بلنه نه ده ورکړې بلکې زموږ بلنه خو دهغه مسئولیت په لوري وه چې دمسلمان په حیث زموږ او ستاسو پر غاړه پروت ؤ که چېرته تاسې دغه مسؤلیت ترسره کړ نو بیا خو تاسو پرحق یاست برابره خبره ده چې له موږ سره په ګډه کار کوئ او یا نه خوداخبره هیڅ وخت صحت نه لري چې نه خپله پورته کیږئ .اونه له بل سره ملګرتیا کوئ او په ډول ډول بهانو لاس پورې کوئ او ددین داقامې او دحق شهادت په سرته رسولو کې خنډونه رامینځته کوئ او یا په هغو چارو کې خپل ځواک په لګښت رسوئ چې له دین نه پرته دبل نظام اقامې ته ګټه پرې رسیږي .

که چېرته معامله یوازې ددنیا او ددنیا له خلکو سره وي نو بیا خو په حیلو او بهانو کار چلیده مګر دلته معامله دالله عزوجل سره ده چې هغه دزړونو په حال پوه او له هغه سره چل او فریب نه شي چلیدلی

## بیلا بیل دیني جماعتونه او تنظیمونه.

په دې کې هیڅ شک نشته چې دیو مقصد او یو کار لپاره بیلا بیل ټولګي جوړیدل په څرګنده توګه ناسم معلومیږي او په دې کې دمسلمانانو دپراګندګی اندیښنه هم وي ،البته له کوم وخت نه چې د اسلام نظام ړنګ شوی دی او پوښتنه ددې نظام دچلولو نه وي بلکې له نوي پیله دهغه دقایمولو وي نو داکار هیڅکله کیدی نه شي چې له لومړي وخت نه دې هغه ټولګی رامینځته شي چې په هغې کې ټول امت شامل او په هغه کې شمولیت دهر مسلمان وجیبه او له هغه نه جلا کیدل دجاهلیت او مرتد کیدلو سره یوشان مترادف وي .دکار په پیل کې له دې نه پرته بله چاره نه شته چې ځای پرځای دې مختلف

ټولګـي ددې مقصـد پـه خاطـر جـوړ شـي او هغـوی دې هـريو پـه خپـله اندازه په کار لاس پورې کړي . داټول تنظيمونه به په پای کې سره يو او مـتحد شـي پـه دې شـرط کـه چېـرته دوی دنفسـي خـواهشـاتو څخه پاک واوسي او دزړه لـه اخلاصـه داسلامي مقصـد لـپاره پـه اسـلامي طـريقه کاروکړي .

دايـو حقـيقت دی چـې دحق پـه لاره تلونکي تر ډير وخته جلا جلا نه شـي پاتې کېـدی داځکه چې دحق فطـرت داتحاد او اتفاق غـوښتنه کوي تفـريق او بيلتـون پـه هغـه صورت کې څرګنديږي چې له حق سره څه ناڅه دباطـل ګـډون او يـا پـه ښـکاره تـوګه يې حق په ځليدو او په دننه کې يې باطل وي .

## له ملګرو څخه زموږ غوښتنه:

اوس بـه زه پـه لنډو ټکـو کـې داخبـره څـرګنده کـړم چـې کـوم خلـک زمـوږ ټولګـې غـوره کـړي او لـه مـوږ سـره ګډون وکـړي نـو لـه هغـوی نه زموږ غوښتنه څه ده او هغوی به کوم کار سرتـه رسوي ؟

لـه هغـوی نـه زمـوږ غوښـتنې دادي چـې دغـه ديـن پـه بشپړې پوهې عقـل او فکـر سـره قـبول او پـه غـوښـتنو يـې خـپل ځـان ښـه پـوه کـړي او دعملـي کولـو لـپاره يـې بشـپړه ملاوتـړي ، دخـپلو افکـارو او اعمالـو څخـه هـرهغه شی وباسي چې هغه ددين داحکامو اودهغه د روح خلاف وي او ستاسـو بشـپړ ژونـد داسـلام ګواهـي ورکړي دغـه زمـوږ پـه ټولګـي کـې دشـامليدو فـيس او همدغـه زمـوږ دعضـويت اصـول دي زمـوږ دجماعـت دسـتور اوقـانـون ، دجماعـت نظـام او هر هغه شي ته چې موږ دعـوت ورکـؤو ټولـو تـه څـرګند دی مـوږ داسلام په اصولو کې چې قران کـريم اونـبوي سـنت يـې سرچينه ده نه څه کموالی او نه زيات والی کړی

دی که څېرې ثبوت داثابته کړي چې په دې کې دقران او سنت نه څه زيات والی او کموالی وجود لري موږ به هغه دخپل پروګرام ځينې لري کړو او دا کوم شي په هکله که راته ووايا ست چې داسلام په ښوونو کې شتون لري او له تاسو سره نه شته موږ به هغه ژرترژره غوره کړو . ځکه چې موږ خو دهمدې مقصد لپاره راپورته شوې يو چې بې له کموالي او زياتوالي بشپړ دين تطبيق او دهغه قولي اوعملي ګواهي وړاندې کړو که چېرته مو په دې خپل هدف کې خيانت وکړ بيا به له موږ نه ډير لوی ظالم نور څوک وي .

## کوم کار چې زموږ مقصد دی

په دې توګه کوم خلک چې زموږ دتنظيم په نظام کې شامل شي دهغوی لپاره زموږ پروګرام دی چې هغوی دخپل قول او عمل پر اساس داسلام شهادت ورکړي او ددين دنظام دقايمولو لپاره دې په ټولنيزه توګه هلې ځلې پيل کړي .ددې لپاره چې دخلکو په وړاندې دوی دقولي شهادت حق په بشپړه توګه سرته ورسوي .

دقولي شهادت په اړه موږ خپلو غړو ته داسې تربيت ورکؤو چې دهغې په وسيله هغوی دخپلو استعدادونو او لياقت سره برابر په ژبه او قلم داسلام دزيات معقول شهادت ورکولو قابليت ولري موږ دداسې ادارو او ځانګو دقايمولو هڅه کؤو چې هغه په منظمه طريقه داسلامي ادب په هره ځانګه کې دژوند دټولو مسايلو په هکله داسلامي ښوونو حقانيت څرګند کړي او ددې هدف لپاره دخپرونې دټولو شتو وسايلو څخه کار واخلي البته پاتې شو عملي شهادت نو دهغې په هکله زموږ کوښښ دادی چې لومړی خو دې هر شخص داسلام يو ژوندی ګواه اوسي او بيا دې دهغو افرادو څخه يوه داسې

منظمه ټولنه وده ومومي چې دهغې په دننه کې اسلام په خپل اصلي روح کې څرګند ولیدلی شي او په پای کې داټولنه دخپل زیار او کوښښ په وسیله دباطل په نظام غلبه حاصله او دحق نظام واکمن وګرزوي.

## اعتراضونه او دهغې ځوابونه

درنو ملګرو او ورونو!

دغه زموږ هدف او دغه مو ددین دغلبې په خاطر پلان او طرحه ده. زموږ داهیله نه وه چې دارنګه کار به دیو مسلمان لپاره داعتراض باعث وګرځي.

له کومې ورځې نه چې موږ په دې لاره پل ایښی دی داعتراضونو او شبهاتو یو خپانده سیلاب راروان دی دغه ټول اعتراضونه خو ددې ور هم نه دي چې پاملرنه ورته وشي او نه دټولو په هکله په دې غونډه کې څه ویل کیدی شي البته له دې فرصت نه په ګټې اخیستلو سره به زه دیو څو اعتراضونو په هکله څرګندونې وکړم چې دهغې له امله ستاسو په زړونو کې شکونه او شبهات خپرولی شي.

## نوې ډله

داسې ویلی شي چې ستاسو ډله په اسلام کې دیوې نوې ډلې د بنسټ تېګه ده. دغه وینا چې کوم خلک کوي هغوی ته ښایي دامعلومه نه وي چې د ډله بازۍ اصلي اسباب څه دي؟ په دین کې چې دکومو خبرو له امله تفرقه او بیلتون پیداکیږي په عامه توګه داټول یوازې په څلورو عنوانونو ویشل کیږي.

۱ : داچې په اصل دین باندې څه داسې شی اضافه شي چې هغه په دین کې نه وي او هغه د کفر او ایمان داختلاف او یاد هدایت اوګمراهی دبیلتون بنسټ وګرزولی شي .

۲ : داچې ددین یوه خاصه مسئله واخیستلی شي او هغې ته دومره اهمیت ورکړ شي چې دقران او سنتو له مخې دومره داهمیت وړ نه وي .او هغه د ډله بازی بنسټ جوړ شي .

۳ :-داچې په اجتهادي استنباطی مسایلو کې دومره ډیره مبالغه وشي او په دې خبرو کې دخپل مسلک نه پرته دنورو مسلکونو څښتنانو ته فاسق او فاجرووېل شي او یا دکفر فتوی پرې ولګولی شي .

۴ :- داچې دپیغمبر علیه السلام نه وروسته دیو خاص شخصیت په باره کې ډیره مبالغه وشي او دهغه لپاره دداسې یومنصب دعوی وکړی شي چې دهغه په منلو او یا نه منلو دسړي دمؤمن کیدو او یاکافر کیدلو انحصار وي او یا یوه ډله دعوی وکړي چې کوم خلک په دې کې شامل دي یوازې همدوی پر حق او پاتې نور ټول مسلمانان په ناحقه دي . اوس زه داپوښتنه کوم چې په دې څلورو عنوانونو کې موږ کومه غلطي او اشتباه کړې ده ؟

موږ خو دالله عزوجل ددین دقایمولو په مقصد راپورته شوي یو دمسلمانانو ترمینځ دبیلتون او جلاوالي لپاره اوچت شوې نه یو بلکې موږ دبشپړ اسلام د تطبیق لپاره راپورته شوي یو موږ مسلمانانو ته له دې نه پرته دبل هیڅ شي دعوت نه ورکړو چې راشئ ټول له موږ سره یوځای شئ اسلام په عملي توګه قایم کړئ او نړۍ والو ته ددې خبرې ګواهي وړاندې کړئ . موږ خو دخپل اجتماعیت اساس پوره پوره دین ګڼلی دی نه داچې ددین یوځو مسئلې او یایوه مسئله .

## په اجتهادي فقهي مسا ېلوکې زموږ تګلاره

په اجتهادي مسايلو کې موږ ټول مذهبونه پرحق بولو دکومو لپاره چې په شريعت کې ګنجايش موجود دی په دې مذهبونو کې چې تاسو پرچا اعتماد ولرئ ترخپل حده پرهغه عمل کوئ دځه خاص اجتهادي مسلک پر اساس ډله بازي روانه ګڼو

## له اندازې نه زياتې مبالغې ځخه ځان ساتنه

موږ د خپل ټولګي په هکله هېڅکله دانه د ي وېلي چې حق يوازې زموږ په جماعت پورې محدود دی په موږ کې دخپل مسئوليت د سرته رسولو احساس راپيداشو او موږ يې د سرته رسولو لپاره راپورته شُو تاسوته هم خپل مسؤليت درياد وو
اوس ستاسو خپله خوښه ده چې له موږ سره يوځای کيږئ او ياپه مستقله توګه خپل مسئوليت اداء کوئ او يا هرڅوک چې تاسو ته داسې ښکاري چې هغه خپله فريضه سرته رسوي نو له هغه سره يوځای شئ.

# د مسلمانانو تیروخت ، اوس او راتلونکي کړنلاره

دا د مولنا رحمة الله علیه د هغې تاریخي وینا متن ده چې د نومبر د میاشتې په یولسمه نیټه یې په کراچۍ کې د جماعت اسلامي کلنۍ لویې غونډې ته اوروله وه.

## دالله جلت عظمته ترحمد اوثناوروسته:

په تیر بحث کې مې د اسلامي امت د ټولنیز حالت تفصیلي جاج اخیستی ؤ او د امت د اوسنیو بدمرغیو اوستونزو اسباب موڅرګند کړي ؤ اوس به په دې خبره غور او فکر وکړو چې له دغو مشکلاتو او فسادونو څخه د وتلو لاره کومه ده ؟

البته ددغه اصلاحي پروګرام له بیانولو دمخه د یوې اشتباه له منځه وړل غواړم او هغه دا چې که چیرې زه په اوسني وخت کې د مسلمانانو بد حالت ته ګوته ونیسم او د هغې د موجودو اسبابو او عواملو له بیانولو وروسته خپل پروګرام وړاندې کړم او د هغې په ذریعه تاسو ته د اصلاح او سمون هیلې درکړم. نو تاسې دا ګومان ونه کړئ چې دا خلک به د مؤقتي حالاتو د سمون په خاطر سره راټول شوي وي او د پخواني تعمیر یو څه رغونه به غواړي که ستاسو همدا ګومان وي نو د اله حقیقته لرې خبره ده. واقعیت دادی چې موږ یو ځانګړی هدف لرو او هغه دادی چې:

هر هغه نظام دې له بېخ او بنسټ څخه را وویستل شي چې له الله جلت عظمته نه په خپلواکۍ او له اخرت او د پیغمبرانو علیهم السلامو له لارښوونو څخه په بې پروایې اینبودل شوی وي، ځکه چې دا نظام د بشریت لپاره د تباهۍ او بربادۍ سبب دی او ددې پر ځای دې هغه نظام عملاً ټینګ شي چې د الله په اطاعت او د اخرت د ورځې په باور او د پیغمبرانو په لارښوونو یې د اساس ډبره ټینګه شوې وي، دا ځکه چې په دې نظام کې په عملي توګه د انسان بری او نیکمرغي

نغښتي ده.زموږ د ټولو کوښښونو بنسټيز هدف همدغه دی زموږ هر يو عام او خاص پروګرام هر وخت او هر ځای کې چې وي خپلو ملګرو ته په همدې لارې د تللو حکم کوؤ. موږ تر ټولو د مخه دغه مبارک بدلون په خپل هيواد کې غواړو. ترڅو د نړۍ والو لپاره د اصلاح نمونه او وسيله وګرځي. که چيرې موږ د خپل هيواد اوسنی بد بختي و شيرو نو په دې کار کې به مو لومړی مقصد دا وي چې دا شيان را ته هدف ته د رسيدلو په لار کې خنډ دي موږ به هيڅکله د نړيدلې او وراسته نظام په ترميمولو او بيارغونه اکتفا ونه کړو. زه وايم چې که چيرې دغه نيمګړتياؤ له سره شتون نه درلودلی بيا به مو هم د خپل مقصد لپاره کار کاؤ. چې له لومړی ورځې نه مو ستاسې په مخ کې اينبی دی.موږ هغه تلپاتې ابدي او نړۍ واله موخه لرو او په هر حالت کې موږ ددې لپاره په کار بوخت يو برابره خبره ده چې د ځمکې په کومه خنډه کې و اوسو.

## د تير تاريخ ارزونه

موږ به د خپل ولس اوسنی نيمګړتياوې ارزوو او لږ شان به د خپل تير تاريخ حال هم واخلو. ترڅو په ښه توګه څرګنده شي چې ايا دغه نيمګړتياوې ناڅاپه په اسلامي ټولنه کې رامېنځته شوې او که کومه بله ژوره ريښه او ترشايې د اسبابو او لاملونو يوه اوږده لړۍ هم وه.ترڅو پورې چې له دې لوري د معاملې نوعيت په ښه توګه ونه پيژنو نه به موږ ته د موجوده خرابيو او نيمګړتياؤ پراختيا او ژوروالی څرګند شي او نه به د اصلاح احساس او جذبه په بشپړه توګه سرته ورسيږي.موږ د جزيي اصلاح هلې ځلې بې ګټې بولو د يو منظم صالح ټولګي دهر اړخيزو هلو ځلو په نتيجه کې چې ترڅو پورې د ژوند په

نظام کې یوه اغیز ناکه بنسټیزه تبدیلي رامېنځته نه شي له کوچنیو او وړو تدابیرو څخه کومه ګټوره نتیجه نه تر لاسه کیږي .

زموږ د تاریخ ډیره مهمه غمیزه په نولسمه عیسوي پیړۍ کې زموږ پر هیواد دزرګونه کیلومتره لرې واټن څخه د یو نا مسلمان قام واکمني او د دوی د باداری غړوندی زموږ غاړې ته پریوتل ؤ.اوس

لومړۍ پوښتنه داده چې دا پیښه څنګه رامینځته شوه ؟ایا دا کومه ناڅاپه دردناکه حادثه وه چې له اسبابو پرته پر موږ راپریوته ؟! یا داد الله( ج ) معاذ الله کوم ظلم او زیاتی ؤچې موږ ورسره مخامخ شولو؟ایا موږ په بشپړه توګه په سمه لار روان ؤ او هیڅ رنګ کمزورتیا او تقصیر مو نه درلود ؟

واقعیت دادی چې په موږ کې ځینې نیمګړتیاوې او فسادونه ؤ چې په پای کې زموږ د بربادۍ ا_ غلامۍ باعث وګرزېدل. ایا اوس مو هغه عیبونه له خپل ځانه لرې کړې دي او که اوس یې هم لړۍ ادامه لري؟

دویمه پوښتنه داده چې دغه بلا چې له بیرونه راغلله او پر موږ وګومارل شوه ایا دا یوازې د غلامۍ بلا وه او که په خپل څنګ کې یې د اخلاقو،افکارو، تهذیب، مذهب، تمدن، اقتصاد ، او سیاست نورې بلاګانې هم له ځانه سره درلودلې ؟ که چیرې دا خبره صحت ولري نو بیا دې خبرې ته پاملرنه په کار ده چې دا څنګه بلاګانې وې ؟په کوم کوم حیثیت یې پر موږ اغیزه وکړه ؟اوس مهال یې د پردیو ځواکونو ترماتې وروسته په موږ کې کومې اغیزې پاتې دي ؟

دریمه پوښتنه دا ده چې د هغو بلاګانو په وړاندې زموږ غبرګون څه ؤ ؟ایا دا یو غبرګون ؤ ؟او که د بیلا بیلو ډلو په ترڅ کې ترسره شو. که چیرې د بیلا بیلو ډلو غبرګون یې وبولو بیا نو په هغو کې د هر

يوه بنې اغېزې کومې دي چې نن زموږ په ولسي ژوند کې تر سترګو کيږي ؟ زه دغو درې وارو پوښتنو ته ځوابونه وايم. ترڅو زموږ د اوسنيو بدمرغيو او نيمګړتياؤ پوره جرړې راوسپړل شي او تاسو يې ووينئ چې د هر فساد او بې لارۍ بنسټ څه شی دی او رينبې يې تر کومه ځايه پورې غځيدلې دي او له کومو اسبابو څخه تغذيه کيږي. له دې نه وروسته به د اصلاح او سمون بشپړ پروګرام ستاسو مخې ته کښېږدم

## زموږ د غلامۍ اسباب او عوامل

په تيره شوې پېړۍ کې چې کومه غلامي پر موږ وګومارل شوه هغه په حقيقت کې زموږ د پيړيو پيړيو پر له پسې مذهبي، اخلاقي او ذهني انحطاط او پستۍ نتيجه وه چې په بيلا بيلو حيثيتونو يې ورځ په ورځ د ذلت او بدبختۍ لور ته بوتلو تردې پورې چې په دغو لوړو او ژورو کې داسې ځای ته ورسيدو چې هلته بيا په خپلو متو او ځواکونو دريدل موږ ته ممکن نه ښکاريدل په دغسې حالت کې ارومرو د يو شان بلا تسلط او واک پر موږ په کار ؤ د الهی فطري قانون سره سم هغه بلا پر موږ مسلطه شوه.

## هغه وخت زموږ ديني حالت

ددې خبرې د ثبوت لپاره تر ټولو مخته هغه مهال د ديني حالت جاج اخيستل ضروري دي، دا ځکه چې زموږ لپاره تر ټولو زيات ارزښت د خپل دين دی. هغه زموږ د ژوند د ملا د تير حيثيت لري چې له موږ څخه يې يو قام او يو ملت جوړ کړی دی زموږ تير تاريخ ددې خبرې ګواه دی چې په دې هيواد کې اسلام د يو منظم کوښښ په نتيجه کې نه دی خپور شوی. البته دسندهـ لومړنۍ اسلامي فتحه او له هغې

را وروسته یوه پیړۍ لـه دې نـه جلا او ځانګړی مقام لري له دې دور نه ور اخوا پـه هیڅ وخت کې داسې یـو منظم ځواک نه ؤچې هلته یې یو لـورته اسلام خـپور کـړی وي او چـې چېـرته خـپور شـوی، هلـته یـې د مضبوط کولو او استحکام هلې ځلې هم شوې اوسي.

حقیقت دادی چې دلته اسلام په غیر منظم شکل خپور شوی چیرته کـوم د دیـن عـالـم راغلـی چې د هغـه د اغېـزې لـه املـه ځینـې خلـک پـه اسلام مشرف شوي. کله کوم تاجر یو ځای ته په سفر تللی له هغه سره د اړیکو لـه امله ځینو خلکو سپیځلې کلمه ویلې او اسلام یې قبول کړی او کلـه کلـه یـو سپیځلی پـاک نفسـه شیخ او د طـریقت پېـر یـو ځـای ته رسیدلی چې د هغـه د لـوړو اخلاقـو او پاکیـزه ژوند پـه لیـدلو سره ډیر خلک د اسلام په دایره کې شامل شوي.

دغـو بـیلا بـیلو اشخاصـو سره نه داسې وسایل وو چې کوم خلک د دوی پـه لاس مسـلمان شـوي د هغـوی د ښـوونې او روزنـې انـتظام یـې کـړی وی او نـه د وخت له مسلمانو چاروا کو سره داسې څه فکر او سوچ موجـود ؤ چـې د الله جل جلاله د نیکو بندګانو د کوښښونو له امله چې پـه کـوم ځـای کـې اسلام خپـریده هلـته یـې د هغوی د ښوونې او روزنې انتظام هم کړی وی.

ددې غفلت لـه املـه زمـوږ عـام وګـړي لـه پیله په ناپوهی او جهالت کـې اختـه ؤ. لـه تعلیمـي ادارو څخـه یـې کـه چېـرې کـومـه استفاده کړې یـوازې د ټـولنـې مینځنۍ طبقې به ور څخه کړې وي. د ټیټې طبقې عـام وګړي د اسـلامي تعلیماتو او د هغې له اصلاحي اغیزو څخه بې برخې پاتـې شوي دي. ددی کار نتیجه موږ په خپلو سترګو وینو چې ډلې ډلې نامسـلمان وګړي پـه اسلام مشرف شول خو تر ننه پورې په هغوی کې د جاهلیت ډیـر رسومات شتون لـري چـې داسـلام له قبلولو نه مخکې په

کې موجود ؤ. دا خو لا څه کوئ د هغوی افکارو او خیالاتو بدلون نه دی موندلی اوس هم په هغوی کې ډیر مشرکانه عقاید او اوهام موجود دي چې هغوی ته د خپلو نا مسلمانو پلرونو او نیکونو څخه په میراث پاتې ؤ.

تر ټولو لوی بدلون چې تر مسلمانیدو وروسته په کې رامینځته شوی هغه دا ؤ چې هغوی د پخوانیو معبودانو پر ځای ځینې نوي معبودان د اسلام په تاریخ کې وموندل د پخوانیو اعمالو اوکړو وړو نوم یې تغیر کړ او په اسلامي اصطلاح ګانو کې یې یو څه نوي نومونه غوره کړل چې په حقیقت کې عمل هماغه پخوانی ؤ.

داسلام ټول دین یوازې په کلمه ویلو، ظاهرې شکل او د اسلام په دعوی پورې منحصر پاتې شو. ددې خبرې ثبوت که غواړئ نو کومې سیمې ته ورشئ د عامو خلکو د مذهبي او دیني حالت جاج واخلئ او بیا تاریخي لحاظ نه پلټنه وکړئ چې تر اسلامه د مخه په دې سیمه کې کوم مذهب دود ؤ تاسو به وګورئ چې نن هلته د پخواني مذهب عقاید او اعمال په بله بڼه څرګند شوي. د مثال په توګه چېرته چې مخکې د بودا مذهب رواج درلود هلته به یو وخت د بودا د اثارو عبادت کیده چېرته به یې غاښ او چېرته به یې هډوکی اینبودل شوي ؤ. اوس به وګورئ چې په همدې سیمه کې هماغه معامله د رسول الله صلی الله علیه وسلم له مبارک ویښته او یا د دین د نورو بزرګانو له اثارو سره کیږي. په همدې توګه تاسې د پخوانیو مسلمانو قبیلو د اوسني رسم او رواج جاج واخلئ او بیا بشپړ تحقیق وکړئ چې د هغو پرګنو په نامسلمانو ښاخونو کې چې کوم رسمونه او رواجونه موجود ؤ. د دواړو تر مینځ به ډیر لږ بیلتون ومومئ دا ددې خبرې څرګند ثبوت دی چې په تیرو شویو پیړیو کې چې کوم وګړي د مسلمانانو د

ټولنيزو چارو مشران پاتې شوې خپلې دندې او مسؤليتونه يې په ښه توګه سرته نه دي رسولې. هغوی د اسلامي دعوت او بلنې له مشرانو او لويانو سره هيڅ ډول مرسته نه ده کړې په مليونونو خلک د اسلام حقانيت او ريښتينولۍ جذب کړي او د اسلام دايرې ته راننوتلي مګر کوم خلک چې د اسلام او مسلمانانو د چارو منتظمين او مشران ؤ. هغوی د الله د بندګانو د ښوونې، روزنې، ذهني اصلاح او د ژوند د تزکيې، هيڅ انتظام ونه کړ، له همدې امله دغه قام د مسلمانېدو سره سره د اسلام له برکتونو او د توحيد له نعمتونو څخه په بشپړه توګه بې برخې او له هغو زيانونو څخه خوندي پاتې نه شو چې د شرک او جاهليت لازمي نتيجه وه.

بيا وګورئ چې په هغو تيرو پيړيو کې زموږ د علماؤ څه حال ؤ. واقعيت دادی چې د اسلام څو تنو سپيڅلو بزرګانو او مشرانو د دين غير معمولي خدمت سرته رسولې چې اغيزې يې مخکې او اوس هم ګتورې دي. خو په عمومي توګه چې د دين علماء په کومو چارو کې بوخت ؤ. هغه دا ؤ چې په کوچنيو فروعي مسايلو کې يو تر بله مناظرې وکړي له وړو او کوچنيو مسايلو څخه لويې مسئلې جوړې کړي او لوی مسايل د خلکو له سترګو پټ وساتي د دغو مذهبي اختلافونو له امله خپلوا که ډلې جوړې شوې او په ډله ئيزو جګړو يې لاس پورې کړ او يو پر بل يې د کفر فتواوې ولګولې.

د منطق او فلسفې په زده کړه کې يې ټول عمر تير کړ له قرآن او حديثو سره يې نه خپله مينه درلوده او نه يې ورته نور خلک وهڅول په فقه کې يې که کومه دلچسپي ښودله هغه هم په جزيې مسايلو کې وه. په دين کې د ژورې پوهې په لور کومه توجه ونه شوه. اوس د ټولو جګړو، مناظرو او ډله بازيو او فتنو ميراث موږ ته په برخه شو.

د صوفيانو او پيرانو حال وګورئ تاسو ته به پخپله معلومه شي چې د څو پاکو او سپيڅلو شخصيتونو نه پرته چې د اسلام په حقيقي تصوف يې عمل کړی او نورو خلکو ته يې دغه تعليم ور رسولی دی نور ټول د داسي تصوف معَلمين او مبلغين وګرځيدل چې په هغه کې د عيسوي رهبانيت، زردشت او مانويت (هندي جوګيانو) فلسفې راننوتې دي د اسلام خالص او سوچه کړه وړه په ډيرې سختۍ سره په دوی کې په سترګو کيږي د الله بندګانو به د دوی په لوري پدې هيله مراجعه کوله چې د الله لاره به ور ته ور وښيئ مګر متاسفانه دوی به هغوی ته نورې لارې ور ښودلې هر کله چې تر دوی وروسته بل نسل راغی او د هغوی په ګدی کښيناستل نو هغوی په دغه تصوفي ورثه کې د خپلو بزرګانو پيري هم شامله کړه د هغوی د تربيت او ارشاد پر ځای يې د نذر او نياز طريقه هم رواج کړه.واقعيت دادی چې چيرته د پيرانو او د هغوی د پيروانو او زامنو اثر او رسوخ پاتې شوی هلته د دين صحيح علم په هيڅ ډول چاته نه دی رسيدلی دا ځکه چې پيران او د هغوی خليفه ګان په دې ښه پوهيدل چې په عامو خلکو د دوی د خدايې او جادو طلسم تر هغه پورې نه شي چليدلی ترڅو پورې چې دوی له خپل دين څخه ناخبره پاتې شوې نه اوسي.

## زموږ اخلاقي حالت

دا زموږ ديني او مذهبي وضعيت ؤچې موږ يې په نولسمه عيسوي پيړۍ کې د غلامۍ تيتې کندې ته وغورځولو نن ورځ د ازادۍ د سباؤن په پيل کې هم زموږ همدغه حالت دی. اوس اخلاقي حالت ته وګورئ تاسو ته به ځرګند شي چې په عام ډول هغه مهال زموږ مينځنۍ طبقه چې د هر ولس د ملاتير حيثيت لري د پر له پسې

اخلاقـي انحطاط له امله په بشپړه توګه يې د بازاري خرو حيثيت غوره کړی ؤ. د دوی دغـه اصـول او قانـون ؤ چـې هـر څـوک د واک پـر ګـدۍ کښيني دوی بـه يـې د مـزدورانو پـه تـوګه خدمت کـوي او د هغـوی لـه خوښـې سره سم بـه چـارې پـر مـخ بيايـې. پـه همـدې اساس پـه زرګونو او لکونو خلـک دلـته د پيسـو پـه وسيله د عسکرۍ لپـاره تيار ؤ واکمنې طبقـې بـه د خـپلو مخالفيـنو د ځـپلو لـپاره ور څخـه ګـټه اخيسـتله پـه زرګـونـو او لکونـو همدغسـی وګـړي موجـود ؤ. چـې د هغـوی مـادي او معنـوي صلاحيتونه بـه يـې پـه پيسـو خـپل کـړل هـر يـو فاتـح ځـواک بـه د خپلې واکمنۍ د نظم او نسق په خاطر ور څخه نه يوازې داچې استفاده کـوله بلکـې د خـپلو سياسـي مکـرونو او فـريبونو لـپاره بـه يـې هـم استعمالول

زمـوږ لـه دغـې اخلاقـي کمـزورتيا څخـه زمـوږ هـر يـو دښـمن ګـټه پـورته کـړې برابره خبره ده که هغه مرهټې ؤ او که فرانسوی، په پای کې دغـې سيمـې تـه انګريـز لاس راوغـځولـو زمـوږ د عسـکرو پـه وسيله يې زمـوږ ګـران هيـواد فـتح کـړ او زمـوږ د لاسونو او دماغونو پـه مرسـته يـې پـر مـوږ حکـومت وکـړ. زمـوږ اخـلاق دومره پريوتی ؤ چې په دغه بدترين خصـلت مـو افـتخار کـاوه. زمـوږ ولسـي شـاعر غالـب يـې پـه ولسـي او قامي وياړونو کې شميري

سوپشت سی هی پيشۀ ابا سپاه ګري

يعنـی لـه اوو نسـلونو را پـديخـوا زمـوږ او زمـوږ د پلـرونو کـار سپاهی تـوب ؤ په داسې حال کې چې چپړاسي توب په حقيقت کې د يو قـام لپاره د ننګ او شرم خبره ده. د هغه سړي به څه حيثيت او مقام وي چې نـه حق پيژني او نـه باطـل او نـه خـپل او پردی چـې څـوک هـم ده تـه خوراک او پوښـاک برابـروي. د هغـه لـپاره د ښـکاري سـپي پـه شـان

تیاروي او دیته نه ګوري چې زه د څه په خاطر په چا باندې څپېړې وار وم.

په هغوی کې دیانت، امانت او له هر چا سره وفا کول ډېره لږې خبره وه هغوی د خپل ولس د دښمنانو په لاس خپل ځان او ولس خرڅولو، نو له داسي وګړو د سپېڅلتیا، او ښه احساس طمعه څنګه کېدی شوه هغوی به څنګه رشوت او خیانت د الله فضل نه ګڼلو او څنګه به ابن الوقت نه ؤ ؟او څنګه به په هغوی کې دغه صفت نه پیدا کیده چې د چا له خوا دوی ته تنخوا ورکول کیده د هغې لپاره د خپل ایمان او وجدان پر ضد ټولو جرمو نو کولو ته تیاروو.

له دې نه تاسو جاج اخیستی شي چې زموږ دولتي مامورینو د همدغو صفاتو څرګندونه کوله دا کوم ناځاپه عیب نه دی چې په دوی کې را مېنځته شوی بلکې دا کار زموږ په ولسي روایاتو کې ژورې ریښې لري.ډیره د افسوس خبره به دا وی چې سبا ته هم دښمن زموږ پر خلاف ور څخه ګټه واخلي. حقیقت دادی چې نن هم زموږ سیاسي مشران، عام وګړي د خپلو شخصي ګټو په خاطر استعمالوي په کار خو داؤ چې دوی زموږ د ولس په ټپونو پټۍ لګولې وی نه دا چې د هغوی د رنځونو او ټپونو څخه یې ګټه او خوند اخیستی وی.

زموږ د ټولنې د مینځنۍ طبقې په کمزوریو کې د دین علماء هم شامل دي. اګر که ډیر لږ شمیر وګړي په دوی کې هم د لوړو اخلاقو او پاخه سیرت سپیڅلې شخصیتونه ؤ چې هغوی خپل مسؤلیت په سمه توګه سرته ورسولو او خپل ځانونه یې له اسلامه ځار کړل په پیسو خرڅ نه شول نه یې له باطل سره روغه جوړه وکړه او نه یې کفر ته سر ټیټ کړ.البته په عام شکل چې کوم اخلاقي رنځ د مینځنۍ طبقې په خلکو کې ؤ په علماؤ کې هم د هیرولو وړ نه دی. په دوی کې زیاتره تنخوا

خواره ؤ چې د امیرانو او بادشاهانو له دربارونو سره یې تړاؤ درلود د هغوی د خوښې سره سم به یې فتواوې ورکولې او دیني قوانین به یې تعبیرول هغوی ته شخصي ګټو د دین د غوښتنو په وړاندې د لومړي توب حیثیت درلود له همدغه امله یې ریښتیني او حقاني علماء تر فشار لاندې نیول.

د بې اثرو او غریبو خلکو په وړاندې د دوی دیني حس دومره تند او تیز ؤ چې د مستحباتو او مکروهاتو او کوچنیو جزیي مسایلو تیریدلو ته ورته تیارنه ؤ او په همدې موخه به یې شخړې او مناظرې هم کولې خو د دولت او قدرت د څښتنانو په وړاندې به که هغه مسلمان ؤ او که کافر تل روغې جوړې او مصحلت ته تیار ؤ بیا جزیې مسایل خو لاځه کوې په کلي مسایلو کې به یې دوی ته رخصتونه لټول.

پاتې شوه د امیرانو او بادشاهانو طبقه هغوی تـــه په د نیاکې د ووشیانو ډیر اهمیت درلود یوه خیټه او بل شهوت له دې دووشیانو پرته دوی ته هیڅ شي ارزښت نه درلود ټول کوښښونه او هلې ځلې یې همدغو دووشیانو ته وقف کړې وې د ، ولس مال، دولت صنعت او کسبونو ته د پورته دوو شیانو د خدمت او پالنې په خاطر ورده ورکولی شوه له دې نه علاوه چې هر یو امیر به د خپل دولت ځواک د کوم یو بل لوی مقصد په خاطر په کار راوستلو ټول امیران اووالیان به سره یو ځای شول د هغه د راپرځولو کوښښ به یې کاؤ او د خپل قام له دښمنانو سره به یې د هغوی پرخلاف ساز شونه کول.

## ذهني او فکري حالت

له دې نه وروسته چې موږ په تاریخي لحاظ د خپل ذهني حالت جاج اخلو نو څرګندیږي چې له ډیرو پیړیو راپدیخوا زموږ د علمي

څېړنو كار په بشپړه توګه بندؤ زموږ دلوست او تدريس ټول دارومدار يوازي لومړنيو علومـــو پورې منحصرؤ زموږ د تعليم په نظـــام كې د اخبره د خلكو ذهن تـه پر يوتې وه چې پخوانيو اسلافو كومي علمي هلې ځلې كړي هماغه د علم او تحقيق وروستنۍ خبره ده پردې نور څه اضافه كيدلى نه شي لوى نه لوى علمي خدمت دادى چې دهغوى په ليكنو دې حاشيې او شرحې وليكل شي او د هغوى په ليكنوكې دې زموږ مدرسين او مصنفين مشغول وي كوم نوي فكر او نوې څېړنې مـوندل پـه هغـو پيړيو كې زمـوږ پـه ستركو نـه ښكاري لـه همدى امله دجمود او خمود يوه بشپړه فضا زموږ په ذهنونو حاكمه وه.

څرګنده ده چې كوم قام په دغسې حالت كې مبتلاوي زيات ازاد نـه شي پاتـې كـيدى هغـه بـه ارومـرو د يـو قـام لـه خـوا پـه شكست محكوميږي هغـه څـوك چې په ځركت وي خپل عام ولس راويښوي او پـه خـپلو افـرادو كې د فرايضو او مسئوليتونه د سرته رسولو احساس پيداكوي هغـوى خپل مسؤليت پيژني د احساس خلك دي د خـپلو كاركونكـو او مسئولينو تـرمينځ ـ مستقلې وفـا دارۍ او مخلصـانه مرستې تړاؤ رامينځته كوي د هغوى پوهان په نويو تحقيقاتو او څيړنو لاس پورې كوي .د هغـوى باتـد بيـره خلـك نوې كشـف شوې شيان د ژوندانـه پـه چاروكې د پـه كار راوړلو سپارښتنه كوي د هغوى هرګام د تهذيب او تمد ن په بيلا بيلو څانګو كې د پرمختګ په لوري مخكې روان وي.

د داسې قـام پـه وړانـدې جامـد ،د ضعيفو اخلا قـو خاونـدان او پـه ناپوهۍ او فقر اختـه وګړي څنګه پخپله سيمه او ځمكه قـابض پاتې كـيدى شـي.نـو پـردې اسـاس دا كـومه تصـادفي پيپينـه نـه وه بلكې د

فطرت غوښتنه وه چې موږ یوه موده د لویدیځ د پرمختللیو قامونو تر واک لاندې غلامان پاتې شو.

## دلویدیځ تهذیب اخلاقي او فکري بنسټونه

اوس موږ ته سوچ په کاردی چې کوم قام له لویدیځ نه دلته راغی او پر موږ واکمن او موږ مغلوب و ګرزیدلو او دهغوی د نوکرۍ کړۍ زموږ غاړې ته ولویده هغوی له ځانه سره څه راوړي ؤ؟

* د هغوی افکار او نظریات څه شی ؤ ؟
* د هغوی مذهب او فلسفه څه وه؟
* د هغوی اخلاقي اصول او قواعد څه شی ؤ؟
* د هغوی تمدني او تهذیبي طریقه څنګه وه؟
* د هغوی سیاست په کوموبنسټونو ایښودل شوی ؤ؟
* د هغوی لـه دې ټولـو شـیانو څخـه مـوږ څـنګه اغیـزمن شولو؟

## مذهب

په کومو پیړیو کې چې موږ د مسلسل انحطاط اوذلت په لوري روان ؤدا هماغه پیړۍ وې چې په هغې کې اروپا دنوې ژوند په لوري خوځښت پیل کړی ؤ.ددغه خوځښت پیل د اروپا د علمي شخصیتونو او کلیساترمینځ لـه ټکرنه رامینځته شو په پای کې دغه ټکر په یوې داسې غمیزې پای ته ورسید چې نه یوازې د اروپا بلکې د ټولې نړۍ لپاره د لوټ ، ظلم او چپاول وړثابت شو.

ددې ټکر اصلي کیسه داسې وه د پخوانۍ زمانې عیسوي مذهبي پوهانو د خپلو مذهبي عقایدو او د انجیل کایناتي تصور او د

انساني فکر تاداؤ د یوناني فلسفې او ساینس په نظریاتو ، دلایلو او معلوماتو کېښود .دوی اټکل کاؤ که چېرې څوک له دغو بنیادونو سره معمولي ټکر وکړي نو دغه ټول عمارت به پرځمکه راونړیږي اوله دې سره به دین هم ختم شي له همدې کبله هغوی هیڅ رنګ تنقیداو څېړنې ته تیارنه ؤ چې دیوناني فلسفې او پخوانې ساینس علمي حقایق له خطر سره مخامخ کړي هیڅ ډول داسې فلسفیانه تفکر یې نه شو زغملی چې له دغو منل شویو حقایقوسره سمون ونه خوري او هیڅ کله به داسې تصور او فکر و،نه منل شي چې د هغې له امله د کلیسا رجال په خپل علم کلام کې تجدیدنظرته اړکړي اونه به داسې علمي څېړنو ته اجازه ورکړي چې په هغې کې دکایناتو او انسان په هکله د بائیبل او د هغوی د متکلمینو منل شوي حقایق ناسم ثابت کړی شي

په دې توګه دوی هرشی د خپل مذهب او پر مذهب باندی دولاړتمدن ، سیاست او معیشت لپاره نیغ په نیغه د خطر زنګ باله ددې پر عکس کوم و ګړي چې د نویو علومو د خوځښت په سرکې ؤهغوی ګام پرګام د یونان پخوانی فلسفې او پخوانیو ساینسي معلوماتو ته د انتقاد ګوته نیوله خو څو مره چې دوی په دغه ډګرکې پرمخ تلل د کلیسا مذهبي شخصیتونو د خپل مذهبي اقتدار په زور په ډیرې سختی سره ددوی مقابله کوله

د تیر وخت د پټو سترګو منل شوې ساینسي او فلسفي حقایق له نویو ساینسي اکتشافاتو سره په ټکرؤ خو د کلیسا دیني رجال او شخصیتونه هیڅکله دې ته تیار نه ؤ.چې پخواني نظریات تجدید کړي سره له دې چې د نویو ساینس پوهانو نظریات او افکار په غو څو او واقعي حقایقو ولاړؤ.خود کلیسا دیني شخصیتونو د تېرو ساینسي

نظریاتو د څیړنې او دو باره کتنې پر ځای د نویو ساینس پوهانو د سرونو الوزول غوښتل چې په نتیجه کې نوي سانیس پوهان له دین اومذهب سره په شخړه او مخالفت واوښتل.(۱)

ځومره به چې د مذهب او دیني شخصیتونو دښمني له دوی سره سختیدله په هماغه اندازه دغې کرکې نفرت او دښمنۍ وده موندله دهغوی د ښمني یوازې مسیحیت او کلیسا پورې محدوده پاتې نه شوه بلکې ټول ادیان یې ددښمنۍ هدف وګرزیدل.

دنویو علومو او نوې تهذیب توغ ریږنکو احساس کړې وه چې مذهب او دین پخپله په عقلي دلایلو ولاړنه بلکې دایو ړوند تقلید دی چې د علم له روښنایې څخه ویره لري.هر کله چې د علم په ډګر ساینس پوهان پرمخ ولاړل دسیاست اقتصاد او د ټولنیز نظام په بیلابیلو ډګرونو دغه اخ او ډب پراختیا وموندله په پای کې د کلیسا د بشپړ شکست نه وروسته د نوي تهذیب د علمبردارانو په قیادت کې د ژوند د نوي نظام ډبره کیښودل شوه چې له دې څخه دوه نتیجې راووتلې چې د راتلونکې وخت په انساني تاریخ یې بشپړه اغیزه وغورزوله

لومړی: دا چې نوې نظام د ژوند په هره څانګه کې په عملي ډول دین او مذهب بې واکه کړ او د هغه د ایره یې یوازې شخصي عقیدې او عمل پورې محدوده کړه داخبره دنوي تهذیب پــــه بنسټیزو اصولو کې داخله شوه چې مذهب او دین په سیاست ، اقتصاد ، اخلا قو ، قانون ،علومو او فنونو لنډه دا چې د ټولنیز ژوند په هیڅ یوه

---

(۱) مولنا ابوالحسن ندوي صیب د څیړنې له مخې د کلیسا پاپانو ۳ لکه او دیرش زره ساینس پوهان وژلې دي او په دوی کې یې ۳۰ زره ژوندي سوزولي (ژباړن)

ځانګه کې د مداخلې حق نه لري دین یوازې دبنده او رب ترمینځ داړیکو تینګولو نوم دی هر شخص کولی شي په خپل ځانګړي ژوند کې الله عزوجل او پیغمبر ومني او په لار ښوونو یې د شخصي ژوند په دایره کې عمل وکړي مګر د ټولنیز ژوند ټول پروګرام دې د دین له واک او سلطې څخه بیرون وي.

دویم: دا چې د نوې تهذیب په رګ رګ کې له الله عزوجل څخه د بیزارۍ او لادینۍ تصور پیوندؤ علومو، فنونو او ادب چې څومره پرمختګ وکړ د هغو په تل کې د دین دښمني پرته وه دغه طرز فکر چې څومره وپالل شو او چېرته چې یې ریښې ورسیدلې هلته همدغه خبره زمنزمه شوه چې دین کوم شی وړاندې کوي برابره خبره ده چې هغه دالله عزوجل، اخرت اودوحی او رسالت عقیده او یا اخلاقي او تمدني اصول هم اوسي دشک مستحق دي او د هغوی د صحت ثبوت هیچېرته نه شي موندلی نو پردې اساس له دې څخه انکار کول ضروري دي.

ددې پرخلاف هر هغه شی چې ددنیوي علومو او فنونو د استاذانو له خوا رامېنځته شوی وي د منلو وړ ګڼل کیږي مګر دا چې ددې د نا سموالي کوم ثبوت په لاس راشي.

دغه د لویدیځ طرزتفکرؤ چې په ټول بشري فکر یې اغېزه واچوله نه یوازې دا چې علم او ادب یې منحرف کړ بلکې ټول ټولنیز نظام یې دا لله عزوجل د بندګۍ او د اخرت د فکر له تصور څخه بې برخې کړ.

## د ژوند فلسفه

دغه د دین په هلکه دفاتح تهذیب عملي کړنلاره وه اوس به وګورو چې دژوند فلسفه یې څرنګه وه؟جوته ده چې د ژوند فلسفه یې

په بشپړه توګه ماده پرستانه وه د لویدیځ فکري رهبران د محسوساتوله دايرې نه ور اخوا د کوم غيبي (پټ) ځواک او د وحی اوالهام منلوته تیار نه ؤ د غیبي پټو حقیقتونو دپیژندنې په وړاندې چې کومه وسیله کیدی شوه هغه وحی او نبوت ؤ خو دقیقې عملي تجربې په دې لاره کې حايل وې له دې کبله د غيبي اموراتو په هکله هغوی د شک او تردد ښکارشول د هغوی لپاره له دې پرته بله چاره نه وه چې دنيا او ددنیوي ژوند په چاروکې يوازې په حواسو اعتماد وکړي دوی په دې وپوهیدل چې انسان يوډول حیوان دی چې په ځمکه کې ژوند سرته رسوي هغه نه د چاتابع او نه د چا په وړاندې ځواب ورکونکی دی هغه ته هیڅکله له بل ځایه هدایت نه ورکول کیږي د ژوند تيرولو تګلاره به پخپله ځان ته ټاکي د هغه د هدايت او لارښوونې که کومه سرچینه کیدی شي نو هغه طبیعي قوانین او یا د حيواني ژوند معلومات او یا دتیر تاریخ بشری تجربې دي يوازې همدغه ددنیا ژوند دی ددنیوي ژوند کامیابي او خوشالي اصل هدف او دهمدې ژوند دښو او بدو په چورلیز پریکړه کیږي.

هغوی په دې و پوهیدل چې د بشري ژوند موخه د طبيعي غوښتنو او د نفس د خواهشاتوله پوره کولو نه پرته بل څه نه ده د هغوی د پوهې اندازه همدغه وه چې کوم شی اندازه کیږي حقیقت همدغه دی د محسوساتو له دايرې نه بيرون هيڅ شی حقیقت نه لري او پلټنه يې د وخت بربادول دي.

زه د هغو فلسفی نظامونو او مسلکونو يادونه نه کوم چې په لویدیځ کې جوړ او کتابونه پرې لیکل شوي او په پوهنتونونوکې، تدریس کیږي زه د کايناتو او انساني ژوند په هکله ددوی تصور او فکر څیړم کوم چې لویدیځ تهذيب او تمدن په خپل ځان کې جذب

کړي او د يو عام لويد پخوال وګړي په ذهن کې کښينول شوي د دې طرزتفکر لنډيز ماستاسو په وړاندې بيان کړ.له دې نه وراخوا درې لويې فلسفي نظريې هم رامينځته شوې

په اتلسمه اونو لسمه پيړۍ کې چې کله موږ دلويديځ غلامان پاتې شولو له تفصيلاتو به ورتيرشو د خپل روح په اعتبار يې په ټول تهذيب خپل سيوری خپور کړ.زه دلته په ځانګړې ډول د هغو ياذونه کوم دا ځکه په بشري ژوند چې دوی، ځومره هراړخيزه اغيزه وغورزوله بنايې په بل هيڅ شي يې نه وي غورزولې.

## دهيګل د تاريخ فلسفه

په دې نظرياتو کې لومړۍ دهيګل نظريه ده چې د بشري تاريخ د تعبير په لړکې يې وړاندې کړې لنډيز يې په لاندې توګه دی.

د انساني تاريخ په کوم پړاؤ کې چې د بشري تهذيب اوتمدن کوم نظام وي هغه په خپلوټولو ځانګواو شکلونو په اصل او حقيقت کې په څو ځانګړو تخيلاتو اينښودل شوی وي چې د همدغه وخت تهذيب جوړوي د تهذيب دغه دور چې کله د پوخوالي پړاؤ ته ورسيږي نو دهغې د ضعيفو نکتو څرګند يدل او د هغه په مقابل کې د څو نورو خيالونو او افکارو برېنډيدل پيل شي چې نوې افکار له زړو افکارو سره په شخړه لاس پورې کوي له دغه اخ او ډب څخه نوی تهذيب رامينځته کيږي.چې په هغې کې د پخوانی تهذيب ښه شيان هم پاتې کيږي او څه نوې ښيګڼې هم دهغو افکارو د اغيز له امله رامينځته کيږي.چې د نويو افکارو ديرغل په نتيجه کې د تيروخت واکمن افکار په پای کې په سوله مجبوريږي بيا دغه پړ اؤ هم د تهذيب د پوخوالي مرحلې ته رسيږي او پخپله خپته کې مخالف خيالات او

تصورات زيږوي او بيا مخالفت او اخ او ډب راولاړيږي او بيا ددواړو د سولې او روغې جوړې په نتيجه کې دريم پړاؤ رامينځته کيږي چې د خپل مخکني پړاؤ ښيګڼې پخپل ځان کې ساتي او له هغې سره د نويو خيالاتو راوړل شوي ښيګڼې په خپل ځان کې جذبوي.

په دې توګه مسترهيګل چې د بشري تهذيب دارتقاء او تکامل کومه څېړنه کړې ده له هغې نه په عام ډول د خلکو ذهنونو دغه اغيزه ومنله چې د تيرشوې وخت تهذيبي پړاؤ نه په خپل وخت کې دخپلو کمزوريو او نيمګړتياء وله امله پای ته ورسيدل او خپلې ښيګڼې يې راروانو مرحلو ته پريښودلې او يا په بل عبارت اوس مهال چې تاسو د کوم تهذيب له پړاؤنو څخه تيريږئ هغه ګواکې د تير وخت د ټولو صالحو اجزاءو خلاصه ده چې مخکې تيرشوي او د تهذيب په پړاؤ نو کې موندل کيږي. که په وړاندې دپر مختګ څه امکان دی نو هغه په نويو خيالونو او افکارو کې دی چې دتير وخت له بنسټيزو افکارو سره په شخړه اخته دي په تيرو دورو کې داسې څه موجود نه ؤ چې له هغې نه مود لاربښوونې د تر لاسه کولو لپاره شاته د کتلوضرورت وی دا ځکه چې د هغوی اجزاء د وروستني تهذيب په پړاؤنو کې جذب شوې نه دي زموږ تاريخي ذوق که چېرته هغوشيانو ته په درناوې قايل وي له دې حيثيته يې کولی شي چې هغه په خپل وخت کې د قدر وړ شی ؤاو د بشري تهذيب په ارتقاء کې يې د خپلې برخې کار سرته رسولی مګر نن ددې وخت لپاره د قدر او اهميت وړنه ګڼل کيږي دا ځکه چې تاريخ په دې هکله پريکړه کړې ده.

اوس که تاسو په پوره غور سره وګورئ دا په حقيقت کې څرمره خطرناکه فلسفه ده د بشري تهذيب دغه تاريخي تصور چې د کوم شخص په ذهن کې کښينول شي تاسی څنګه توقع کولی شي چې د

هغه په زړه كې به بيا د تهذيب د تيرو پړاؤنو څه عزت او درناوى پاتې شي چې په هغه كې حضرت ابراهيم ، حضرت موسى او حضرت محمدصلوة الله عليهم اجمعين تير شوي دي؟ايا هغه بيا كله د نبوت او راشده خلافت په لوري د هدايت او رهنمايې په خاطر رجوع كولى شي؟ په اصل كې دا يوه داسې په دلايلو برابره منظمه فكري حمله ده كه چيرته يې ګوزار په كوم ذهن ولګيږي نو په هغه كې د ديني افكارو ريښې نه موندل كيږي.

## دډاروين دارتقاء نظريه

دويمه فلسفه چې په نولسميه پيړۍ كې را څرګنده شوه او په بشري افكارويې خپل سيوري و غوزرولو هغه دډاروين دارتقاء نظريه وه. زه دلته د هغې نظريې په حياتي اړخ او دهغې په فلسفيانه اغيزو بحث كول نه غواړم بلكې د هغه د نظريې د استند لال تګلاره او له هغې نه د را وېستل شويونتا يجو بيانول غواړم. (١)

عام بشري افكار دډاروين له نظريې څخه ز يات اغيزمن ښكاري دكا ښناتو په هكله چې هغه كوم تصور وړاندې كړى ؤ هغه داؤ چې دغه ارته نړۍ د اضدادو مجموعه او د اخ او ډب ډګر دى دلته هروخت هرلورته دژوند او پايښت په خاطر يو تلپاتې جګړه روانه ده داد طبيعت نظام دى چې ځينو ته ژوند او پايښت وربه برخه كوي نو د جګړې او مقابلې ځواك هم وربخښي دطبيعت قانون داسې دى چې دهغه په نظر كې هغه څوك د بقاواو پايښت مستحق دى چې د بقاء د ځواك ثبوت وړاندې كړي . په دغه سخت زړي نظام كې هغه څوك فنا

١:دلته په دي فلسفه ماته د تنقيد كولو فرصت نشته ددي تفصيلى غندنه مى په تفهيمات دويمه برخه او د تفهيم القران لومړي ټوک د مابدې په سورت كې كړې ده

كيږي چې كمزوري اوسي او دهغه پنا كيدل ضروري او لاژمي وي چې ځوک باقي پاتې كيږي له دې امله چې هغه د ځواک ښبنښتن دی ځمکه چاپيريال او د ژوند وسايل لنډه داچې دلته هرڅه د زور اور حق دي كوم چې دژوندي پاتې كيدلو ثبوت يې وړاندې كړی دی كمزوري انسان ته دهيڅ شي حق نشته هغه به ځواكمن ته خپل ځای پريږدي ځواكمن بشپړ حقدار دی

ښه وګورئ ! دكايناتو او ژوند په هكله دغه تصور او عقيده چې يو ځوک په خپل ذهن كې كښينوي او د فطرت نظام ته په دې سترګه وګوري نو يو انسان به د بل انسان لپاره څه شی جوړ شي ؟

دژوند په دغه فلسفه كې بيا همدردي ، محبت ، رحم ، ايثار ، عدل او انصاف ، امانت او ديانت ، صداقت او داسې نورو شريفانه احساسا تو ته ځای نه پاتې كېږي په دې كې به د حق مفهوم څنګه پاېښت ومومي په داسې حال كې چې دجګړو كار پخوا نيو خلكو هم كولو خو هغې ته فساد ويل كېده او اوس دفطرت دغوښتنو مطابق ده ځكه چې نړۍ دجنګ ډګر دی ظلم او زياتې پخوا هم كيده مګر مخكې ظلم ګڼل كېده اوس ورته دليل پيدا شو چې له امله يې ځواكمن حقدارجوړ شو .

ددغې فلسفې له پېدا ښت نه وروسته اروپايانو هغه ظلمونه سرته ورسول چې په تاريخ كې ساری نه لري هغوی ته يو پوخ دليل په لاس ورغی هغوی كه چېرې دامريكا ، استرليا او افريقا پخوانې نسلونه له خپلو كورونو وويستل او كمزوري قامونه يې خپل غلامان وګرزول نو ګواكې دادهغوی حق ؤ چې د فطرت د قوانينو په برابريې لاسته راوړل د ځمكې اوسيدونكي دځمكې داستوګنې مستحق ؤ او دهغه پر ځای دنورو خلكو هم داحق ؤ چې له دغه ځايه يې بې ځايه كړي او پر شتمنيو يې خيټه واچوي . په دې هكله دلويديځوالو په فكر او ضمير كې يو څه اختلاف ؤ خو ددارو ين منطق دوی له دلايلو او شواهدو څخه ګوښه كړل په ساينس كې ددغې نظريې حيثيت چې څنګه ؤ معاشرت ، تمدن او سياست ته يې هم لاره پيدا كړه هغه يو انسان بل ته ليوه او ځناور جوړ كړ .

## دکارل مارکس دنظريې په برابرد تاريخ مادي تعبير

داهم داروينني فلسفې ته نژدې نظريه ده چې د داروين په عصر کې دمارکس مادي تعبير يې د تاريخ له خيتې راوويسته ددې نظريې په دلايلو او تفصيلاتو څېړنه نه کوم او نه پرې دلته دعلمي تنقيد اراده لرم (۱)

زه دلته يوازې دومره ويل غواړم چې بشري ذهن ته هغه هم ددنيوي ژوند هماغه تصور ورکړ کوم چې دهېگل فکر نړۍ داخ اوډب ډگــــر گڼلې ؤداروېن کاېنات اود فطرت نظام دجگــــــړې ډگــــر وښوده کارل مارکس هماغه تصوېر دانساني ټولنې اساس وباله په دغه تصور کې انسان له پيله له جگړې او اخ او ډب سره نړۍته راغلی دهغه د فطرت غوښتنه ده چې د خپلو اهدافو او گټو په خاطر له خپلو سيالانو سره په شخړه لاس پورې کړي هغه د بشپړې خپل غرضۍ پر بنسټ په بشري طبقو کې اخ او ډب او د ښمني رامينځته کوي د بشري تاريخ ټول پرمختگ ددغه خپل چاري طبقاتي اخ او ډب په مرسته شوی د قامونو ترمينځ جگړه خو لاپرځای پرېږده پخپله ديو ولس د بيلا بيلو پاټکيو ترمينځ شخړې هم ددغه تصور بشپړه غوښتنه په نظر ښکاري په دې کې موږ وينو که ديو شخص او بل شخص ترمينځ که چېرې کومه رابطه او خپلولي ده نو يوازې داهدافو او گټو د اشتراک پر بنسټ ده.له دغو خپلوانو سره يو ځای کيدل او وحدت له هغوټولو وگړو سره جگړه کول دي له کومو سره چې د سړي اقتصادي اهداف په ټکر کې وي برابره خبره ده چې په قام او مذهب

---

(۱) دده په نظريه لنډ تنقيد څما د کتاب تفهيمات په دويمه برخه کې شوی دی.

کې ورسره شريک هم اوسي دغه جګړه په بشپړه توګه حق ده دغه کار جرم نه بلکې له دې څخه مخ اړول دفطرت څخه مخالفت ده .

## اخلاق

داهغه فلسفه او افکار ؤ چې فاتح تهذيب له ځان سره راوړي او پر مور مسلط شوي اوس وګورئ چې داخلاقو په معامله کې د دوی کړه وړه او افکار څنګه ؤ . که چېرې دالله جلت عظمته او د اخرت فکر سړی له سترګو وغورزوي ځرګنده ده چې له دې نه وروسته داخلاقو لپاره د مادي ارزښتونو او تجربې څخه پرته بل څه نه پاتې کيږي په دغه هکله که چېرته څوک وغواړي هغه ارزښتونه ترسترګو کړي کوم چې دين او مذهب ورکړي دي امکان نه لري له مذهب نه پرته دې په نورو بنستونو دغه ارزښتونه ټينګ پاتې شي . هغه اخلاقي اصول چې پيغمبرانو (ع) انسان ته ښودلي ؤ په نورو افکارو کې هيڅکله په سترګو نه ليدل کيږي له همدې امله دلويديځ په وګړو کې چې کومو خلکو هلې ځلې وکړې تر څو اخلاقي ارزښتونه رامينځته کړي له بشپړې ناکامۍ سره مخامخ شول د بې دينۍ او د اخرت دانکار په فضاء کې چې په واقعيت کې داخلاقو کومې فلسفې ته پراختيا په برخه شوه او په عملي توګه يې د لويديځوالو په ژوند کې رواج وموند هغه سوچه دافاديت (Utilitarianism) فلسفه وه چې له هغې سره د خوند اخيستلو Epicureanism ديوه ساده ماده پرستانه نچوړ ګډون هم شوی ؤ پرهغې دلويديځ د بشپړ تمدن او ژوند د بنسټ ډبره اېښودل شوې وه په کتابونو کې چې دافاديت او لذت اخيستلو کومې ليکنې شوې دي که هغه هرڅوک وي او وغواړي او که نه ؟ دلويديځ تهذيب خوی او کړه وړه به يې په بدن کې جذبيږي که کوم شی د قدرت

ور دی نو یوازې هغه شی دی چې ګټه یې هم ماته رسیږي که چېرې
زما په فکر کې کومه پراختیا پیدا کیږي نو هغه به زما قام ته رسیږي او
له ګټې، څخه مقصد یوازې د نیوي فایده ده که کوم راحت ، سکون ،
لذت او یا کومه مادي ګټه اوسي هغه دې ماته او ځما ولس ته
ورسیږي هغه نیکې او د قدر ورشی دی دهغې ترشا دې ټولې هلې
ځلې په کار واچول شي او که داسې نه وي او نه یې محسوسه ګټه په
دې نړۍ کې ما او ځما ولس ته و ي هغه د هیڅ پاملرنې وړ نه ده ددې
پر عکس کوم شی چې له دنیوي حیثیته زیان رسونکی او له دنیوي
خوندونو او ګټو څخه بې برخې کونکی وي هغه بدي او ګنا ه شمیرل
کېږي او ځان ژغورل ور څخه لازم دي . په اخلاقو کې دخیر او شر کوم
خپلواک معیار نشته په همدې توګه د اعمالو د ښو او بدو لپاره کوم
مستقل اصو ل شتون نه لري . هرشی اضافي او عارضي دی د ذاتي او
ولسي ګټو لپاره هر بنسټ قایم او یا رنګیدلی شي ګټه او خوند په
هرې لارې چارې سره حاصلولی شي نن چې کوم شی خیر او ښیګڼه بلل
کیږي سبا ته شرکیدی شي نن چې کوم شی خیر دی هغه په شر او
ښتلی شي د یو چا لپاره به یو شی د حق او باطل معیار وي او بل چاته
به نه وي د حلالو او حرامو ترمېنځ کوم امتیاز او دحق او باطل ترمینځ
تلپاتي بیلتون نشته

## سیاست

داهغه اخلاق ؤ چې سوبمنو بیرونیو ځواکونو له خپل رعب شان
او شوکت سره پر موږ مسلط کړی ؤ اوس سیاسي نظام د ر واخلئ چې
دلته یې په پښو درولی ؤ او د لویدیځ د چارو اکو په لار ښوونه دلته
تطبیق شوی هم ؤد لویدیځ سیاست په درې پښتنو ولاړ دی

لومړی : سیکولریزم یعنی لادیني

دویم : نشنلزم یعني قام پرستي.

دریم : دیموکراسي یعني (دخلکو حاکمیت)

دلومړي اصل مطلب داؤ چې الله جلت عظمته او لاربښوونې یې له سیاست او ټولنیزو اړیکو سره هیڅ تعلق نه لري نړۍ وال به خپل دنیوي معاملات د خپلې خوښې په برابر چلوي ددې کار لپاره چې کوم اصول ، قوانین ، نظریې او تګلارې ضروري دي پخپله به یې جوړوي دهغوی د معاملاتو په هکله الله جل جلاله دهیڅ ویلو حق نه لري او نه موږ ته له هغه څخه دپوښتنې څه ضرورت شته چې هغه کوم شی خوښوي او کوم شی نه خوښوي البته که چېرې کوم غم او مصیبت راورسیږي نو داخبره د سیکولیزم خلاف نه ده چې دغه مهال له الله (ج) څخه مرسته وغواړو او یا ورته چیغه وباسو په دغه صورت کې الله (ج) ته لازمه ده زموږ مرسته وکړي.

ددویم اصل مطلب دادی له کوم ځایه چې دالله صلاحیت او واک اخیستل شوی هلته ولس او قام پورته شوی ولس ته دمعبود مرتبه ورکړ شوې او د هغوی ګټې دخیر او شر معیار دي د ، ولس پرمختګ ، عزت او سر لوړي او په نوروبرلاسی به مطلوب او مقصود وي د ، ولس لپاره هره سربښندنه روا او واجب دی

له دې سره سره د قومیت کوم تصور او فکر چې بیرونیو بادارانو له ځان سره راؤړ هغه د غیر دیني وطني قومیت طرز فکر ؤ چې په هغې سره یو ځای دقام پالنې تګلاره لږ ترلږه زموږ ګونګه پاتې شوه داځکه چې د کوم هیواد د نفوس شمیر ۴/۳ برخې نامسلمان وګړي تشکیل کړي هلته د وطني قومیت د بنسټ پرځای د مذهبي او دیني

قام پالنې رواجولو دامعنا لرله چې تاسو په سمه توګه نه ياست لازمه ده چې په بشپړډول د قام پالنې له لارې كافر يعنې «دوطن دغدارانو او خاينانو» حيثيت غوره كړئ.

ددريم اصل مطلب داؤ په ولسي رياست كې چې له كوم ځايه دين بې واكه شوى ؤ هلته د ، ولس داكثريت رايه او خوښه دهغه پرځاى غوره كړى شوه دهيواد زيات خلك چې له دين نه صرف نظر وكړي. چې كوم شي ته حق ووايې هغه به حق وي او چې كوم شي ته باطل ووايي هغه به باطل وي

لنډه دا چې دولس دزياتو خلكو لخوا چې كوم اصول ، قوانين او ظوابط وضعه شوي هغه به د قام او ولس دين وي او اكثريت به په دغه تګلاره كې د بدلون او تغير واكمن وي.

## دفاتح (سويمن) تهذيب اغيزې

دغه ددين ، سياست ، فلسفې او اخلاقو په هكله د هغو خلكو خيال او تصور وو چې زموږ د تاريخ په ډير بدترين پړاؤ كې له بيرون نه دلته راغلي او پر موږ يې برلاسى حاصل كړى ؤ موږ چې په كومو نيمګړتياؤ اخته ؤو هغه مو مخكې څرګندې كړې سويمن قام چې كوم تهذيب له ځانه سره راوړ دهغې تصوير مو مخكې وړاندې كړ څرګنده ده چې دغه تهذيب دلته د كوم مسافر او سياح په وسيله نه ؤ ګومارل شوى بلكې دادهغو خلكو تهذيب ؤ چې دلته دواكمن په توګه رارسيدلې او دژوند په ټولو برخو يې ځواك ترلاسه كړى ؤ.

له دې نه مخكې هيڅ حكومت ته داسې ځواك په برخه شوى نه ؤ داځكه چې هغوى په خلكو ذهني او مادي رعب وغور ځولو بنايې بل هيڅ واكمن ته داسې شان او پرتم حاصل شوى نه وي د دوى په لاس

کې د خپرونې او تعليم پراخه وسايل ، قانون او محاکم ؤ له دې سره سره يې اقتصادي وسايل په بشپړه توګه په خپل لاس کې ونيول له همدې کبله دهغوی تهذيب پرموږ داسې هر اړخيزې اغيزې وغورزولې چې زموږ د ژوند هيڅ څانګه ورڅخه بېرون پاتې نه شوه .

## دښوونې او روزنې په برخه کې

هغوی خپل تعليمي نظام پرموږ وتپه او په داسې توګه يې مسلط کړ چې د رزق او روزی کليګانې يې واخيستلې دخپلو تعليمي ادارو په دروازو يې راوځړولې ددې معنی داوه چې اوس به دغه روزي هغه څوک ترلاسه کوي چې چا دغه علم حاصل کړی وي ددغه فشار له امله زموږ هريو توکم (نسل) له بل څخه وړاندې شو او د دغو تعليم ځايونو په لوري يې مخه کړه او هلته يې ټول نظريات او کړه وړه زده کړل هغه چې روح او شکل يې په بشپړه توګه زموږ له تهذيب سره په مخالف لوري کې قرار درلود اګر که څرګند کافران خو يې زموږ له ځوان نسل نه په يو لک تنو کې يو هم ونه ګرځاؤ خو د فکر ، نظر ، ذوق ، احساس او اخلاقو په لحاظ سوچه ، خالص او ټينګ مسلمان ښايې په سلو تنو کې دوه تنه هم پاتې شوي نه وي داترټولو لوی ټکان ؤ چې هغوی موږ ته ورساؤ ځکه چې هغوی زموږ په زړونو او فکرونو کې د اسلامي تهذيب ريښې غوڅې کړلې او د مخالف تهذيب ريښو ته يې په کې ځای او وده ورکړه .

## د اقتصاد په برخه کې

هغوی خپل اقتصادي نظام له خپلې اقتصادي فلسفې سره پرموږ مسلط کړ او په داسې توګه يې واکمن وګرځاؤ چې د رزق او روزی دروازې يې يوازې دهغه چا پرمخ پرانستلې چې د دوی

اقتصادي اصول او قوانین یې غوره کړي ؤ په نتیجه کې هغه شی چې
به مو حرام او ناروا بالـه ورو ورو زموږ په افکارو کې د حرامو او حلالو
بیلتون لـه مینځه ولاړ بیا دې تـه وار راورسید چې په موږ کې یو ډیر
زیات شمیر خلک د اسلام په تعلیماتو او لارښوونو باوري پاتې نـه
شول کـوم شیان چې دوی په بیلا بیلو طریقو حرام ګڼل دلوید یځ په
اقتصادي نظام کې یې حرمت لـه مینځه ولاړ .

## د قانون په برخه کې

هغوی خپل قوانین پر موږ جاري کړل یوازې په عملي ډول یې زموږ
د تمدن او ټولنیز نظام شکل تغیر نه کړ بلکې زموږ ټولنیزو افکارو او
قانوني نظریاتو تـه یې بشپړ بدلون وبخښه څوک چې د قانون په هکله
ډیره لږه اشنایي هم ولري هغه په دې خبره پوهیږي چې لـه اخلاقو او
ټولنې سره یې ټینګه رابطه ده کله چې یو څوک قانون جوړوي د هغې تر
شا په لازمي ډول د اخلاقو ، ټولنې او تمدن ځانګړې نقشـه وي چې
پرهغې باندې هغوی بشري ژوند برابروي په دې توګه چې کله څوک یو
قانـون لري کـوي ګواکې هغه اخلاقي نظریه او تمدنې فلسفه لـه مینځه
وړي . چې پرهغې باندې پخوانی قانون ولاړ ؤ او په همدې توګه د ژوند
هغې نقشې تـه بدلـون وربخښي چې لـه هغـه قانـون څخه یې جوړښت
موندلی ؤ .

هر کله چې انګریزي واکمنان دلته راورسیدل ټول شرعي قوانین
چې په دې هیـواد کې جاري ؤ لـه مینځه یې وړل د هغو پر ځای یې
خپل قوانین جاري کړل نو د دې کارمعنا یوازې دانه وه چې د یو قانون
پرځای بل قانون نافذ شو بلکې د دې معنا دا وه چې د اخلاقو او تمدن

پرېيو نظام د بطلان کرښه کش شوه او پر ځای يې د دويم نظام داخلاقو او تمدن مانۍ ودانه شوه

ددغه تغير او بدلون په خاطر هغوی دلته د حقوقو فاکولتې جوړې کړي او خپل نصاب يې په کې رايج کړ دځوانو محصلينو په اذهانو کې يې داخبره وغورځوله چې تير قانون (اسلامي شريعت) يو زوړ فرسوده له چلنده لويدلی قانون ؤ چې د اوسني وخت له ايجاباتو سره يې سمون نه درلود نوی (انگريزي قانون) په خپلو اصولو او نظرياتو کې زيات صحيح او پرمختللی دی دومره هم نه بلکې له دې نه وړاندې يې زموږ بنستيزه عقيده هم ونړوله او هغه داچې د قانون جوړونې واک او اختيارچې دالله تعالی جلت عظمته لپاره خاص کړی شوی ؤ ددې پر ځای يې دخلکو په ذهنونو کې داخبره کښينوله چې د قانون جوړولو په معامله کې الله عزوجل څه کار لري ؟ داد پارلما ن کار دی چې څه غواړي هغه فرض ، واجب او ياحلال وگرزوي او چې څنگه يې خوښه شي يو شی جرم او حرام وبولي

بيا دغو نويو قوانينو چې څنگه زموږ پر اخلاقو او تمدن اغيزه وکړه ددې خبرې داندازه کولو لپاره دومره کفايت کوي چې همدغه قوانين وو چې زنا ، قمار، شراب او ډيرې فاسدې بيې يې روا وگرزولې چې دهغود ملاتړ په خاطر يې رنگارنگ بې حيايې او گناهونه رايج کړل او ډيرې نيکې چارې يې له خاورو سره خاورې وگرځولې

ډېره دغم اوتاسف خبره داوه چې دغوحالاتوزموږ ديني حس دومره وځپلو چې زموږ ډېر نيکان اوپرهيزگاره او ديندار وگړي تردې اندازې ورسيدل چې دانگريزي نظام ترسيورې لاندې يومسلمان ته د وکالت اوقضاپرچوکۍ کښيناستلو کې څه پروا پاتې نه شوه

بلکې خبره دې تــه هــم راورسـيدله چې چابـه دانګريـزي نظـام پـه وړانـدې دالله تعالـی دحاکميت نـاره اوچتوله اوويل به يې (ا ن ا لحکم الالله) يعنــې حاکمــيت يــوازې دالله تعالــی حــق دی هغــه بــه يــې دخــوارجــوعقيـــــدې تـــــه منســـوب کــاؤ(١)

## په اخلاقي اوټولنيزه برخه کې

هغـوی خپل اخلاقي مفاسداوټولنيزې تګلارې پرمونږ وتپلې اوپه داسي تـوګه يې داکارترسره کړ چې دهغـوی پـه وړانـدې د شرف مقام هغـه چاتـه پـه برخه کېده چې پـه اخلاقواوعاداتـو کې بـه دوی تـه نژدې اوددوی پـه شان ؤ دغـه کار داثراورسوخ اواقتصادي خوشالی اومادي پرمختګ ضـامن ګڼل کيده لـه همدې کبله ورورورزموږدټولنې لوړې طبقې ، شتمنو اوبارسوخه خلکـو اوپـه دوی پسې مينځنـی طبقې (متوسطو) وګړوددوی پـه رنګ کې خپل ځانونه رنګ کړل اوپه پای کې دعکسـونو ، سينمااو راډيوپه وسـيله دنامتووګړولويديځ ماډلـه ژوند اخلاقـي وباعامـوخلکـوتـه خپـره شـوه پـه نتيجه کې ديوې پېړی دننه پـه تدريجي تـوګه موږ دې ځـای تـه راورسـيدلو چې اوس دښځو اونارينه وګړوتعلـيم اوتحصـيل زغملـی شـوددېرو شـريفو کورنيولونـی پـه ګډانڅااوشـراب څښلـو کـې اختـه شـوې او پـه تمثيلـي ډرامـوکـې دستېجونو لـه پاسـه خپله ښکلااوښايست ننداريې تـه وړاندې کوي په داسې حـال کې چې ددې کارلپاره زموږ دټولنې تيټ خلک نه تياريدل اوس پـه زرګونـو خلـک دخپـلو لوڼـو اوخامـنو دپوځـي اوغيرپوځـي مارشونو ننداريې تـه ناست وي اودهڅونې لپاره ورتـه افرين اوتحسين

---

(١)خوارج لـه اهـل سنت والجماعة نه بيرون يوه ګمراه ډله ده چې دحضرت علي رضی الله عنه اوحضرت معاويـه دروغـي جوړي پـرمهال رامينځتـه شـوې وه اودواړوتـه يـې دکفـر نسبت کـاؤ دوی جلانظـريات اوفکاردرلودل (ژباړن)

وړاندې کوي. اوس هغه وخت لرې نه دی چې زموږ ولس د بې غېرتۍ اوبې ایمانۍ هغه لوړ مقام ته ورسېږي چې ووایې: په حرامي بچي اوپه ناواده شوې مور کې څه عیب دی؟داځکه چې په ټولنه کې ورته نکاح کې شوې مور او حلالي بچي په شان دعزت اوویاړ مقام په برخه دی. په داسي حال کې چې لویدیځ ولسونه دغه ځای ته په یوه ورځ نه ؤ ختلي بلکې بیلابیل پړاؤنه یې وهلي اودې ځای ته رارسیدلي ؤ چې اوس موږ هغه پړاؤنه وهو

## په سیاسي برخه کې

بیاهغوی خپله سیاسي نظریه اوسیاسي اداري پرموږ ر اوتپلې چې زمونږ ددین اودنیادواړولپاره له دې نه پرته بل شی زیات زیانمن ثابت نه شو. دهغوی سیکولریزم زموږ ددیني تصور اوفکر ریښې وویستلې اودهغوی نېشنلزم (قام پالنې) اوډیموکراسۍ موږ په پرله پسې ډول پریوې پېړۍ پورې دومره ټکړه ټکړه کړو چې په پای کې مونیم ولس له لاسه ورکړ اوپه لکونو سرونه مو غوڅ اوبې شمېره ناموسونه مو لوټ شول.

دانګلیس ظالمو اووحشي صفته واکمنانو دافکرنه کاؤ چې دهندوستان دغه هندو، مسلمان، سکهـ اواچوت به څنګه په نوي سیاسي معنا کې سره یوځای پاتې شي چې په هغوی کې دډیموکراسۍ دغه اصول چلیدلی وي چې د، ولس اکثریت به قانون سازاوواکمن وي اواقلیت (لږه کې) به عامه رایه هواروي اواکثریت به جوړوي. دوی هیڅکله په دې خبره ځان پوه نه کړ چې دلته قامي اقلیت اوقامي اکثریت دی ددوی په اوږو دپنځه دیرش کروړه انسانانو دحال اومستقبل ډېرلوی مسئولیت پروت دی خودوی خپل

یوه دقیقه وخت هم د دې خبرې په پوهېدو باندې ونه لګولو چې بیلابیل قامونه یوقام وبولي.

دلته دسیکولر دیموکراسۍ دقایمولو معنی له دې نه پرته بل څه نشوه کېدی چې په هغوی کې یولوړشمېری قام دې باقي اوسي دپاتې نوروقامونو مذهب، تهذیب اوقامي ځانګړتیاوې دي په زورسره له مېنځه یوړل شي اوپه پټوسترګودې ددوی اصول، نظریات اوعملي لارې چارې په بشپړه توګه په بېل چا پېر بال کې پرېښودل شي د هندوستان څپه څپه دکلونوکلونو دنفرت زهرودمظلوموپرګنودوینوبهیدواودجنګ لوخړوته هوا ورکړه داډېرناسم نظام ؤ چې انګریزانو ددې سېمې په زیاتوخلکو باندې وګوماره.خودوی ددې خبرې یاداشت نه ؤ اخېستی چې دیو دیوال همسایه به دبل وینو ته تږی ناست وي هغوی پرخپلې پالیسۍ ددویم ځل کتنې ضرورت هم محسوس نه کړ بیاچې کله وار دې خبرې ته را ورسیده چې له ویش نه پرته بله چاره نه وه په داسې لارو چاروسره یې وویشلو اودوی له دې ځایه رخصت واخیست چې دهغې په وسیله دوینوویالې اودانساني جسدونو غرونو دهندوستان اوپاکستان پوله جوړه کړه اودغه ویش دپخوانیو جګړو دتصفیې دیومشکل جوړیدو پرځای دډېرو نویو جګړو بنسټونه کېښودل څرګنده نه ده چې په دغه ستره سیمه کې به ددې وګړو دښمنې ترکومه پورې جاري وي.

زه منم چې بېرونیو واکمنانو دلته یوڅه کارونه هم کړي دي دهغوی په وسیله مادي پرمختګونه شوي دنویو علومو ګټوراړخونوڅخه موږ ته ګټه هم رسیدلې دهغوی له ارزښت څخه زه انکارنه شم کولی خوددغوګټونسبت دهغو بې شمېره اخلاقي، روحاني اومادي زیانونو څخه لږدي چې موږ ته د انګریزي غلبې پرمهال رسیدلي دي.

## دانګرېزي تېرې په مهال زموږ غبرګون

له دې نه وروسته موږ ته ددې خبرې جاج اخيستل په کار دي چې ددغه برلاسي تهذيب دهجوم پر خلاف غبرګون زموږ له خوا په کومه بڼه ترسره شو او اوس يې بڼې او بډې اغېزې زموږ په ولسي ژوند کې موندلی شي او که نه؟

په مجموعي توګه دلته دمقابلې لپاره دوه بشپړ بېلا بېل غبرګونونه رامېنځته شوه چې په هريوه زياتي پراخه اوژورې اغېزې مرتب شوي دي زه مخکې ترمخکې ددواړو جلاجلا محاسبه ستاسې په مخ کې وړاندې کوم اوبيا دهغو دضرب حاصل ستاسې ترمخ ږدم.

## انفعالي غبرګون

په موږ کې يوې ډلې خلکوداسې رايه درلوده چې له ځواکمنو اوپرمختللېو قامونو څخه دې هرڅه ترلاسه شي چې موږ اوتاسوته يې له ځان سره راوړي دي دهغوی ټولې اغېزې دې ومنل شي او دهغوی له ښوو نو څخه دې ګټه واخېستل شي کوم اقتصادي نظام چې دوی يې تېنګول غواړي هغه دې خپل کړی شي، کوم قوانين چې دوی يې جاري کول غواړي هغه دې ومنل شي دوی چې دژوند کولو کوم اخلاق اوخويونه له ځان سره راوړي هغه قبول کړئ په همدې توګه دوی چې دکوم سياسي نظام ټينګول غواړي هغه ته غاړه کښېږدئ.

په دې غبرګون کې له پيله دوېرې اوماتې خوړلو روح موجودؤ له لومړي وخته دوی فکر کاؤ چې دمغلوب کېدلو اومحکوميت نه وروسته موږ ته مخالفت له امکانه وتلې خبره ده. که چېرې په مخالفت لاس پورې کړو نو له هرحيثېته له زيان سره مخ کېږو له همدې امله

زموږ لپاره له دې پرته بله چاره نشته دژوندا وپر مختګ کوم فرصتونه چې له دغه نوي نظام څخه ترلاسه کيدی شي له هغو څخه دې استفاده وشي اوس دغه کوچني فکرنه پوازې داچې زموږ دټولنې مېنځنی طبقه له دغه وبا پې رنځ څخه اغېزمنه کړې ده.بلکې ترعامو خلکو پورې دغه زهرخپاره کړی شويدي.

ددين په هکله چې دلويديځ وګړو کوم فکردرلود. زموږ دهېواد پوهه طبقه ورسره نژدې شوه اوله لويديځ سره يې دروغجنې جوړې پروګرام ترتيب کړ دوی په دې نه پوهيدل چې لويديځ له مذهب نه کوم فهم لري هغه عيسويت اوکليساده نه اسلام. دوی هغه فکر خپل کړ چې دکليسا پرخلاف په لويديځ کې ساينس پوهانو اونوروازادو وګړو خپل کړی ؤ .دوی اسلام اوداسلام هرشي ته دشک په سترګه کتل ددليل اوثبوت لپاره که ضرورت ليدل کيده نودديني احکامو لپاره ؤ ، نه دهغو نظرياتو لپاره چې دعلم په نوم دلويديځې فلسفي اويادساينس پوهانو له خواوړاندې شوې دي.

هغوی دلويديځوالو افکاراونظريات له تنقيده پرته ومنل اوپه دې نظرؤ چې مذهب په واقعيت کې ديوفردشخصي معامله ده له ټولنيز ژوندسره يې څه سراوکارنشته دغه خيال ددوی په ذهن کې داسې ورغورزيدلی ؤ لکه څنګه چې نن ورځ ريښتينې اوواقعي مسلمانان له فکراوسوچ نه پرته داخبره تکراروي چې اسلام دژوندبشپړنظام دی ليکن بل لورته لويديځ ځيلي خلک هروخت داخبره بيابيايادوي چې اسلام يوشخصي دين دی له ټولنيزو معاملاتو سره سروکارنه لري

د دوی د زياتو وګړو لپاره اسلام يو شخصي مذهب هم نه دی دا ځکه چې د هغوی په شخصي ژوند کې د اسلام له اقرار نه اخوا د

ماشوم هلک د سنت کولو او نکاح نه پرته د اسلام د پیروی نورې اخلاقي او عملی نښې هم موجودې دي.

ددوی په زیاترو خلکو کې چې د دین په لوري کوم تمایل بریښي زیات یې په دې باوري دي. چې لویدیځ او د هغه فلسفي نظریات او کړه وړه د حق معیار دي د هغوی له عقایدو او د ژوند له نظام او د هغوی له تاریخ سره دې د اسلام دین ترمیم کړی شي او کوښښ دې وشي چې د اسلام هر شی د لویدیځ په معیار وتلل شي ا و کوم شي چې یې ورسره سمون نه خوري هغه دې د دین له ریکارډ څخه نابود کړی شي او چې کوم شي د محوه کیدو وړنه دي د هغې په هکله دې د نړۍ والو په وړاندې معذرت وغوښتلی شي.

د هغوی زیاتو وګړو د لویدیځ د ژوند فلسفه او د هغه تهذیب فلسفیانه بنسټونه په بشپړه توګه ومنل او پر هغې یې د هیڅ تنقید ضرورت احساس نه کړ. نتیجه دا شوه چې همدغه طرز فکر له پیله تر پایه زموږ په ښوونځیو او پوهنتونونو کې تدریس.شو تاریخ، فلسفه، اقتصاد ، سیاست، قانون او نور علوم چې په کوم دود تدر یس کېدل د هماغه ذهنیت پر بنسټ ؤ کوم چې د لویدیځ استادانو دوی ته ښودلی ؤ د نړۍ او ژوند په اړه چې دوی کوم تصوردرلود دا هماغه څه ؤ چې لویدیځ والو دوی ته ورکړی ؤ.

له الله جلت عظمته او اخرت څخه خو په څرګنده توګه د انکار وګړي ډیر لږ وو خو له موږ نه چې کوم خلک له دې ښوونو څخه اغیزمن شوي څومره داسې وګړي به وی چې د لویدیځ له ماده پرستانه ذهنیت او د اخرت له فکر نه به بې نیازه نظر به ونه لري ؟

دا هماغه خلک دي چې له محسوسو حقیقتونو څخه پرته غیر محسوس نه مني او په همدې توګه له مادي ارزښتونو پورته روحاني

ارزښتونو ته قايل نه دي او نړۍ د ځاني غوښتنو د اخ او ډب ډګر بولي.

د اخلاقو په معامله کې د دغه انفعالي غبرګون نتيجه له دې نه بتره راووتله زموږ د تنزل په دوران کې خو زموږ د اخلاقو ريښې له پخوا څخه شړيدلې وې زموږ اميران او دولت مند خلک له پخوا نه په عياشۍ کې اخته ؤ. زموږ د مينځنۍ طبقې وګړو د اجيرو سپاهيانو او بازاري خرو حيثيت درلود. زموږ تر مينځ د استقلال او مخلصانه وفادارۍ حس له پخوا نه ترې تم ؤ.

بيا چې کله له دې سره د لويديځ د اخلاقي فلسفي پيوند ولګيد دلته د لويديځ ناکاره غير انساني او وحشيانه خصلتونو وده ومونده او ټول انساني اخلاق له پامه وغورزول شوه ، په شخصي ګټو، شهرت پالنې او بې اصولۍ کې خو موږ د لويديځ ځيلي تمدن هغې سطحې ته رسيدلي وو چې پخپله لويديځ وال ورته رسيدلي نه وو.

خو هغوۍ د ژوند يو هدف لري چې د هغه لپاره يې په کوښښ او سرښندنه لاس پوري کړی دی دلته د ژوند د هدف پته نه لګيږي هلته په هغوۍ کې وفاداري شته په بشپړ اخلاص سره د خپلو قامي ګټو لپاره کار کوي امکان نه لري چې هلته يو څوک خرڅ شي، خو دلته هر شی خرڅيږي او د هر شي تبادله په روپيو او شخصي ګټو صورت مومي هلته په لويديځ قام کې ځينې بد اخلاقۍ دي چې يوازې له نورو قامونو سره يې هغوۍ روابولي ا. لبته د خپل قام په وړاندې يې سرته رسول لوی جرم ګڼي. دلته زموږ په ولس کې دروغ، مکر ،فريب، دوکه، خپل غرضي، حرص او د خپل قام ويرول هيڅ پروانه بولي.

په امريکا او انګلستان کې که چېرې دغسې بد اخلاقي له يو چا څخه صورت ونيسي هغه ته به ژوند کول ستونزمن شي. خو دلته لوی

لوی سیاسي لوبغاړي د داسې اخلاقو په خپرولو لاس پورې کوي چې انسانیت ور څخه شرمیږي. کوم شخص چې په دغو بد اخلاقیو کې مهارت حاصل کړي د هغه په هکله ویلی شي چې د ولسي مشرتابه لپاره ور شخصیت دی.

د ټولنیز او اقتصادي ژوند او قانون په اړه چې د لویدیځ تسلط کومې اغېزې ما ستاسو په وړاندې ذکر کړې ددې ټولو د منلو او خپرولو لپاره هغه وګړي کار کوي چې هغوی د انفعالي غبرګون لاره غوره کړې ده. موږ ته د دوی هیڅ شی دومره د تعجب وړ نه ؤ. څومره چې د انګریزانو په لاس د جوړ شوي سیاسي نظام په معامله کې د دوی عکس العمل د اریانتیا وړ ګڼلی شي. دا ډله تېله زیاتره په خپل سیاست وېا ړ کوی، خو هغوی تر ټولو د زیاتې نا اهلی ثبوت هلته وړاندې کړ چې کله یې د سیکولریزم، نیشنلزم او دیموکراسی په اصولو د هندوستان د سیاسي نظام د بنسټ ډبره کېښودله او د نولسمې عیسوي پیړۍ د نیمایې تر پایه پورې یې په پرله پسې توګه ارتقاء وشوه.

دغه نظام که څېري هندوانو منلی وی دایوه طبیعي خبره وه دا ځکه چې ددې نظام هره برخه د دوی لپاره ګټوره وه خو د مسلمانانو لپاره یې هره برخه بربادونکې وه. د هغوی له خوا د دوی د سیاسي نظام د بنسټونو عدم چیلنج ددې خبرې څرګند ثبوت ؤ چې د دوی نویو تعلیم یافته وګړو سیاست لوستی ؤ، خو ځان یې پرې پوه کړی نه ؤ دوی له لویدیځ نه دومره ویریدل او د هغوی ویره یې په زړه کې پرته وه تا به ویل چې کوم شی د هغوی له خوا صادریږي. د اسماني وحی په شان دې ومنل شي هیڅاته هم پر هغې د تنقید کولو وس نه ؤ.

له داسې شکست خوړلي ذهنيت او تصور سره هغوی سياست ولوست او نتيجه دا شوه چې د هغوی ټول افکار دوی په پټو سترګو ومنل له دوی سره نه دومره پوهه وه. چې د دغه سياسي نظام بنيادونه وګوري او نه په کې دومره علمي جرات او ميړانه وه چې په علمي حيثيت پرې د انتقاد ګوته ونيسي او نه يې خپلو بادارانو ته دا ويلی شول چې ستاسې دغه اصول په دې هيواد کې د چلند وړ نه دي.

هغوی نيمايې جګړه په هغه ورځ بايلوده چې کله يې د سيکولريزم، نيشنلزم او ديموکراسۍ اصولو ته غاړه کيښوده له هغې وروسته نه د هغوی پاليسي چليد له چې د سياسي ارتقاء منزل او د هيوادوالو پر لوري د واک د انتقال مخه دې ونيول شي او نه يې دغه پاليسي بريالۍ شوه په دې توګه په بشپړ ناسم سياسي نظام کې مسلمانانو ته داسې تحفظات په برخه شول چې له تباه کونکو اغيزو څخه يې نه شوه. خلاصيدلی په پای کې چې کله دغه سياسي نظام د پوخوالي او تکميل مرحلې ته ورسيد نو موږ زړه نا زړه پر دې خوښ شولو چې نيم خو په قبر کې ښخ او نيمايې بيرون يو.

دا خبره زموږ د سياسي رهبرانو په فکر کې تر اوسه نه ده راغلې چې کوم سياسي نظام موږ په خاورو ښخ کړي يو د هغې په بنسټونو کې يو څه نيمګړتياوې وي نن هم د هغه نظام له بنسټونو سره روغه جوړه دوام لري.او د هغې د بدلون او تغير هيڅ احساس له دوی سره نشته اوس له احمق انسان نه پرته څوک دغه باور کولی شي چې د سياست مطالعې او تجربې کوم يو سياسي بصيرت په دوی کې پيدا کړی دی.

په دې کې هيڅ شک نشته چې دغه انفعالي غبرګون يوازې زيان نه بلکې يو څه ګټې يې هم له ځان سره درلودلې په دې سره زموږ

پخواني کمبود مات شو موږ د اوسني وخت له پرمختګونو سره اشنا شولو زموږ په نظریاتو کې پراختیا را مېنځته شوه موږ له دغه سخت زیان څخه وژغورل شو چې یوازې نا مسلمان وګړي به نوې زده کړې حاصلوي او د حکومت په نظم او نسق کې به یوازې دوی ته برخه وي

زموږ ډېرو خلکو د حکومت په بیلا بیلو څانګو کې تجربه حاصله کړه د دغو ګټو څخه زه هیڅکله منکر نه یم خو واقعیت دادی چې له دې سره زموږ د دین تصور بدل شو د ژوند فلسفې مو تغیر وموند زموږ انفرادي سیرت او د ټولنیز تهذیب بنسټونه ونړیدل موږ د خپلو تیرو اسلافو له تقلید څخه خلاص د بې لارې بد اخلاقه او بد عمله دښمن په ړانده تقلید کې راښکیل شولو. چې په دې سره مو دیني او دنیوي حیثیتونه دواړه تباه او برباد شوه.

## جمودي غبرګون

د انګریزي ښکېلاک دتېرې په مهال زموږ دبلې ډلې غبرګون په بشپړه توګه با العکس ؤ.لومړۍ ډله چې د سیلاب په راتلو سره راووتله او ورسره روانه شوه د دویمې ډلې وګړي د جامدې تیرې په شان غلي کښیناستل کوښښ یې وکړ چې د علم، مذهب، اخلاقو او ټولنیز ژوند او روایاتو بشپړ میراث چې د اتلسمې پیړۍ وګړو پریښې وو هغه حاصل کړي اووېې ساتي.هغوی باور درلود چې د دې میراث صحیح او ناسم دې ټول وساتل شي او د نوي سوبمن تهذیب اغېزه دې نه قبوله کړی شي او نه دې د هغه په فهم کې خپل وخت ضایع کړي.

دغې ډلې د پخوانیو علمي اثارو د ساتنې تګلاره له لویدیځ تهذیب سره د مخامخ کیدو په لومړۍ مرحله کې اختیار کړه چې تر اوسه پورې له ترمیم او دوباره کتنې نه پرته د وام لري.هغوی یوه شیبه

مقابله توپانونه کولی شي نه کاني او بوټي . دلته داسې ځواک نه ؤ چې
له لویدیځ څخه دراپورته شوې توپان په وړاندې یې دودریدلو وس
درلودی او د اسلامي تهذیب توپان دې د هغه مقابله وکړی شي دلته
یوازې د پخواني میراث په ساتنه اکتفاء وشوه .په دې پخواني دیني
میراث کې د اصل د ساتنې سره ډیر داسې شیان شامل کړی شول چې
نه یې د ژوند ځواک درلود او نه ددې وړ ؤ چې ساتنه یې وکړی شي او
نه یې له شمول څخه دا هیله کیدی شوه چې د یو مخالف تهذیب په
مقابل کې دې د اسلام له عزت او شوکت څخه دفاع وکړي همدغه
لامل دی چې د تیرو او یا اتیا کلونو په تاریخ چې کله سترګې وغړول
شي په دغه وخت کې به موږ ته د اسلام او اسلامي تهذیب سرلوړي په
سترګو ښکاره نه شي بلکې موږ ته به په شاتمبیدلی و بریښي . هر کال
، میاشت او د ورځو په حساب راته مړاوی ښکاري او لویدیځ تهذیب
راته غټ او خپورشوی معلومیږي هره ورځ چې پر موږ لمرخړیکه وهي
داسې ښکاري چې د لویدیځ فکري ګمراهیو او اخلاقي چټلیو او
عملي بې لاریو زموږ په ژوند خپلې ناولې منګولې ښخې کړي دي ، او
زموږ ددین ، اخلاقو او تهذیب یو څه زیاته برخه یې له مینځه وړې ده
ددغه خوځښت دتوپاني څپو په وړاندې زموږ ددین دود بزو ساتونکو
وګړو د سترګو د رپ په اندازه هم مخه ونه نیولی شوه .

ددې دریم زیان د اؤ چې زموږ دیني ډلو د اسلامي او غیر
اسلامي ورثې د مرکب معجون داسې ساتنه وکړه چې په فکري او
عملي دواړو حیثیتونو یې زموږ په شتمنې او با استعداده فکري
طبقې کومه اغیزه ونه غورزوله بلکې دغه اثر ورځ په ورځ کمیدلو یو
لور ته مخالف تهذیب او تمدن فکرونه مسخه کول او په زړونو کې یې
ځای پیدا کاؤ او سترګې یې بریښولې له بلې خوا د اسلام نمایندګان

او د نبوي میراث وارثان په داسې خیرنو او مسایلو کې بوخت ؤ چې نه یې د خلکو افکار ډاډه کولی شول او نه یې دخلکو په زړونو کې ځای پیداکولی شو او نه یې د هغوی پام ځان ته راګرځولی شو.

له همدې امله د مادي وسایلو اود فکري صلاحیتونو څښتنانو له خپل دین سره څه د زړه تړاؤ پیدا نه کړ بلکې په لویدیځ تهذیب کې جذب شول د مذهبي او دیني میراث سنبالول په تدریجي توګه هغو خلکو ته پاتې شوه چې په مادي او فکري لحاظ یې په ټولنه کې ټیټ مقام درلود ددې کار زیان یوازې دانه ؤ چې د دین محاذ کمزوری او د لویدیځ محاذ ځواکمن شو په حقیقت کې ډیر لوی نقصان او زیان دا وګرزید چې د اسلام د نمایندګۍ معیار د علم ، عقل ، ژبې او اخلاقو په اعتبار راپریوت د دین او دیانت ابرو او وقار ساتنه له ډیر سخت ګواښ سره مخامخ شوه.

ددې پالیسۍ وروستنی او تر ټولو لوی زیان دا وګرزید چې د مسلمانانو له قیادت او لارښوونې څخه دینداره خلک بې برخې شوه په تعلیم او تربیه تهذیب او تمدن ، اقتصاد او سیاست باالاخره د ژوند په ټولو چارو کې د مسلمانانو د لارښوونې او مشرتابه دنده هغو خلکو ته وسپارل شوه چې نه پخپله په دین پوهیدل او نه یې د دین زده کړې ته څه ارزښت ورکاؤ

هغوی خپله ټوله ښوونه او رزونه د لویدیځ په طریقه سرته رسولې وه د هغوی ژوند او اخلاق د لویدیځ د ژوند په رنګ رنګ ؤ هغوی دین په انګلیسي کالجونو او پوهنځیو کې زده کړی او تطبیق کړی وو هغوی د سیاست ټول اصول او تګلارې د لویدیځ له استادانو زده کړې وې د ګمراهۍ او بې دینۍ له کومو سرچینو څخه چې هغوی لارښوونه

ترلاسه کړي وه ټول قام يې په همغه لارې روان کړ او ولس په بشپړ اعتماد او باور سره په دوی پسې اقتداء وکړه.

د ټولنې ديندار طبقه په دغه ټوله لوبه کې يا خو ګوښه ناسته وه او يا خو په درس او تدريس ذکر او تسبيح کې مشغول ؤ او يا خو چې کومو بې دښنه وګړو په ولسي قيادت خيټه اچولې وه هغوی ته په دعا کولو لګيا ؤاو ياچې کوم خلک په دوی کې دسياست ډګر ته را و تلي بل چا پسې يې اقتداء کړي، کانګريس ؤ او که مسلم ليګ هلته يې د پيروانو رول لوبولی دی په هيڅ کومه پاليسي سازه اداره کې د دوی برخه نه وه او نه يې د کومې لويې ګمراهۍ اوضلالت مخه ډب کړې او نه يې پرې د انتقاد ګوته نيولې شوه.

ددوی کار له دې نه پرته بل څه نه ؤ چې کومه دين دښمنه پاليسي او قانون دکوم دين دښمن قايد په لاسونو جوړښت او ترتيب و مومي دوی ورته د برکت دعا وکړي او مسلمانانو ته ډاډ ورکړي چې دا د قران او حديثو مطابق ليکل شوی او دين ته هيڅ خطر متوجه نه دی

دغه رنځ دومره زياتيدلو چې سيکولريزم ته زموږ په ډيرو سپيڅلو مذهبي درګاهونواو خانقاګانو کې د برکت دعاګانې کيدلې، په ټولنه کې د بې اغيزې کمزورو خلکو په وړاندې خو ددوی ديني احساس دومره سخت وو چې د هغوی ټوله دينداري يې د ږيرې په خريلو سره په سيند لاهو کوله په يو څو ډيرو لږو فقهي جزئياتو کې اختلاف به يې ددين له ړنګولو سره مترادف ګڼلو خوچې د چا تر شا به يو ځل د ټول ولس د زنده باد ناره ووهل شوه او سياسي ځواک به ور په برخه او د هغه په لاس به ددين ټوله ماڼۍ له ړنګيدلو سره مخامخ کيدله هغه د رخصتونو مستحق او هغه ته يې هيڅ نه شو ويلی.

## موږ څه غواړو؟

درنو لوستونکو!

دا زموږ د تیر تاریخ جاج ؤ زموږ د موجوده اوسنیو حالاتو په جاج اخیستلو هیڅ‌چاته د انتقاد ګوته نه نیسو بلکې موږ اوسنۍ وضعه او تاریخي اسباب په ښه توګه تشخیص کوؤ او د خپل ځان لپاره د عمل لاره جوړؤو یوازې د الله جلت عظمته په توفیق او مرسته لومړی په خپل هیواد کې د اصلاح او سمون لپاره او په پای کې د اسلام د دوباره ژوندون توغ په نړۍ کې رپوؤ ان شاء الله

زما د پورتینو څرګندونو څخه به تاسوته معلومه شوې وي چې د نیمګړتیاؤ او فسادونو دایره څومره پراخه ده او څومره یې زموږ د ولسي ژوند په هرې یوې څانګې جال خپور کړی دی اوس به ځما دوینا څخه تاسوته معلومه شوې وي کوم فسادونه او ورانې چې نن هم زموږ په ژوند کې موندل کیږي په هغو کې هر یو د ځینو اسبابو په وسیله وده مومي او په تدریجي توګه تر دغه حالته رارسیدلې دي چې ریښې یې زموږ په تاریخ، عاداتو ، تعلیم، تمدن او د سیاست په نظام کې ډیرې ژورې او پیاوړې دي او د ژوند په بیلابیلو څانګو کې دغه ټولې نیمګړتیاوې یو د بل مرستندویه جوړې شوي

له دې نه وروسته زه نه پوهیږم چې کوم یو د پوهې څښتن به دا خبره ومني چې په دغسې حالاتو کې به د جزیي اصلاحاتو کوم تدبیر نتیجه ورکړي که تاسو دیني مدرسې پرانیزئ او یا د کلمې او لمانځه په تبلیغ او یا د فسق او فجورو پر خلاف په وعظ او نصیحت لاس پورې او د ګمراه ډلو ټپلو پر خلاف مورچلې جوړې کړئ . زیات نه زیات که چیرې څه په لاس رازي نو هغه به یوازې دا وي چې د باطل

مخه به لړڅه ډب کړئ او ددیني ژوند لپاره به د ساه ویستلو یو څه فرصت تر لاسه کړئ.

لیکن له دغو تدبیرونو څخه دا هیله نه شي کیدی چې د الله عزوجل کلمه لوړه او د جاهلیت کلمه ټیټه او د تاریخ ژورې کندې ته بې وسپارئ دا ځکه چې د الله عزوجل د کلمې د ټیټوالي او د جاهلیت د کلمې د لوړتیا لپاره چې کوم اسباب ضروري ووهغه ټول موجود دي پـه دې ټوگه كه تاسو غواړئ چې اوسنی نظام دې په هماغو بنسټونو ولاړ وي خو لـه اخلاقي ، ټولنيـزو ، اقتصـادي او سياسـي اوسـنيو فسادونو څخه دې کوم يو اصلاح کړی شي نو دا کار په هيڅ صورت ممکن نه دی دا ځکه چې په هغوی کې هر شی د ژوند د موجوده نظام د بنسټیزو فسادونو او بی لاریو رامینځته کونکی او پالونکی دی او هره یوه خرابي له نورو ډیرو نیمگړتیاؤ او فسادونو سره مرسته کوي.

په دغسې حالاتو کې د يو هر اړخيز فساد د له مينځه وړلو لپاره له يو هر اړخيز پروگرام نه پرته بله چاره نشته او هغه داچې له رينبو څخه نیولې تر ښاخونو پورې ټول له بشپړ توازن سره دې د اصلاح او سمون عملیه جاري وي

اوس پوښتنه داده ښه نو د اصلاح او سمون هغه کړنلاره کومه ده چې موږ هدف ته رسوي. ؟ خوددې پوښتنې تر تفصيلي ځواب دمخه د هـوې پوښتنې ځواب ضروري گـڼم او هغـه دا چې موږاو تاسو په واقعیت کې څه غواړو ؟

## د تجرد (له باطل څخه د ګوښه کېدو) اړتیا

حقیقت دادی چې موږ یوې داسې مرحلې ته رسېدلي یو چې هلته مسلسلو تجربو ثابته کړې ده چې د اسلام او جاهلیت دغه مرکب معجون چې تر اوسه زموږ د ژوند نظام جوړوي تر ډیرې مودې پورې سره یو ځای نه شي چلیدلی او که چېرته چلند هم ولري نو په دنیا او اخرت کې به زموږ د بشپړې بربادۍ لامل وي دا له دې کبله چې موږ یې په دغه حالت اخته کړي یو داځکه چې ایمان رانه د ورکیدلو په حال کې دی او کفر مو خپل ځان ته راکاږي. نه موږ د امریکا، روسیې او انګلستان په شان په بشپړ تجرد سره خپل ژوند جوړولی شو دا ځکه چې له ایمان او اسلام سره اړیکه مو د غسي ماده پالونکي تګلارې ته نه پرېږدي او نه مو د یو ریښتیني مسلمان قام په شان خپل اخرت او دنیا جوړه کړه او نه په بشپړه توګه د جاهلیت د فتنو څخه ډکه لار انتخابولی شو ددغه شک، تردد او تذبذب له امله نه ماده پرست شو او نه الله پرست له همدې کبله زموږ هر یو کار دیني وي او که دنیوي ددوو متضادو افکارو اور حجاناتو د اخ او ډب ډګر ګرزیدلی دی چې هر یو بل له مینځه وړي او د هیڅ یو فکر او رجحان غوښتنه هم نه شي پوره کولی.

دغه حالت ژر تر ژره د پای ته رسولو وړ دی که چیري موږ د خپل ځان دښمنان ونه اوسو نو موږ ته په هر حال تجرد (د باطل له نظامه ګوښه کیدل) ضروري دي.

ددغه تجرد یوازې دوه صورتونه کیدی شي موږ ګورو چې په موږ کې څوک کومه یوه بڼه غوره کوي. ددې یوه لاره داده چې زموږ پخوانیو واکمنانو چې دغالب تهذیب او تمدن کومه لاره غوره کړې وه

هغه دې اختیار کړی شي او د الله عزوجل ، اخرت، دین او دیني تهذیب اخلاق دې بشپړ پریښودل شي یو سوچه ماده پرستانه تهذیب او تمدن ته دې وده ورکړی شي تر څو دغه هیواد دویمه روسیه او یا امریکا جوړ شي.

په واقعیت کې دغه لار ناسمه او د حق خلاف او بربادونکې ده زه بشپړ باور لرم چې په اسلامي هیوادونو کې ددې نظریې بري ته رسیدل له امکانه وتلي خبره ده دلته د خلکو له اسلام سره ژوره مینه او محبت دی . د ژوند تر وروستي سلګۍ پورې هیڅوک له اسلامه نه تیریږي تر کومه ځایه چې کوم خلک په دغه ماده پرستانه لاره درومي ځما وینا هغو ته متوجه نه ده هغوی ته موږ خپل اصلاحي پروګرام نه وړاندې کوو بلکې هغوی ته د جګړې او مقابلې اعلان کوؤ .

د تجرد یو بل صورت دادی چې موږ د انفرادي او ټولنیز ژوند د سمون او لارښوونې لپاره هغه لاره انتخاب کړو چې قران کریم او نبوي سنتو موږ ته ښودلې ده . موږ ته څرګنده ده چې په زیاترو اسلامي هیوادونو کې د مسلمانانو شمیر په هرو زرو افرادو کې ۹۹۹ تنه دی دا د هر هغه شخص غوښتنه ده چې په الله عزوجل ، رسول ، او اخرت ایمان ولري البته کوم خلک چې ددغې لارې واکمنې غواړي هغوی دې پردې ښه وپوهیږي چې له کومو حالاتو څخه موږ تیریږو په هغې کې سوچه اسلامي نظام زموږ د ژوند د لارښود او واکمن نظام په توګه کېدل څه اسانه خبره نه ده . له همدې کبله موږ ته په کار دې چې د اسلام او غیر اسلامي ارزښتونو بشپړ بیلتون راولو چې له پیړیو پیړیو یې زموږ له اسلامي ژوندون سره ترکیب موندلی .

د سوچه او خالص اسلام جوهر د قران کریم او نبوي سنتو په رڼا کې سره بیل او جلا کړو څرګنده ده چې زموږ دغه کار به د هغو ډلو ټپلو له

سخت مخالفت سره مخامخ شي چې هغوی له جاهليت سره په مرکب معجونې اسلام باوري دي . ددې کار لپاره دا هم ضروري ده چې موږ د لويديځ تمدني او علمي پرمختګ د ژوند له فلسفې، فکر، اخلاقو او د ټولنيز ژوند له ټولو ګمراهيو او چټليو څخه جلا کړو او لومړی شی واخلو او دويم شی په بشپړه توګه پريږدو.

دا يو څرګند حقيقت دی چې دغه کار به زموږ هغه ډله ونه زغمي چې هغوی سوچه لويديځوالي يا د اسلام غربي ماډل غواړي له همدې کبله لازمه ده چې داسې وګړي دې تيار شي او په منظمه توګه دې کار پيل کړي چې د اسلامي فکر سره سره تعميري صلاحيتونه هم ولري او بيا د پاخه سيرت او نيکو اخلاقو او ټينګې ارادې څښتنان هم وي څرګنده ده چې ددغسې افرادو په درلودلو سره به موږ داسې برياليتوب تر لاسه کړو چې د اقتصادي او سياسي څپو په وړاندې به ثابت قدم پاتې شو.

په همدې توګه لازمه ده چې د دروغو تهمتونو د بارانونو په وړاندې په بشپړ صبر او ډاډ مقابله وکړو له دې ټولو شرطونو څخه وروسته لازمه ده چې د اسلام د غلبې او برې په خاطر د يولوی څپانده سيلاب په څير خوځښت راپورته کړو لکه څنګه چې لويديځ تهذيب د سيلاب په څير راغلی او د ژوند په هره څانګه يې برلاسی تر لاسه کړی ؤ .

له دغسې يو هر اړخيز ولسي توپان نه پرته هيڅکله نه شي کيدی چې د لويديځ تهذيب څخه د قدرت واګې واخيستل شي هيڅکله امکان نه لري چې د ښوونې او روزنې ، د اقتصاد او سياست نظام له يو سره تغير او پر ځای يې يو سوچه د اسلامي تمدن په بنسټونو ولاړ نظام په پښو ودرولی شي زموږ موخه د هند او پاکستان د

مسلمانانو د زاړه تهذیب احیاء نه ده . بلکې د اسلام له سره بیا ژوندون او برلاسی مو هدف دی .

موږ د نویو علومو او فنونو د پرمختګ مخالف نه یو بلکې له هغه تهذیب او تمدن نه باغي او یاغي یو چې د لویدیځ فلسفي او افکارو رامینځته کړی دی په همدې توګه موږ د دوو پیسو له سیاسي رهبرانو او لوبغاړو سره لوبه نه کوؤ بلکې د خپل ولس افراد چاڼوو او داسې وګړي ورځخه تیاروو چې د قران او سنت حقیقي اسلام دلته د ژوند غالب نظام ګرزولو لپاره د قدامت ( معجوني اسلام )او تجدد ( لویدیځ ماډله ) اسلام دواړو سره مقابلې ته تیار وي .

موږ د ژوند یوې او یا ځینو برخو ته د اسلام په رنګ رنګولو ته تیار نه یو موږ په کلکه غوښتنه کوو چې د اسلام نظام دې په ټول ژوند یعنی په انفرادي او ټولنیز، په محاکمو، اقتصاد، حکومت او سیاست لنډه داچې په ټول ژوند واکمن وي .

د اسلام ددغې بشپړې واکمنۍ لپار ه کیدی شي چې زموږ هیواد د روحاني اخلاقي او مادي ګټو څخه په بشپړه توګه ګټه واخلي کوم چې د الله جلت عظمته په لاربښوونو د چلند فطري نتیجه ده بیا دا هیله کیدی شي چې دغه هیواد د ټولو اسلامي هیوادونو لپاره د خیر لورته د بلنې او د ټولې نړۍ لپاره د هدایت مرکز وګرزي . ان شاء الله .

# زموږ د کار لايحه او پروګرام

زموږ د دغه هدف د پيژندني او زموږ د کار د لايحې په پوهنه کې کومه سختي نه رامينځته کيږي د دې کار څلور لويې لويې برخې دي چې هغه به جلا جلا وڅيړو :

۱: د دې پروګرام لومړنۍ برخه د افکارو تطهير او تعمير دی په دې لړ کې دغه هدف مخې ته ايښودل په کار دي چې يو لور ته د غير اسلامي قدامت څنګل صفا کړو او د حقيقي اسلام لاره خلکو ته ځرګنده کړو اوله بلې خوا د لويديځ په علومو او فنونو او د تهذيب او تمدن پر نظام تنقيد وکړو چې په دې کې کوم شی غلط او د پريښودلو او کوم شی د اخيستلو وړ او صحيح دی . او په دې خبره ښه غور او دقت وشي چې د اسلام په بنسټونو د اوسني وخت د مسايلو او معاملاتو د منطبق کولو په خاطر د يو ښه اوغوره تمدن تعمير څنګه کيدی شي ؟

په دې کې به د ژوند د يوې ځانګې نقشه څرنګه وي له دغې لارې به افکار بدلون مومي او له دغه بدلون څخه به د ژوند اصلي لوری بيا له سره پيل شي او د اذهانو د نوي تعمير لپاره به فکري غذا حاصله شي

۲: د دې کار دويمه برخه دنيکو او صالحو افرادو پلټنه ، تنظيم او تربيت دی . د دې کار لپاره ضروري دی چې موږ داسې نارينه او ښځينه انتخاب کړو چې د نوی او زاړه جاهليت له ناپوهيو څخه پاک او په دوی کې د اصلاح جذبه موجوده وي حق وپيژني او د هغه لپاره د مال او ځان سرښندلو ته تياروي برابره خبره ده چې هغه د نوي تعليم او زده کړې خاوند وي او که د پخوانيو تعليماتو ،د عوامو له جملې څخه

وي او که د خواصو، غريب وي او که امير او يا د مينځنۍ طبقې څخه وي

داسې وګڼي چې هر چېرته وي د عافيت له کوټ څخه يې د عمل او کار ډګر ته راويستل په کار دي زموږ په ټولنه کې ښه خلک موجود دي مګر خپاره واره دي او يا د جزيي اصلاحاتو او پراګنده کوښښونو له امله کومه ګټوره نتيجه نه تر لاسه کوي هغوی يوه مرکز ته را ټولول او ترېو حکيمانه پروګرام لاندې يې د اصلاح او تعمير لپاره په منظمو هلو ځلو استخداموول زموږ اساسي دنده او مسئوليت دی.

له دې نه وروسته د دې خبرې ضرورت دی چې پر يوې ډلې اکتفاء ونه کړی شي بلکې له دې سره سره دې د ټولو افرادو فکري او اخلاقي روزنه هم سرته ورسيږي تر څو يې فکر زيات روښانه او اخلاق يې لا پياوړي او د ډاډ وړ وګرزي موږ بايد دغه حقيقت له ياده ونه باسو چې اسلامي نظام يوازې په کاغذي نقشو، چيغواونارو، نه رامينځته کيږي ددې کار د برياليتوب او تطبيق ټول انحصار پر دې خبرې دی چې ايا ددې ټګلارې تر شا د تعميري صلاحيتونو اونيکو افرادو ملاتړ په برخه دی او که نه؟ د کاغذي نقشو نيمګړتيا د الله جلت عظمته په مرسته د علم او تجربې په وسيله هر وخت لرې کيدی شي البته د صلاحيت او صالحيت د نشتوالي جبران اسانه کار نه دی.

۳:ددې کار دريمه برخه د ټولنيزې اصلاح لپاره هلې ځلې کول دي په دې کې د ټولنې د هرې يوې طبقې حالات په نظر کې نيول کيږي ددې برخې د کار دايره دومره ارته او پراخه ده څومره چې د کار کونکو د وسايلو پراختيا ده ددې مقصد په خاطر د تحريک د کار کونکو د صلاحيتونو او لياقت په نظر کې نيولو سره هغوی په بيلا بيلو

برخوويشل کيږي او هر يو ته هغه کار سپارل په کار وي چې د هغه کار د چلولو اهليت او لياقت ولري.

په دوی کې به ځينې په ښاري عامو وګړو کې کار کوي . او ځينې به په کليوالي خلکو کې ځينې به کار يګړو او بزګرانو ته خپل پام ور اوړوي ځينې به د ټولنې مينځنۍ طبقه تر خپلې اغيزې لاندې راولې او ځينې به لوړه طبقه ځينې به د دولتي کار کونکو د اصلاح او سمون لپاره هلې ځلې کوي ځينې به په سوداګرو او کسبګرو خلکو کې کار کوي . ځينې به د تيرو علمي درس ځايونو ( علماؤ ) په طرف متوجه وې ځينې به ليسو او پوهنتونونو ته پام اړوي ، ځينې به د جمود او خمود ديوالونه نړوي او ځينې به د الحاد او فسق مخه ډب کوي ځينې به د شعر او ادب په ډګر کې کار کوي خو ځينې به د علم او تحقيق په ډګر کې بوخت وي اګر که په دوی کې د هر يو د کار دايره جلا ده خو ټول د يو هدف او يوه پروګرام لاندې پر مخ روان دي تر څو ټول ولس په دې جال کې راګير کړی شي .

هغوی ټاکلی نصب العين لري چې ټولې فکري ، اخلاقي او عملي انارشي او ګډوډي له مينځه يوسي د دين اصلي سرچينه قران کريم او نبوي سنت د مقصد په حيث او نوي ساينسي علوم د دين د وسيلې په توګه په ټول ولس کې خپاره کړي له عامو خلکو څخه نيولې تر خاصو خلکو پورې په ټولو کې دې د صحيح اسلامي فکر ، اسلامې اخلاقو او د ريښتينو مسلمانانو عملي نمونه نړۍ والو ته وښودله شي . جوته ده چې دغه کار يوازې د وعظ ، نصيحت ، تلقين ، خپرونې او انفرادي اړيکو او خبرو اترو په وسيله نه ترسره کيږي بلکې په جلا جلا سيمو کې په بنيادي توګه د افکارو تعميري پروګرام پيلول په کار دي د مثال په توګه په کوم ځای کې چې مو د تبليغ او دعوت د خپرونې په

لړ کې ځينو وګړو ته قناعت وبخښنه او په دې کار کې مو بری تر لاسه کړ هلته د هغوی يو تنظيم قايم کړی شي او د دوی په ښوونې روزنې دې لاس پورې کړی شي بيا دې هلته پخپل ځای کې د دې تنظيم په وسيله لاندې چارې تر سره کړی شي.

د کليو جوماتونو د حالاتو اصلاح، عام وګړي د اسلام له بنسټيزو ښوونو سره اشنا کول د بې سواده خلکو د تعليم انتظام لړ تر لړه په دې سيمه کې د يو کتابتون فعالول. له ظلم او زور زياتي څخه د خلکو دژغورنې لپاره ټولنيزې هلې ځلې کول د سيمې د خلکو په مرسته د نظافت، پاکوالي او روغتيا هلې ځلې کول په کلېو کې د يتيمانو، کونډو، شلو او معذورو او بې وزله شاګردانو لستونه جوړول په هره لاره چې کيدی شي له هغوی سره مناسبه مرسته کول او که چېرې وسايل برابر شي هلته لومړنی ښوونځی، متوسطه، ليسه او يا ديني مدرسه جوړول چې له ښوونې سره يو ځای د افرادو د اخلاقي روزنې انتظام هم وکړي.

په دې توګه چې زموږ کوم ملګرې په مزدورانو او کاريګرو کې کار کوي د سوسياليزم او کمونزم له زهرو څخه د ژغورنې لپاره يوازې په تبليغ اکتفاء مه کوئ بلکې په عملي ډول د هغوی د ستونزو د حل لپاره په کوښښ لاس پوری کړئ هغوی ته يې ور په ګوته کړئ چې اسلام د ژوند بشپړ نظام او د ژوند ټولو ستونزو ته د حل ځواب وايې، هلته د کاريګرو داسې تنظيمونه جوړول په کار دي چې د هغوی هدف د عدل او انصاف ټينګول وي نه دا چې د توليد ټول وسايل په دولتي ملکيت بدل او فردي ملکيت په بشپړه توګه ملغی اعلان شي د هغوی تګلاره به په روا او معقولو لارو چارو د خپلو حقوقو د لاسته راوړلو لپاره کوښښ کول وي نه طبقاتي اخ او ډب.

د هغوی د کار طریقه به اخلاقي او قانوني وي نه تخریبي، د هغوی په مخکې به یوازې د خپلو حقوقو مسئله نه وي بلکې د خپلو فرایضو او مسئولیتونو سرته رسول به هم وي چې کوم مزدور او کاریګر په دې تنظیم کې د شمولیت غوښتنه وکړي پر هغوی به دغه شرط ارومرو اینښودل کیږي چې هغوی به له بشپړې ایماندارۍ سره د خپلې برخې میاشتنۍ مرسته ارومرو ورکوي

بیا به ددوی د کار دایره یوازې د خپلې پانګې او ډلې تر ګټو پورې محدوده نه وي بلکې دغه تنظیمونه چې له کومې طبقې سره اړیکه ولري د هغوی د دیني اخلاقي او ټولنیز حالت د سمون لپاره به په کوښښ لاس پورې کوي ددغه عام اصلاحي کار د بشپړې کړنلارې بنسټیز اصول دادي چې کوم شخص په کومه حلقه او طبقه کې کار کول وغواړي په مسلسل او منظم ډول دې سرته ورسوي او خپلې هلې ځلې دې بې نتیجې نه پریږدي

موږ ته داسې نه دې په کار چې د مرغانو او ړندو خلکو په شان د تخم په شیندلو لاس پورې کړو ددې پر عکس موږ ته د بزګر په شان کار کول په کاردی چې هغه یوه ټاکلې ځمکه اړوي او د کښت په کرلو لاس پورې کوي د کښت تر ریبلو پورې په دوام داره توګه کار کوي او خپل کوښښونه یوې نتیجې ته رسوي له لومړۍ طریقې څخه ځنګل او له دویمې تګلارې څخه کښت رامینځته کیږي.

۴: د عملي تګلارې څلورمه برخه د حکومت د نظام اصلاح او سمون دی موږ په دې پوهیږو چې د ژوندانه د اوسني فساد او ورانې د لرې کولو یو تدبیر هم بري ته نه شي رسیدلی تر څو پورې چې د اصلاح د نورو کوښښونو سره سره د حکومتي نظام د سمون کوښښ ونه کړی شي.

له همدې املـه د ښوونې او روزنې نظام ، قانـــون ، نظم او نسق او ودرزق د ویش چې څومره ناوړه اغیزې دي ددې په مقابل کې دودانی او ښکلا هغه تدبیرونه چې یوازې په وعظ ، نصیحت او تبلیغ پورې منحصر وي هیڅکله هم د کار وړ نه بلل کیږي . له همدې امله که موږ په واقعیت کې د خپل هیواد نظام د فسق او ګمراهی له لارو څخه ژغورل او په سمه لاره یې روانول وغواړو . نو موږ ته لازمه ده چې د قدرت له ګدی څخه د دوی د لرې کولو او د صالحو او نیکو وګړو اقتدار ته د راوستلو کوښښ وکړو دا یو څرګند حقیقت دی که چېرې د ښو خلکو په لاس کې د قدرت او واک واګې اوسي نو د ښوونې او روزنې ، قانون ، نظم او نسق د پالیسیو په بدلون سره به په څو کلونو کې هغه ښې اغیزې پریوزي چې په غیر سیاسي تدبیرونو یې په یوه پیړۍ کې دننه نه شوې رامینځته کولی .

اوس پوښتنه داده چې دغه حکومتي او سیاسي تغیر څنګه رامینځته کیدي شي ؟ په جمهوري نظام کې یې یواځینی د انتخاباتو لاره ده ، د عامو وګړو په روزنه دې لاس پورې کړی شي د عامو وګړو د انتخاب او ټاکنې معیار دې بدلون ومومی او په دې کې دې بشپړ اصلاحات رامینځته کړی شي او بیا دې داسې نیک وګړي د اقتدار مقام ته ورسول شي چې د مملکت نظام د سوچه اسلام په بنسټونو د اداره کولو او د حکومت د چلولو اهلیت او صلاحیت هم ولري.

زموږ د معلوماتو له مخې په دې هیواد کې د سیاسي نظام د نیمګړتیاؤ بنسټیز لامل د انتخاباتو په تګلارو کې دی ، هر کله چې د ټولټاکنو وخت راورسیږي نو د منصب او چوکۍ وږي تږي خلک راپورته او منډې تړې پیل کړي یا خو د کومې ډلې ټکټ لاس ته

راوړي او يا د ازادو اميدوارانو په حيث خپلو کوښښونو ته دوام ورکوي .

په دغو هلو ځلو کې هغه د هيڅ رنګ اخلاقو او کومې ظابطي پابند نه وي د هيڅ رنګ دروغو ، دوکې ، فشار او د ناروا لاپو شاپو په استعمال حيله نه کوي . چاته وعدي ورکوي او په دې توګه د خلکو رايه لاس ته راوړي، چاته ګواخونه کوي او په دې بې تر اغيزي لاندې راولي ،چاته دوکه ورکوي او چاته د تعصب، ډلې او يا قام پالنې له امله وړانديز کوي او د هغه رايه حاصلوي

د دغې ګنده او چټلې لوبې په ډګر د قام شريف وګړي خو لومړی ميدان ته نه راوزي که چېرې څوک راووزي نو په لومړي ګام سره هغوی صحنه پرېږدي مقابله يوازې د هغو خلکو په مينځ کې پاتې شي چې هغوی نه له الله جلت عظمته څخه ويرېږي او نه له خلکو شرميږي او نه يې د لوبې په کولو کې هيڅ رنګ باک تر سترګو کيږي . بيا په دوی کې هغه څوک بري ته رسيږي چې په ټولو خلکو کې د روغژن او چلبازوي .

عام وګړي په رايه ورکولو کې ګډون کوي نه د چا اصولو ، مرام ، مقصد او سيرت او لياقت ته ګوري څوک چې زياتې رايې تر لاسه کړي هماغه لوبه ګټي .جوته ده چې اوس د حقيقي رايو اکثريت کوم شی نه دی د پيسو په وسيله اخيستل شوې رايې، جعلي رايه ورکونکي او د انتخاباتي حلقو بې دينه کار کونکي مامورين پخپلو لاسونو باندې څو څو ځله هغو وګړو ته ماتې ورکوي چې تر ټولو يې اصلي رايې زياتې او زيات ولسي اعتماد ورته په برخه وي ډير ځله انتخاب ته نوبت نه رسيږي . د انتخابي چارو د يوبې احساسه مامور د شخصي دل چسپی پر بنسټ او يا د بل چا په اشاره د ټولټاکنو ټول هيله من په

یو ځل قلم خوځولو سره له ډګره لري کولی او د هغوی د خوښې سړی له مقابلې پرته د انتخاباتي حلقې وکیل جوړیدلی شي .

هر هغه څوک چې لږ عقل هم ولري ددغه وضعیت په لیدلو سره اټکل کولی شي چې تر څو پورې د انتخاب د غسې لوبه روانه وي هیڅکله هم د ، ولس د شریفو ، نیکو او با ایمانه خلکو را څرګندیدل امکان نه لري ددغې تګلارې مزاج داسې دی چې د ولس بدترین خلک ډګر ته راووزي او د هیواد بداخلاقه او نا کاره وګړي انتخابات ګټي او پر هغه بنسټ د هیواد نظام چلوي .

د انتخاباتو دد غسې تګلارې په بشپړه توګه بدلول په کار دي او پر ځای یې داسې لارې چارې لټول ضروري دي چې د هغې په وسیله ښه خلک رامینځته کړی شي .

زه د هغی لنډه خیړنه ستاسو حضورته وړاندې کوم تاسو به پخپله وګورئ چې ایا له دې کړنلارې څخه د حکومت د نظام د اصلاح هیله کیدی شي او که نه ؟

لومړی : دا چې انتخابات دې د اصولوپر بنسټ وي نه د شخصي ، سیمه ئیزو او یا قبیلوي ګټو پر اساس .

دویم : عام وګړي دې داسی وروزل شي چې په دې پوه شي چې د یو اصلاحي پروګرام د تطبیق لپاه څرنګه خلک موزون او برابر دي په هغوی کې باید کوم رنګ اخلاقي صفات او فکري او علمي صلاحیتونه موجود اوسي .

دریم : د انتخاباتو په لارو چارو کې دې د پیسو کارول په بشپړه توګه بند شي دا ځکه چې په عام ډول په دې توګه خپل چاري خلک تاکل کیږي ددې پر ځای داسې یوه لاره چاره رامینځته کول ضروري دي چې د هغې په وسیله په هره انتخابي حلقه کې ښه او هوښیار

خلک یو تر بله سره کښیني او کوم موزون نیک سړی وګوري او له هغه څخه غوښتنه وکړي چې هغه دغه کارته تیار شي بیا دې ددې شخص په خاطر منډې ترړې پیل کړي او خپله شتمني او وخت دې په دې لار کې په لګښت و رسوي او د هغه نیک انسان په بریالیتوب کې دې بشپړه ونډه واخلي په دې توګه چې څوک وټاکل شي هغوی به بې غرضه وي د خپل ځان لپاره نه بلکې د هیوادوالو د ګټو او د هغوی دژوند د ښه توب لپاره به کار کوي.

څلورم: چې کوم شخص په دې توګه د خپلې سیمې د وکالت لپاره ونومول شي له هغو څخه دې په عمومي غونډه کې تعهد واخیستل شي چې دی به د اصولو پابند وي پارلمان ته په رسیدلو سره به د ملي ګټو لپاره کار کوي.

پنځم: کوم خلک چې د داسي شخص د بریالیتوب لپاره هلې ځلې کوي له هغه څخه دې سوګند واخلي چې هغه به د اخلاقي حدودو او ظوابطو بشپړه پابندي کوي له هیڅ رنګه تعصب، دروغو، چل او دوکې څخه به کار نه اخلي د خلکو رایه په پیسونه تر لاسه کوي او تر پایه به په انتخابي لوبه کې د ریښتینولۍ او دیانت اظهار کوي.

ځما په فکر که چیري په دې هیواد کې په دې پنځو طریقو انتخابي نظام وازمایل شي نو جمهوریت به د بدعمله وګړو له مشرتابه څخه پاک کړی شي

دا ضروري نه ده چې ددې ښه نتایج دې ژر تر ژره ښکاره شي که چېرې په دغه طریقه انتخابات وکړی شي جوته ده چې په بشپړه توګه به د جمهوریت مزاج بدل شي. کیدی شي په دغو طریقو سره د حکومت د نظام په واقعي بدلون کې به پنځه ویشت او یا دیرش کاله

وخت ولګیږي خو زه پوهیږم چې د بدلون لاره همدغه ده او کوم بدلون چې په دغې طریقې وشي ان شاء الله هغه به ډیر پوخ او مستحکم وي .

درنو لوستونکو !

ما په دغه لیکنه کې رنځ او درنځ ټول اسباب او د حل لارې په ګوته کړې دي او هغه هدف مې هم په ګوته کړی دی چې د هغه لپاره د حل کوښښونه کولی شي له دې نه وروسته دا رایه قایمول ستاسې کار دی چې څماکومه خبره د منلو وړده .

والسلام

# اسلام
# د ژوند بشپړ
# نظام

داسلام اخلاقي نظـــام
داسلام سياسي نظـــام
داسلام اجتماعي نظام
داسلام روحاني نظـــام.
داسلام اقتصادي نظام

# داسلام اخلاقي نظام(۱)

دانسان په بدن کې اخلاقي جذبه يو فطري احساس دی چې ځينې صفات خوښوي او ځينې نه خوښوي دغه حس په انفرادي ډول کيدی شي په ځينو خلکو کې لږ او يا ډير وي خو په مجموعي توګه بشريت د تل لپاره په ځينو اخلاقو د ښه والي او په ځينو دبدوالي حکم کړی دی ربښتيا ويل ، عدالت ، د ژمنې پابندي او امانت يې د تل لپاره په انساني اخلاقو کې د ستاينې وړ بللې هيڅکله داسې وخت نه دی شوی چې دروغ ،ظلم دوعدې ماتول او خيانت چاخوښ کړی وي ددې پرعکس ، خواخوږی ، زړه سوی ، سخاوت او د نظر پراختيا ته د تل لپاره په درنه سترګه کتل شوي ، خپل غرضي ، سخت زړه توب ، بخل او تنګ نظری ته هيڅکله هم د وياړ مقام نه دی په برخه شوی .صبر ، زغم عزم او ميړانه د تل لپاره هغه اوصاف دي چې د اخيستلو او عمل کولو وړ ګڼل شوي ، بې صبري ، ارتجاع ، غوسه کيدل بې حوصلې توب او په بې زړه توب باندې هيڅکله هم چاښه نه دي ويلي د نفس کنترول ، خو د داري ، شايستګي انکسار او عاجزي دتل لپاره په ښو صفاتو کې شميرل شوي هيڅکله داسې نه دي شوي چې د نفس بندګي ، کم ظرفي او اخلاقي کوږوالي ته دښوخويونو په فهرست کې ځای ورکړ شوی وي مسؤليت پيژندنه ،وفا ، استعداد اودمسئوليت احساس ته تل دوياړ په سترګه کتل شوي ، مسئوليت نه پيژندل او بې وفا يې ته کله هم چا په ښه سترګه نه دي کتلي ، په دې توګه د ټولنيز ژوند په ډګر د ښو او بدو اوصافو په معامله کې ټول بشريت په يوه خوله دی ، د عزت او وياړ مستحقه هغه ټولنه ده چې دافرادوترمينځ يې دمرستې ،محبت،خيرغوښتنې ټولنيز عدالت او ټولنيز مساوات احساس ژوندی پاتې وي بيلتون ، ګډوډي بې

---

داد مولنا رحمة الله عليه هغه تاريخي وينا ده چې د ۱۹۴۸م کال . جنوري دمياشتې په شپږمه نيټه دلاهور له راډيو خپره شوې ده .

نظمي ، بې اتفاقي ، خپل مينځي بدخواهي ، ظلم ، بې انصافي هيځکله هم د ټولنيز ژوندانه په ډګر په ښو صفاتو کې نه شميرل کيږي همدغه معامله دنيکۍ او بدۍ هم ده ، غلا زنا قتل ډاکه رشوت خوړل دوکه او فريب ښکنځلې بده وينا دخلکو ازارول غيبت چغلي حسد بهتان ويل او فساد اچول هيځکله په ښو چارو کې ندي شميرل شوي . مکار ، کبرجن ، رياکار ، منافق او حريص وګړي هيڅکله د ښو خلکو په کتار کې نه دي حساب شوي

ددې پرعکس د مور او پلار خدمت ، دخپلوانو مرسته ، له ګاونډيانو سره ښه چلند له دوستانو سره انډيوالي ديتيمانو او بې کسه خلکو په حال ځان خبرول د مريضانو پوښتنه او د غم ځپلو مرسته د تل لپاره ښه صفات ګڼل شوي دي پاک لمنی ، ښې وينا ، نرمی ، او خير غوښتنې ته تل په درنه سترګه کتل شوي

بشريت خپل ښه عناصر هغه خلک بولي چې رېښتيني او صادق او په هره معامله کې پرې اعتبار کولی شي هغه چې ظاهر او باطن وينا او کړه وړه يې سره برابروي څوک چې په خپل حق قانع اوسي او د نورو حقوق په براخه سينه اداء کوي پرامنه ژوند کوي او نورو ته امن ورکوي اوچې د هغه له شخصيت څخه د خيرهيله کيږي او د بدۍ انديښنه ورڅخه نه وي .

له دې نه معلومه شوه چې انساني اخلاق په بنسټيزه توګه هغه نړۍ وال حقيقتونه دي چې ټول انسانان يې پېژني نېکي اوبدي کوم پټ شيان نه دي چې هغې پسې دې غوټې ووهل شي او راودې وپستل شي بلکې بشريت ته پيژندل شوي شيان دي چې احساس يې د بشر په فطرت کې اينبودل شوی همدالامل دی چې قران کريم په خپله ژبه کې نيکي ته معروف او بدۍ ته منکر وايې . معروف هغه شي ته وايې چې ټول خلک يې ښه بولي او منکر هغه شي ته ويل کيږي چې خلک يې بد بولي همدغه حقيقت قرآن عظيم الشان په نورو الفاظو

داسې بیان کړی دی : ﴿فالهمها فجورها وتقواها﴾ يعني دانسان نفس ته الله جلت عظمته د بدۍ او نيکۍ پوهه په الهامي توګه ورکړې ده .

## په اخلاقي نظامونو کې د اختلاف لامل

اوس پوښتنه داده هرکله چې نيکي او بدي پیژندل شوې شيان دي او نړۍ وال د تل لپاره دځينو صفاتو په ښه توب او د ځينو په بدوالي سره متفق دي نو بيا په نړۍ کې جلا جلا اخلاقي نظامونه څنګه راپيدا شوه ؟ د هغوی ترمينځ بيلتون پرکوم اساس دی هغه کوم شی دی چې له امله يې موږ ويلی شو اسلام ځانته يو مستقل اخلاقي نظام لري . ښه دی نو داخلاقو په معامله کې د اسلام امتيازي خصوصيت څه شی دی ؟

ددې مسئلې دپوهېدو په خاطر موږ د نړۍ په بيلا بيلو اخلاقي نظامونو نظر اچوو نو په لومړۍ کتنه کې چې کوم بيلتون زموږ مخې ته راځي هغه دادی چې بيلا بيل اخلاقي صفات چې د ژوند په مجموعي نظام کې داندازې ، مقام او مصرف د تجويز کولو او د هغوی ترمينځ د نسبت په قايمولو کې ټول يو تربله سره بيلتون لري بيا په ډير ژور نظر سره دغه بيلتون داسې معلوموليی شو چې په اصل کې د اخلاقو دښه والي او بدوالي دمعيار د څرګندولو او د خير او شر د وسيلې په ټاکلو کې سره د غه نظامونه جلا دي د هغوی ترمينځ په دې کار کې هم اختلاف دی چې د قانون ترشا هغه نافذه قوت څه شی دی چې د هغې په زور سره هغه تنفيذ شي او بيا هغه کوم مجرکات دي چې انسان د هغه قانون منلو ته تيار وي ليکن کله چې موږ ددې اختلاف پته معلومؤو نو په پای کې موږ ته دغه حقيقت څرګنديږي هغه اصلي شی چې د دغو ټولو اخلاقي نظامونو لارې يې سره جلا کړې دي دادي چې دهغوی ترمينځ د کايناتو په تصور او په کايناتو کې د انسان په حيثيت او هدف کې

اختلاف له ریښو څخه نیولې تر ښاخونو پورې او له ښاخونو څخه د هغې تر روح او دهغې تر مزاج او بڼې پورې ټول یې یو له بل څخه جلا کړې دي.

په انساني ژوند کې اصل پریکنده پوښتنې دادي چې ایا د غه کاینات څښتن لري او که نه؟ که چیرې موجودیت یې ومنل شي نو ایا دغه خدایان ګڼ دي او که یو دی؟ چې الوهیت یې ومنل شي نو دهغه صفات څه دي؟ له موږ سره یې څه تعلق دی؟ ایا هغه زموږ د لاربنوونې کوم انتظام کړی دی او که نه؟ ایا موږ د هغه جلت عظمته پروړاندې ځواب ورکوونکي یو او که نه؟ که چیرې ځواب ورکوونکي اوسو نو چاته ځواب ورکوونکي یو؟ او زموږ دژوند هدف او انجام څه شی دی چې دهغې په نظر کې نیولو سره موږ کار وکړو؟ ددغو پوښتنو ځواب چې دکوم نوعیت پربنسټ وي په هماغه برابر به یې دژوند نظام هم جوړښت مومي او د هغې په برابربه یې د اخلاقو دنظام حال هم وي.

په دغه لنډه وینا کې به ځما لپاره ډیر سخته وي چې د نړۍ دټولو نظامونو جاج واخلم او دا ووایم چې په هغې کې کومو وګړو دغو پوښتنو ته څنګه ځوابونه ورکړي دي.

هغو ځوابونو دهغه مشکل او لارې په ټاکنه کومه اغیزه غورځولې ده زه یوازې داسلام په اړه عرض کول غواړم چې د هغو پوښتنو کوم ځواب دی او د هغه پربنسټ څنګه ځانګړی اخلاقي نظام رامینځته کیدلی شي.

## اسلامي ژوندون او اخلاق داسلام په رڼاکې

پورتنیو پوښتنو ته داسلام ځواب دادی چې دغه کاینات یو څښتن خالق، مالک او حاکم لري چې دغه ټول شیان یې پیداکړي دي هغه بې سیاله مالک حاکم او څښتن دی دهغه جلت عظمته دامر تر واکمنۍ لاندې داټول نظام چلیږي، هغه حکیم او مطلق واکمن په ځرګندو او پټو شیانو پوه له هر عیب، نیمګړتیا، کمزورۍ او نقصان څخه پاک دی دهغه الوهیت په داسې طریقه ټینګښت موندلی دی چې

هیچا ته اړ نه دی بې سیاله واکمن دې انسان د پیدا ینبت په لحاظ دهغه بنده دی دهغه مسئولیت او دنده داده چې د خپل خالق بندګي او اطاعت وکړي.

هغه باید دژوند په ټولو پړاوونو کې په بشپړه توګه دالله عزوجل بندګي وکړي هغه ته دبندګۍ دلارې تاکل دهغه خپل کارنه بلکې دهغه ذات کار دی چې د ټولو کایناتو څښتن او د هغه د لارښوونې لپاره یې خپل پیغمبران رااستولي او خپل کتابونه یې نازل کړي دي انسان مسئولیت لري چې دخپل ژوند دلارښوونې لپاره د هغه جلت عظمته دلارښوونو سرچینې ته مراجعه وکړي ، انسان په خپل ټول ژوند کې د الله جلت عظمته په وړاندې ځواب ورکوونکی دی دغه ځواب ورکول په دې نړۍ کې نه دي بلکې داهر څه به په اخرت کې وي د دنیا او نسنی ژوند دازموینې ډګر دی دلته باید دانسان ټول کوښښونه په دې خبره راوڅرخیږي چې هغه دآخرت په ځواب ورکولو کې دخپل څښتن په وړاندې بری ترلاسه کړي په دغه ازموینه کې دانسان ټول وجود شریک دی دهغه دټولو ځواکونو او صلاحیتونواو دژوند د هریو اړخ ازموینه به اخیستل کېږي په ټولو کایناتو کې چې له کوم شي سره مخامخ کیږي او دده ورسره تعامل وي په بشپړه توګه به حساب صورت ونیسي چې انسان ورسره څنګه تعامل کړی او دغه حساب کوونکی به هغه سپیڅلی ذات وي چې دځمکې پر ټولو ذراتو ، هوا ، اوبو اوبخپله د انسان په زړه ، دماغ ، لاس او پښو نه یوازې دده په حرکاتو او سکناتو بلکې دده په فکر او ارادې پورې په ټولو شیانو د علم څښتن دی دنړۍ په ژوند کې د انسان دټولو کړو وړو ریکارډ جوړیږي.

# د اخلاقي هلو ځلو هدف

د اهغه څه دي چې اسلام د ژوندانه بنسټيزو پوښتنو ته ځوابونه ورکړي دي دغه تصور او عقيده په کايناتو کې انسان ته حقيقي او د کاميابۍ وروستی پړاؤ ټاکي چې هغه ته رسيدل د انساني هلو ځلو نهايي هـــدف دی چې هغه د الله Y له رضـــا څخه عبـــارت دی.

د اهغه معيار دی چې پر هغې باندې د اسلام د اخلاقي نظام په عملي تګلارې پريکړه کيدی شي چې د اخير دی او يا شر د دې له ټاکنې وروسته اخلاقو ته هغه محور په برخه کيږي چې د هغې په شاوخوا ټول اخلاقي ژوند څرخيږي هغه د هغې کشتۍ حالت ته ورته نه وي چې د هوا او اوبو څپې يې هرې خواته ځغلوي دغه تعين د يو مرکزي مقصد مخې ته په ايښودلو سره ټولو اخلاقي صفاتو ته وړ حدود ، ځايونه او مناسب عملي شکلونه ټاکي په دغه صورت کې موږ ته هغه خپلواکه ځواکونه لاس ته راځي چې په ټولو بدليدونکو رابدليدونکو حالاتو کې يې ثابت ځای ترلاسه کړی دی . بيا تر ټولو لويه خبره داده چې د الله تعالی د رضا او خوښۍ په مقصود ګڼلو سره انسان ته لوی هدف او غايه په برخه کيږي چې د هغې په وسيله داخلاقي پرمختګ لايتناهي امکانات رامينځته کيږي چې په هيڅ پړاؤ کې هم د شخصي غرضونو ښکار کيدلی نه شي .

له معيار ورکولو سره سره اسلام د کايناتو په هکله د خپل تصور او انسان ته د اخلاقي حسن او قبحې ديو مستقل علم دوسيلې بنسټ هم ږدي هغه زموږ د اخلاقو علم يوازې د عقل او تجربې په بشري علومو کې نه دی منحصر کړی چې د تل لپاره د بدليدونکو پريکړو په

نتیجه کې زموږ اخلاقي قوانین هم بدلون ومومي او هغوی ته به هیڅکله استقرار په برخه نه شي

حقیقت دادی چې هغه موږ ته یوه داکلې سرچینه په لاس راکړې چې هغه دالله عزوجل سپیڅلی کتاب او د هغه د پیغمبرسنت دي چې له هغې نه موږ ته په هر حال او هر وخت کې اخلاقي لاربنوونې په لاس راتللی شي دغه لاربنوونې داسې دي چې دکورنی ژوند دکوچنیو معاملاتو څخه واخله د نړۍ وال سیاست تر لویو لویو پیښو پورې دژوند په هر اړخ او څانګو کې زموږ رهنمایي کوي

دهغې په دننه کې دژوندانه په چارو داخلاقي اصولو هغه پراخه انطباق (Widest Application) موندل کیږي چې په هیڅ پړاو کې دعلم بلې وسیلې ته زموږ اړتیا نه پیښوي .

## داخلاقو ترشا نافذونکی ځواک

داسلام سپیڅلي دین انسان ته دکایناتو اصلي او حقیقي تصور او د اخلاقي قانون تر شا نافذه قوت هم ورپه برخه کوي چې هغه دالله عزوجل ویره او د اخرت سوال او ځواب او د ابدي تلپاتې ژوند د خرابتیا احساس دی .

اګر که اسلام یوه داسې ځواکمنه عامه رایه هم جوړول غواړي کوم چې په ټولنیز ژوند کې اشخاص او ډلې داخلاقي اصولو په پابندۍ مجبوروي او یو داسې نظام هم په پښو دروي چې دهغه دتطبیق اصلي اعتماد په بیروني فشار نه بلکې دهغه په دنني فشار باندې ایښودل شوی چې هغه د الله جلت عظمته په وجود یقین او د اخرت دعقیدې له باور څخه عبارت دی .

داخلاقي احکامو د تطبيق نه مخکې داسلام سپيڅلی دين د يو شخص په زړه کې داخبره کښينول غواړي چې ستا معامله په بنيادي ډول له هغه ذات سره ده چې په هروخت او هرځای کې تاويني ته خو له خلکو څخه پټيدلی شي مګر له هغه عزوجل څخه نه شئ پټيدلی، د نړۍ ټولو خلکو ته خو دوکه ورکولی شئ خو هغه ته يې هيڅکله نه شئ ورکولی د نړۍ والو څخه خو تيښته کولی شې خو د هغه جلت عظمته په محکمه کې به ستا حاضريدل وي چې هلته بيا وکالت نه شي چليدلی او په هغې کې به ستا د راتلونکي تلپاتې ژوند د برخليک په هکله عادلانه پريکړه صورت نيسي.

د داسې عقيدې او باور په درلودلو سره ګواکې د هر سړي په زړه کې د پوليسو مرکز جوړيږي چې له دننه څخه تاد هغه د حکم عملي کولو ته اړګرزوي، برابره خبره ده چې بيرون په هغو احکامو د فشار په توګه دعمل لپاره کوم پوليس، محکمه او زندان موجود وي اوکه نه؟

داسلام داخلاقي نظام تر شا همدغه زور او ځواک پروت دی چې په تطبيق کې يې اغيزمن رول ترسره کوي. که چيرته، عامه رايه او دحکومت ځواک دهغې ترشا موجود وي بيا خو (نور علی نور) شو او که نه؟ همدغه ايمان مسلمان افراد او مسلمان قام په سمه لاز روانولی شي په دې شرط چې په زړونو کې يې واقعي ايمان ځای پرځای شوی واوسي.

د کايناتو او انسان په هکله داسلام دغه مفکوره هغه محرکات هم برابروي چې انسان د اخلاقو د قانون په مطابق دعمل لپاره اماده کوي په دې خبره دانسان راضي کيدل چې هغه الله پاک د خپل معبود په توګه ومني او د هغه عزوجل بندګي دخپل ژوند لاره وبولي د ادې خبرې لپاره بشپړ محرک دی چې کوم شخص د الهي احکامو اطاعت

کوي دهغه لپاره به په تلپاتې ژوند کې ښايسته راتلونکې يقيني وي . برابره خبره ده چې د دنيا په عارضي ژوند کې له څومره ستونزو ، زيانونو او کړاؤنو سره مخامخ شوی اوسي . ددې پرعکس څوک چې دلته دالله عزوجل څخه په سرغړونې لاس پورې کړي هغه ته به ابدي او تلپاتې سزا ورکړه شي . برابره خبره ده چې د دنيا په څولنډو تنګو ورځو کې يې په څومره مزو ، عيش او عشرت لاس پورې کړی.

دغه هيله او ويره چې د چا په زړه کې ځای ونيسي نو دهغه په زړه کې داسې يوه ځواکمنه محرکه قوه رامينځته کيږي چې په ټولو وختونو کې يې د نيکۍ په لوري هڅوي اګر که د نيکۍ نتيجه په نړۍ کې څومره زيانمنه په سترګو ښکاره شي او په هغو ځايونو کې به له بدۍ څخه لرې پاتې کيږي اګر که هلته بدي ډيره ښايسته او ګټوره په سترګو ځرګنده شي .

له دغه تفصيل نه داخبره په ډاګه کيږي چې اسلام خپل کائناتي تصور ، دخپل خير او شر معيار د علومو او اخلاقو سرچينه خپل نافذه ځواک او خپل محرکه قوت جلا ساتي او د هغو شيانو په وسيله مشهور اخلاقي مواد دخپلې اندازې په برابر ترتيبوي او د ژوند په ټولو څانګو کې يې جاري کوي پر دې بنسټ به داوينا صحيح وي چې اسلام خپل بشپړ او خپلواکه اخلاقي نظام لري .

## داسلام داخلاقي نظام ځانګړتياوې

ددغه نظام خانګړتياوې ډيرې دي په هغو کې درې ډيرې ځرګندې او وتلې ګڼلی شي.

### لومړی خصوصيت

لومړی خصوصيت يې دادی چې اسلام دالله عزوجل درضا او خوښۍ په هدف ګرځولو سره داسې يو لوړ معيار قايموي چې دهغې له امله داخلاقي ارتقا د امکاناتو کومه انتهاء نه وي دعلم ديوې ټاکلې سرچينې په تقرر سره اخلاقو ته هغه پايښت او استقلال په برخه کيږي چې په هغه کې دپرمختګ ځای وجود لري مګر د ارتجاع او د وکې ځای په کې نه وي دالله عزوجل دويرې په وسيله اخلاقو ته هغه نافذه ځواک بخښلی شي چې د بيروني فشار نه پرته عملي بڼه غوره کوي.

### دويم خصوصيت:

دويم خصوصيت يې دادی چې هغه يو ځو د ګوتو په شمير اخلاق نه وړاندې کوي چې په انساني معروفو اخلاقو کې ځينې کم او ځينې زيات کړي. اسلام هغه اخلاق خپلوي چې معروف دي او په هغو کې ځه د ګوتو په شمير نه بلکې ټول خپلوي بيا په ژوند کې په بشپړ توازن او تناسب سره د يوه يوه ځای ، مقام او مصرف ټاکي او د هغو تطبيق ته داسې پراختياور په برخه کوي چې انفرادي کړه وړه کورنی او ښاري ژوند ، ملکي سياست ، اقتصادي کاروبار ، بازار ، ښوونځی ، محکمې ، پوليسي او پوځي چوڼۍ ، دجګړې ډګر ، د سولې کانفرانسونه لنډه دا چې د ژوند هيڅ اړخ او ځانګه داسې نه ده چې داخلاقو له هراړخيزو اغيزو څخه ژغورل شوې اوسي هر ځای او د

ژوند په هره څانګه کې اخلاقو ته واکمني په برخه کوي . او دهغه کوښښ دادی چې د ژوند دمعاملاتو واګي د نفسي غوښتنو او ګټو پر ځای داخلاقو لاسونو ته ورکړي .

*دریم خصوصیت :*

دریم خصوصیت يې دادی چې هغه له بشریت څخه دداسې يوه نظام د ټينګولو غوښتنه کوي چې په نيکيو ولاړ او له منکراتو څخه پاک او سپيڅلی اوسي د اسلام داخلاقي نظام بلنه داده کومې ښې چارې چې بشري احساس د تل لپاره ښې ګڼلي دي راځئ چې هغه په پښو ودرؤو او کومې بدې چارې چې بشريت تل بدې ګڼلې دي له مونږ نه يې وباسو او له مينځه يې يوسو .دغې بلنې ته چې کومو خلکو لبيک ويلی هغوی سره يوځای کړو او له هغو څخه يو اُمت جوړ کړو چې دهغې نوم اسلامي امت ؤ د امت په توګه د هغه دجوړښت مقصد داؤ چې هغه به معروف (نيک کارونه ) د ځمکې پرمخ ټينګوي او د منکر (بدو کارونو) دله مينځه وړلو او تمبولو لپاره به په منظمو کوښښونو او هلو ځلو لاس پورې کوي .

اوس که چېرې ددې امت په لاسونو معروف ترفشار لاندې ونيول شي او د منکراتو او ناروا چارو دقايمولو کوښښ وشي نو دا دامت لپاره په دنيا او اخرت کې دغم او افسوس خبره ده .

## داسلام سياسي نظام(۱)

داسلام سياسي نظام په دري بنسټونو ابنبودل شوی توحيد ، رسالت او خلافت . ددې اصولو له فهم نه پرته داسلامي سياست تفصيلي پوهه ستونزمنه ده زه له ټولو د مخه ددغو درې واړو اصولو تشريح وړاندې کوم.

دتوحيد معنا داده چې الله جلت عظمته دنړۍ او دهغې د ټولو استوګنو خالق ، مالک او پالونکی دی حکومت او واکمني دهغه حق دی هغه دحکم ورکولو اود منعه کولو حق لري د بل چا له شرکت نه پرته د بندګۍ او اطاعت مستحق يوازې دهماغه سپيڅلی ذات دی . زموږ دغه نړۍ چې موږ په کې اوسيږو زموږ جسماني ځواکونه چې موږ ورڅخه کار اخلو زموږ هغه واک او اختيارات چې موږ ته دنړۍ پر موجوداتو په برخه دي او پخپله دغه موجودات چې پر کومو باندې موږخپل واک استعمالوو په هغو ټولو کې يو شی هم نه موږ پيدا کړی او نه مو حاصل کړی دی او نه دهغو په ور کړه کې له الله تعالی سره څوک شريک ؤ او نه شته.

له همدې کبله دخپل ژوند دهدف او د خپلو ځواکونو دمصرف او خپلو واکونو د حدودو ټاکل نه زموږ خپل کار دی اونه بل چاته په دې کې د مداخلې حق په برخه دی دا يوازې دهغه سپيڅلې ذات صلاحيت دی چې موږ يې له دغو ځواکونو او اختياراتو سره پيدا کړي يو

---

:داد مولتارحمة الله عليه هغه تاريخي وينا ده چې په۱۹۴۸م کال د جنوري دمياشتې په شلمه نيټه د لاهور له راډيـــو څـــخه خپره شوې

دنړۍ ډیر شیان یې زموږ په واک کې راکړي دي د توحید دغه اصول د بشر حاکمیت په بشپړه توګه نفی کوي . یو انسان وي او که یوه طبقه او ډله او یا پوره قام او یا په مجموعي توګه د ټولې نړۍ انسانان، دحاکمیت حق هیچاته په برخه نه دی حاکم یوازې الله عزوجل دی او د هغه جلت عظمته حکم د قانون سرچینه ده .

په کومې وسیلې سره چې دالله عزوجل قانون بشریت ته رسیدلی دهغې نوم رسالت دی په دغې وسیلې سره موږ ته دوه شیان په برخه شوي یو کتاب چې په هغه کې پخپله الله عزوجل خپل قانون بیان کړی دی دویم د کتاب مستند ه تشریح چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم د الله جلت عظمته دنماینده په حیث په وینا او عمل دواړو سره وړاندې کړی . دالله عزوجل په کتاب کې ټول هغه اصول او قوانین بیان شوي دي چې پر هغې باندې د انساني ژوند نظام ټینګښت مومي او پیغمبر صلوات الله وسلامه علیه ددې کتاب دغوښتنو سره سم په عملي توګه د ژوند یو نظام جوړ کړ او دهغه ضروري تفصیلات یې موږ ته خرګند او زموږ لپاره یې یوه نمونه قایمه کړه په اسلامي اصطلاح کې ددې دواړو مجموعي نوم شریعت دی او د هغه اساسي اصول او قوانین دي چې پـــر هغې باندې اسلامي ریـــاست ټینګښت مومـــي.

اوس خلافت درواخلئ په عربي ژبه کې دغه لفظ دنیابت لپاره ویلی شي داسلام دسپیڅلي دین په رڼا کې په نړۍ کې دانسان اصل حیثیت دادی چې هغه د زمکې پرمخ دالله عزوجل نایب او خلیفه دی یعنې دژوند په ډګر هغه ورکړ شوي اختیارات استعمالوي چې دالله جل شانه له خوا ور کړشوي دي د ده حیثیت دخپل سري او خپلواکه واکمن نه بلکې د بنده په توګه دی . تاسو چې کله یو چاته د خپل

جايداد انتظام سپارل غواړئ نو په لازمي توګه ستاسو په نظر کې
ثلور خبرې وي.
لومړی: داچې ددغه جايداد اصلي او واقعي څښتن تاسو یاست
دویم: داچې ستاسو په جایداد کې دغه سړی ستاسو دورکړی شویو
لاربښوونو سره سم کار کولی شي.
دریم: داچې هغه خپل واک دهغو حدودو په دننه کې په کار راوستلی
شي چې تاسو ورته ټاکلی دی.
څلورم: دا چې ستاسو په جايداد کې به ستاسې غوښتنې او خوښه په
نظر کې نیسي.
دغه څلور واړه شرطونه دنیابت او خلافت لازمي عناصر (توکي) دي.
دنایب د لفظ په ویلو سره پخپله دانسان په ذهن کې راګرځي که چېرې
کوم نایب دغه څلور شرطونه بشپړ نه کړي نو تاسوو واياست چې هغه
دنیابت له حدودو څخه تیری کړی او د هغه تړون په ماتولو یې لاس
پورې کړی چې د نیابت په عین مفهوم کې شامل ؤ همدغه برابر
مفهوم دی چې په هغه کې اسلام انسان دالله جلت عظمته خلیفه بللی
او د دغه خلافت په تصور کې دغه څلور واړه شرطونه شامل دي
د اسلام دسیاسي نظام په رڼا کې چې کوم ریاست او دولت په پښو
درېږي هغه په اصل کې دالله دحاکمیت په سیوري کې انساني خلافت
دی او هغه داچې دالله عزوجل د بادشاهۍ په سیوري کې انسان د هغه
جلت عظمته د لاربښوونو په مطابق دهغه د ټاکلو حدودو په چوکاټ کې
کار وکړي او د هغه عزوجل غوښتنې دې پوره کاندې.
دخلافت د لفظ د تشریح په لړ کې په دومره خبره ځان پوهول په کار
دي چې داسلام په رڼا کې خلافت د کوم فرد کورنۍ او یا دکومې ډلې
حق نه، بلکې د ټولې ټولنې د افرادو حق دی چې د توحید او رسالت

په بنسټیزو اصولو ایمان ولري او د خلافت شرایط یې بشپړ کړي
اوسي . دغسې ټولنه په مجموعي توګه دخلافت وړ دی داسلامي
ټولنې هر فرد د خلافت مستحق دی او هیڅوک د احق نه لري چې له
دغو حقوقو اوا ختیاراتو څخه یې محروم وګرځوي

دحکومت دچلولو لپاره چې کوم نظم او نسق جوړ یږي هغه د
خلکو په خوښه جوړښت مومي او د دوی رایه او مشوره په کې
ارزښتناکه رول لري . څوک چې د ،ولس اعتماد حاصل کړي د هغوی
له خوا به دخلافت مسئولیت سرته رسوي خو ددې پرعکس څوک چې
د ، ولس اعتماد او رایه تر لاسه نه کړي دحکومت له منصبه دې ګوښه
کړی شي . په دې لحاظ اسلامي حکومت یو بشپړحکومت دی چې له
اسلامه پرته نور نظامونه ورسره هیڅکله سیالي نه شي کولی . البته
کوم شی چې اسلامي جمهوریت دغربي جمهوریت څخه جلا کوي هغه
دادی چې د لویدیځ سیاسي نظریه په جمهوري حاکمیت ولاړ ه ده او د
اسلام جمهوري نظام دجمهورو (خلکو) په خلافت استوار شوی . هلته
دقانون جوړولو واک خلکو ته حاصل دی خو دلته ازاده قانون جوړونه
څوک نه شي تر سره کولی بلکې د قانون سرچینه اسماني شریعت دی
چې الله عزوجل دخپل پیغمبر په وسیله انسانانو ته رالیږلي دی .

هلته حکومت دخلکو خوښه او غوښتنه پوره کوي خو دلته
حکومت او خلک دالله عزوجل غوښتنه ترسره کوي .

لنډه داچې د لویدیځ جمهوریت یو بې واکو خدایې ده چې خپل
واک په ازاده توګه استعمالوي ددې پرعکس اسلامي جمهوریت دالله
عزوجل د بندګۍ یو پابند نظام دی چې خپل واک دالله عزوجل د
لارښوونو سره سم دهغه جلت عظمته د ټاکلو حدودو په دننه کې په کار
راولي .

زه اوس ستاسو په وړاندې داسلامي حکومت لنډه نقشه وړاندې کوم چې د توحـــيد ، رسالت او خلافت پر بنسټونو ايښودل شوي ده.

داسلامي حکومت مقصد په قران عظيم الشان کې په ځرګنده توګه بيان شوی چې هغه به ټولو ښيګڼو او نيکو چارو ته وده ورکوي چې دهغې په وسيله الله عزوجل انساني ژوندون ښايسته کول غواړي او ټول هغه فسادونه اوبې لارتياوې به له بيخ او بنسټ څخه وباسي چې د ژوند په ډګر الله عزوجل ته ناخوښې دي.

داسلامي حکومت هدف يوازې دمملکت د نظم او نسق ساتل نه دي او نه د کوم ځانګړي قام ټولنيزې غوښتنې پوره کول دي ددې پرځای اسلام يو ډير لوړ هدف لري چې د هغه د لاسته راوړلو لپاره خپل ټول وسايل او ځواکونه په کار اچوي او هغه داچې الله عزوجل په خپله ځمکه کې دخپلو بندګانو په ژوند کې چې کومه سپيلځلتيا ، ښکلا، خير او اصلاح ، پر مختګ او نيکمرغي ليدل غواړي هغه ټولې دې رامينځته شي اود فساد او وراني د ټولو اشکالو مخه دې ډب کړی شي چې دالله جلت عظمته په نزد په ځمکه کې د وراني او د هغه عزوجل د بندګانو د ژوند د خرابتيا لامل ګرزي.

ددغه هدف په مخکې ايښودلو سره اسلام زموږ پر وړاندې دخير او شر دواړو يو ځرګند تصوير په مخ کې ايښی دی چې په هغه کې مطلوبه ښيګڼې او ناروا لارې چارې په واضح ډول په ګوته شوي د دغه تصوير په خپل مخ کې ايښودلو سره په هر وخت او هر چاپيريال کې اسلامي حکومت خپل اصلاحي پروګرام جوړولی شي.

داسلام خپلواکه غوښتنه داده چې د ژوند په هره يوه ځانګه کې دې د اخلاقي اصولو پابندي وکړی شي له همدې کبله هغه د خپل حکومت لپاره دغه غوڅه پالبسی ټاکي. چې د هغه په سياست کې به

بې الایشه انصاف، سپېڅلتیا د دیانت او ایمان داري وي. هغه د هیواد د انتظامي او ولسي ګټو په خاطر هیڅکله دروغ، دوکه او بې انصافي په هیڅ صورت کې روانه بولي د هیواد په دننه کې د حکومت او ولس تر منځ خپل مینځې اړیکې وي او که له بهرنیو هیوادونو او ملتونو سره په دواړو صورتونو کې رېښتینولي، دیانت، عدالت او انصاف په اغراضو او مصالحو مقدم ګڼل کیدی شي.

د اسلام سپېڅلي دین د مسلمانو افرادو په څیر په اسلامي حکومت هم دا پابندي لګوي. چې په خپلو ژمنو او تعهداتو وفا وکړي د اخیستلو او ورکولو پیمانه یو شان کړي. چې کومه وینا کوي هغه په عمل کې پلي کړي چې کوم شی کوي د هغې وینا هم کوي له خپل حق سره خپل مسئولیت هم یاد ساتي د بل چا د مسئولیتونو تر څنګ یې حقونه هم نه هیروي حکومتي ځواک د ظلم پر ځای د عدل او انصاف د ټینګښت وسیله ګرځوي. حق په هر حال حق پیژني او په سرته رسولو کې یې بیړه کوي. اقتدار او حکومتي ځواک الهي امانت ګڼي او له همدي یقین سره یې په کار راولي چې ددې بشپړ حساب به د الله (ج) پر وړاندي ورکوي.

اسلامي ریاست اګر که د ځمکي پر یوې ځانګړي برخې کې هم قایمیدلی شي خو هغه نه انساني او بشاري حقوق په یوي ځانګړي جغرافیایې سیمه کې محدود بولي تر کومه ځایه چې د انسانیت تعلق دی اسلام هر انسان ته څو بنسټیز حقوق ټاکلي دي او په هر حال کې د هغې د درناوي حکم صادروي برابره خبره ده چې د اسلامي دولت په حدودو کې دننه او یا بهرون ژوندتر سره کړي دوست وي او که دښمن د سولي په حالت کې اوسي او که د جنګ، انساني وینه په هر حالت کې د درناوي او احترام وړ ګڼلی شي او له حق نه پر ته نه بهول کیږي، ښځینه بوډا، رنځور او زخمي ته په هیڅ صورت لاس اوږدول روانه دي د ښځي عصمت او ابرو په هر حال د قدر وړ ده او هغه نه شي بې پته کیدی وږي د ډوډۍ، بربنډ د لباس او رنځور د علاج مستحق دی برابره خبره ده چې د دښمن له قام

سره يې اړيکه اوسي او که له خپل قام سره داسي نور حقوق هم اسلام انسان ته د بشر په حيث ورکړي دي او د اسلامي دولت په اساسي قانون کې هغو ته د بنسټيزو حقونو مقام په برخه دی.

پاتې شوه د ښاري توب حقونه اسلام يې يوازي هغه چاته نه ورکوي چې ددې دولت په حدودو کې يې نړۍ ته سترګې پرانستي وي. بلکي هر مسلمان ته يې ورکوي چې د نړۍ په کومه ګوښه کې يې نړۍ ته سترګي غړولي وي. هغه د نورو ښاريانو په شان د برابرو حقونو وړ بولي.

په نړۍ کې چې څومره اسلامي دولتونه دي د هغوی تر مينځ د ښاري توب حقوق مشترک دي. هر مسلمان برابره خبره ده چې د نړۍ په کومه ګوښه اسلامي هيواد کې يې نړۍ ته سترګې پرانستي وي. بل اسلامي هيواد ته په ننوتلو سره پاسپورت ته اړتيا نه پيداکوي مسلمان له کوم نسلي، قامي او يا طبقاتي امتياز نه پرته په هر يو اسلامي هيواد کې د لوی نه لوی منصب د مسئوليتونو اهل کيدی شي.

البته د يو غير اسلامي حکومت مسلمان رعيت په هغه صورت کې د اسلامي دولت رعيت ګڼلی شي چې اسلامي دولت ته هجرت وکړي او دلته تل تر تله استوګن شي.

د نامسلمانو اقليتونو (لږه کيو) لپاره چې د کوم يوه اسلامي هيواد په حدودو کې ژوند ترسره کوي. اسلام څو ټاکلي حقوق ټاکلي دي او هغه په لازمي توګه د اسلام د اساسي قانون برخه ده. په اسلامي اصطلاح کې دغسي نامسلمانو وګړو ته ذمي ويل کيږي مطلب دا چې د هغو د ساتني مسئوليت اسلامي دولت په خپله غاړه اخيستی د ذميانو ځان، مال او ابرو په بشپړه توګه د مسلمان د ځان، مال او ابرو په شان د قدر او عزت وړ

ده په عقوباتو او تعزيراتو کې د مسلمان او ذمي تر مينځ بيلتون نه وي د ذميانو د شخصي ژوند په قوانينو کې اسلامي دولت کومه مداخله نه کوي ذميانو ته د عقيدې، ديني رسوماتو او عباداتو بشپړه ازادي په برخه ده. ذمي د خپل مذهب تبليغ نه شي کولی بلکې د قانون په حدودو کې به ژوند سرته رسوي اسلام ته د انتقاد ګوته هم نه شي نيولی داسي نور ډير حقوق اسلامي قانون نامسلمانو اوسيدونکو ته ورکړي دي دا مستقل حقوق تر هغه پوري له دوی څخه نه شي سلبولی ترڅو پوري چې دوی زموږ له تړون او ذمې څخه وتلي نه وي

نامسلمان حکومت که هر څومره په خپلو مسلمانو اوسيدونکو په ظلم او تيری لاس پورې کړي د يو اسلامي دولت په حيث يې په ځواب کې جواز نه لري چې موږ د خپل هيواد نامسلمان استوګن ته لاس ور اوږد کړو تر دې پورې که چيرې زموږ له پولې بيرون ټول مسلمانان ووژل شي زموږ د پولې دننه د يو ذمي وينه تويول په ناحقه روانه دی.

د اسلامي دولت د نظم او نسق مسئوليت يو امير ته سپارل کيږي چې د جمهور رئيس په څير پيژندل کيږي د امير په ټاکنه کې ټول بالغ عاقل نارينه او ښځينه د رايې د ورکولو حق لري کوم چې د اسلامي قانون منلو ته تيار وي.

د جمهور رئيس د انتخاب بنسټ به دا وي چې د اسلام له روح نه د پوهي او د اسلامي سيرت او اخلاقو څښتن، الله (ج) نه ويريدونکی د تدبير خاوند او د زياتو اکثريت خلکو د اعتماد وړ وي داسي شخص د ولسي مشرباته لپاره انتخابولی شي او بيا د هغه د مرستې په خاطر د شوری مجلس هم جوړولی شي چې هغوی به هم خلکو انتخاب کړی وي.

ولس مشر ته لازمه ده چې د هيواد د انتظام چلول د شوری د غړو په مشورې سره سرته ورسوي يو امير تر هغه پورې د هيواد حکمران پاتې کيدلی شي چې ترڅو پورې ورته د خلکو اعتماد په برخه وي د عدم اعتماد په صورت کې ورته په کار دي چې له خپل منصب څخه لاس په سر شي خو

ترڅو پورې چې د خلکو اعتماد او باور ور په برخه وي د حکومت ټول اختيارات او واک ورته حاصل دی.

عامو ښاريانو ته په جمهور رئيس اودهغه په حکومتي چارواکو دانتقاد حق حاصل وي ،په اسلامي رياست کې به قانون جوړونه د شرعي حدودو په چوکاټ کې وي د الله (ج) او رسول الله صلی الله عليه وسلم څرګند احکام به د مطلق اطاعت وړ وي.

د شورئ هيڅ يو مجلس او قانون جوړونکې غونډه په کې تبديل او ترميم نه شي راوستلی په هغو احکامو کې چې د دوو او يا زياتو تعبيرونو احتمال ولري په هغي کې د شريعت د مقصد معلومول د هغو خلکو حق دی چې شرعي پوهه ولري. داسې مسايل به ولسی جرګي د علماؤ او اسلامي پوهانو کميټې ته سپاري.

له دې نه وروسته بيا د هغو چارو پراخ ډګر دی چې په هغه کې شريعت کوم حکم نه وي ورکړی په داسې چارو کې د شورئ مجلس د قوانينو په جوړولو کې ازادي لري.

د اسلام په سپيڅلي نظام کې عدليه او ستره محکمه د حکومت تر لاس لاندې نه بلکې نيغ په نيغه د الله (ج) نماينده او هغه (ج) ته ځواب ورکونکې ده سره له دې چې د قاضي القضات تقرر د اجرائي ځواک (جمهور رئيس) له خوا تاکل کيږي.

خو تر تقرر وروسته يې د قضا پر چوکۍ د کښيناستلو نه وروسته به د الهی قانون په مطابق د خلکو تر مينځ له عدل او انصاف څخه کار اخلي د هغه له انصاف او عدل څخه پخپله جمهور رئيس او وزيران هم نه شي خلاصيدلی د محکمې پر وړاندې به په دې توګه حاضرولی شي څنګه چې عام ښاريان محکمې ته حاضريږي.

# د اسلام ټولنيز نظام(۱)

د اسلام د ټولنيز نظام بنسټيزه ډېره دغه مفکوره ده چې د نړۍ ټول انسانان له يوه نسله ځخه زېږېدلي الله عزوجل تر ټولو د مخه يوه انساني جوړه (حضرت آدم عليه السلام او بی بی حوا( رض) پيدا کړه او بيا يې له دواړو ځخه بشري توکم خپور کړ.په پيل کې تر يو وخته د دواړو اولادونه يو امت او په يوه دين او د يوی ژبې څښتنان ؤخو ځومره چې د دوی شمير زياتيده پر ځمکه کې خپريدل ددې خپريدلو طبيعي نتيجه همدا وه چې په بيلا بيلو نسلونو، قامونو او قبيلو وويشل شي د هغوی ژبې لباس او د ژوند لاري چاري سره جلا شوې.ځای اوبو او هوا د دوی رنګونو او قامت ته هم بدلون وبخښه دغه ټول اختلافات فطري اختلافات ؤ چې د واقعيت په نړی کې اوس هم وجود لري له همدی کبله يې اسلام د يو واقعيت په توګه منی.

د اسلام سپيځلی دين د دغه واقعيت رنګول نه غواړي بلکی له دي ځخه ګټه پورته کوي او هغه دا چې د انسان خپل مينځی تعارف او پيژندګلوی په همدي صورت کيدی شي ليکن د اختلافاتو پر اساس په انسانانو کې چې وروسته د توکم، رنګونو، ژبي، قام او وطن کوم تعصبات را مينځته شوي هغه ټول اسلام ناسم وګڼل د انسانانو تر منځ تيټ او لوړ، شريف او خسيس د خپل او پردي چې ځومره بيلتونونه پيدا شوي د اسلام په رڼا کې دا ټول د جاهليت سوغات دی

---

(۱)دغه وينا په۱۹۴۸ م کال د فروری د مياشتی په لسمه نيټه د لاهور له راډيو ځخه خپره شوې ده

اسلام یې بشریت ته په ډاګه اعلانوي چې تاسي ټول د یو مور او پلار اولاد یاست لـه همدې کبله تاسو ټول یـو د بـل وروڼه او پـه انسـاني حیثیت کې سره برابر یاست.

د دغـه لوړ نړۍ وال انسـاني تصور لـه غوره کولو نه وروسته اسلام وایي چې د انسـانانو تـر مینځ امتیازي بیلتون که چیري کیدی شي هغـه نسـل، رنـګ، وطـن او ژبـه نـه دی بلکـي افکـار، اخـلاق او اصـول دي،د یـوې مـور دوه ځـامن د خـپل نسب په لحاظ دواړه سره یو دي خو د اخلاقـو او افکـارو په لحاظ سره بیلتون لري د دواړود ژوند لارې سره جـلا دي. د دي پـر عکـس د ختـیځ او لـویدیځ د لـري واټـن اسـتوګن مسـلمان پـه څرګند ډول کـه څومره یـو تـر بلـه سره لـرې اوسي لـیکن د ژوند لاره یې سره یوه ده.

د دغـی نظریـي پر بنسټ اسلام د نړۍ د ټولو نژادي، وطني او قامي ټولـنو پـر خـلاف یـوه فکـري، اخلاقـي او اصـولي ټولـنه جوړه کړه چې په هغـي کـې انسـاني اړیکـې د هغـه د پیدا ایښـت پـر بنسـټ نـه وي بلکـې عقـیده او اخلاقي ضوابط وي هر هغه څوک چې الله (ج) خپل څښتن او معـبود بولـي او د پیغمبرانو لارښوونې د ژوند د قانون په توګه ومني په دغـه ټولـنه کـې شـاملیدلی شـي برابـره خبره ده چې د افـریقا او امریکا اسـتوګن وي او یـا شـامي او یـا اریایې نژادی اوسي یا سور او یا توروي کـه هغـه پـه هـندي ژبـه خبري وکړي او که په عربي چې کوم انسـان هم په دغـه ټولـنه کـې شـمولیت پیدا کـړي د هغـو ټولو حقوق او ټولنیزه مرتـبه سـره مسـاوي ده. هیـڅ رنګـه نـژادي، قامـي او یـا طبقاتـي امتـیازات د هغـوی تـر مینـځ نـه شي رامینځته کیدی چې یو دې لوړ او بل دې ټیټ وي. پـه دي تـوګه چې په لاس لګولو سره پرې سړي پلیت وګڼل شي او په

نکاح، خوراک، څښاک او په ناسته پاسته کې د هغوی تر مینځ خنډونه اوسي. هیڅوک هم د پیدا ښت او یا کسب او کار په لحاظ ذلیل او ټیټ نه دي. هیڅا ته هم د خپل نسب په اعتبار ځانګړي حقوق په برخه نه دي. د یو شخص لوړتیا د هغه د کورنۍ او شتمنۍ له امله نه وي بلکې یوازې له دې کبله وي چې د زیاتو ښو اخلاقو خاوند او په تقوی کې له نورو خلکوڅخه زیات دی.

دغه داسې ټولنه ده چې د نسل، رنګ، ژبې او سیمې پولې یې ړنګې کړي او د ځمکې ټولو برخو ته شامله ده او پر بنسټ یې د بشریت یوه نړۍ واله ورور ګلوي پر پښو ودریدلی شي.
په نژادي توکمیزو او سیمه ئیزو ټولنو کې یوازې هغه خلک ګډون کولی شي چې په کوم نسل او یا وطن کې پیدا شوي اوسي له دې نه د بیرون خلکو لپاره د داسې ټولنې دروازې بندې دي. البته په فکري او اصولي ټولنه کې هر هغه شخص له برابرو حقوقو سره شاملیدلی شي چې یوه عقیده او اخلاقي ضابطه یې منلې وي.

پاتې شوه هغه خلک چې دغه عقیده او ظابطه نه مني نو دغه ټولنه یې په خپل چاپیریال کې نه شي حسابولی مګر د انساني ورور ګلوۍ اړیکې ورسره ټینګولی شي او بشري حقوق ورته په برخه دي څرګنده دې وي چې د یوې مور ځامن که چیرې په افکارو کې سره بیلتون ولري او د ژوند لارې یې سره جلا وي دا ددې معنانه لري چې دوی په خپل مینځ کې سره وروڼه نه وي.

په دې توګه د بشري توکم دوه ډلې چې په یو هیواد کې ژوند ترسره کوي خو په خپلو مینځونو کې اعتقادي او اصولي اختلاف سره ولري د هغوی ټولنیز ژوند جلا کیدلی شي خو په انسانیت کې سره مشترک دي. ددغه ګډ انسانیت پر بنسټ زیات نه زیات چې د کومو

حقوقو تصور کیدی شي هغه ټول اسلامي ټولنې د نامسلمانو ټولنو لپاره منلي دي.د اسلام د ټولنیز نظام د بنسټونو له پیژندلو وروسته اوس موږ هغه اصول او تګلاري ګورو چې اسلام د انسانانو د پیوستون لپاره ټاکلې دي.د انساني ژوند لومړۍ او بنسټیزه اداره کورنۍ ده د کورنۍ بنسټ د نارینه او ښځینه د یو ځای کیدو څخه را مینځته کیږي له دغه پیوستون څخه نوی نسل جوړیږي بیا له دغې ریښې نه کورنۍ، وروروليِ او داسې نوې اړیکې وده مومي په پای کې دغه شان خپریږي او پراخې ټولنې پورې رسیږي .

جوته ده چې کورنۍ هغه اداره ده چې د خپلو راتلونکو نسلونو لپاره د بشري تمدن د پراخه خدمتونو د سنبالښت په خاطر په ډیر محبت، ایثار، زړه سوي او خیر غوښتنې سره یو نسل روزي دغه اداره د بشري تمدن د پاینښت او ودې لپاره ظاهري فریب ورکونکي افراد نه تیاروي.بلکې د هغې کار کوونکي د زړه له تل نه ددې خبرې هیله من وي چې د هغوی پر ځای دې داسې خلک ځای ونیسي چې له هغوی څخه غوره او بهتر وي. پردې اساس دا یو حقیقت دی چې کورنۍ د بشري تمدن ریښه او اساس تشکیلوي.

ددغې ریښې په صحت او ځواک د ټول تمدن دارو مدار دی له همدې کبله د اسلام سپیڅلي شریعت په ټولنیزو مسایلو کې تر ټولو د مخه دې لور ته پاملرنه کړې ده چې د کورنۍ نظام اداره دې په صحیحو بنسټونو ټینګه کړی شي.

د اسلام په رڼا کې د نارینه او ښځینه د اړیکو صحیح شکل یوازې دادی چې له هغې سره دې ټولنیز مسؤلیتونه قبول کړی شي او د هغې په نتیجه کې دې د کورنۍ د بنسټ ډبره کیښودله شي. ازادې او غیر مسئولانه اړیکې یوازې تفریح او معمولي بې لارتیا مه بولئ

بلكې د بشري تمدن د ريښو د پريكولو عمل يې وګڼئ له همدې امله اسلامي شريعت د زنا ناوړه اړيكه ناروا او قانوني جرم ګرځولی دی او د هغې لپاره يې سخته سزا ټاكلې ده ترڅو په ټولنه كې داسې تمدن وژونكې اړيكې رواج ونه مومي او ټولنه له هغو اسبابو څخه پاكه او سپېڅلې وساتلی شي چې داسې غير مسئولانه اړيكې په خوځښت راولي او يا ورته لاره چاره برابروي.

د پردې احكام په ازاده توګه د پرديو نارينه او ښځينه ؤ تر مينځ د اختلاط بنديز، په موسيقي او عكسونو بنديزونه او د فواحشو د خپريدلو ضد خنډونه ټول د همدغه ناوړه كار د ور كاوي په خاطر دي.
او مركزي مقصد يې د كورني نظام ساتنه او مضبوطول دي له بلې خوا مسئولانه اړيكې يعني نكاح په اسلام كې نه يوازې دا چې روا عمل دی بلكې يو نيك د ثواب كار او يو عبادت بللی شي.د بلوغ له وخته وروسته يې د پردې نارينه او ښځينه يوازې پاتې كيدل ناوړه قانوني عمل بللی او هر ځلمی يې په دې خبره پوه كړی چې د تمدني مسئوليتونو بارچې دده مور او پلار راپورته كړی ؤا وس به يې پخپله پورته كوي

اسلام رهبانيت نيكي نه ګڼي بلكې د الهي فطرت پر خلاف يې يو نوی بدعت بولي هغه ټول رسمونه او رواجونه سخت غندي چې د هغې له امله نكاح كول يو سخت او ستونزمن كار وګڼل شي.

دا ددې خبري دليل دی چې په ټولنه كې دې نكاح اسانه او زنا دې سخت كار وګڼل شي نه دا چې نكاح سخته او زنا كولو ته اسانتياوې برابرې شي له همدې كبله د يو څو ځانګړو خپلوانو څخه پرته له ټولو لرې او نږدې خپلوانو سره يې ازادوا جي تعلقات روا ګرځولي دي. له ټولو نسلي امتيازاتو نه پرته يې د مسلمانانو تر منځ د واده كولو

پراخه اجازت وکړ. مهر او د واده د دومره لږ سامان فرمان یې ورکړ چې د واده اړخونه یې په اسانه سره تحمل کړی شي.

د نکاح د نظام د ټینګښت په خاطر یې نه قاضي او نه د د فتر او نکاح نامې کوم ضرورت پرېښود په اسلامي ټولنه کې نکاح یو داسې ساده طریقه ده چې هر یو بالغ عاقل نارینه او ښځینه کولی شي د دؤو ګواهانو په وړاندې د ایجاب او قبول مراسم ترسره کړي. خو لازمه ده چې دغه ایجاب او قبول په پټه توګه نه بلکې په کلي او قریه کې د اعلان په توګه وي.په کورنۍ کې د اسلام سپیڅلي نظام نارینه ته د ناظم حیثیت ورکړی ترڅو هغه په کور کې نظم او ضبط ټینګ کړي میرمن ته یې د میړه او اولادته یې د مور او پلار دواړو د اطاعت او خدمت حکم کړی دی.

د اسلام مقدس دین داسې بې نظمه کورنۍ نظام هیڅکله نه خوښوي چې په هغه کې نه انضباط وي او نه د کورنۍ دغړو د اخلاقو او معاملاتو د سمون په خاطر څوک مسئول. په هر حال نظم د یوه ذمه واراو مسئول په وسیله ټینګښت مومي.

د اسلام په نزد ددغه مسؤلیت لپاره پلار په طبیعي ډول موزون او برابرشخصیت دی مګر ددې معنا دا نده چې نارینه دې یو جابر ظالم مستبد او خپلسری واکمن جوړ شي او میرمن دې د وینځې په توګه هغه ته وسپارله شي. د اسلام په وړاندې د ازدواجي ژوند اصل روح محبت، ترحم او عاطفه ده د میرمن مسئولیت که د خاوند اطاعت دی نو میړه هم مسئولیت لري چې خپل واک د اصلاح لپاره په کار روالي نه دا چې په ظلم او زور زیاتي لاس پورې کړي د اسلام سپیڅلي دین ازدواجي تړون تر هغه پورې د پاینښت وړ بولي چې په هغه کې د مینې او محبت خوږوالی او یا لږ تر لږه د ملګرتیا امکان موجود وي. کله هم

چې دغـه امکان پاتې نه شي هلته بيا هغه ميره ته د طلاقولو او ميرمن ته د خلعې حق ورکوي او په ځينو صورتونو کې اسلامي محکمې ته دغـه واک سپارل شوی دی چې هغه دغسې نکاح ماتـه کړي چې د رحمت، شفقت مينې او محبت پر ځای زحمت جوړه شوې وي. د کورنۍ چاپيريال له پولې نه بيرون نژدې ريښه د خپلولۍ ده. چې د هغې دايره ډيره پراخه ده کوم وګړي چې د مورولۍ، پلار ولۍ او ورور ولۍ د اړيکو او يا د سخر ګنۍ له امله يو د بل خپلوان وي. اسلام دغه ټول يو د بل خواخوږي مرستندوی او غم شريک ليدل غواړي.
په قران کريم کې ځای پرځای له خپلوانوسره دنيک چلند حکم شوی په نبوي مبارکو حديثونو کې ځای پرځای دصله رحمۍ بيابيا تاکيد شوی او هغه بې ډيره لويه نيکي ګڼلې ده داسلام دسپڅلې دين په نزد هغه شخص ډيرناوړه ګڼل شوی چې له خپلو خپلوانو سره سوړ او د سپين سترګۍ چلند کوي خو ددې خبرې مطلب دا نه دی چې د خپلو خپلوانو بې ځايه ملاتړ کوم اسلامي کار دی. د خپلې کورنۍ او قبيلې داسې ننګه چې د حق پر خلاف وي د اسلام پر وړاندې جاهلي کړنلاره ده. په دې توګه کـه چيرې د حکـومت کـوم منصـبدار د حکـومت پـه لګښت د خپلوانو پالنه وکړي او يا په خپلو پريکړو کې په ناروا توګه د خپلو خپلوانو تر خنګ ودريږي دغـه هم کوم اسلامي کار نه بلکې يو شيطاني خوځښت دی اسلام د هغې صله رحمۍ حکم صادروي چې د حق او انصاف او عدل په چاپيريال کې اوسي. د خپلوانو نه وروسته دويم نژدې تعلق د ګاونډيانو سره وي. د قرآن عظيم الشان دلارښوونو په رڼا کې خپلوان په درې ډوله دي. يو ګاونډې خپلوان دويم اجنبی ګاونډی دريم عارضي ګاونډی لکه د لارې ملګری دا ټول د اسلامي احکامو له مخې د ملګرتيا، زړه خوږې او نيک چلند مستحق دي.

حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: چې ماته د ګاونډي د حقونو دومره تاکید شوی چې فکر مې کاوچې ښایي په میراث کې به برخه یوسي.

په یو بل حدیث شریف کې راغلي دي: هغه وفرمایل هغه سړی مؤمن نه دی چې د هغه له شر څخه ګاونډی په امن نه وي په یو بل حدیث کې د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک ارشاد دی: هغه سړی ایمان نه لري چې خپله خیټه ډکه کړي او په څنګ کې ګاونډي یې وږی تږی اوسي.

یو ځل حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړی شو چې یوه ښځه ډیر لمونځونه کوي او زیاتې روژې نیسي او خیراتونه هم کوي خو ددې له ژبې نه ګاونډیان په امن نه دي. حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه دوزخي ده خلکو عرض وکړ چې یوه بله ښځه هم شته چې په هغې کې دغه ښیګڼې نشته. لیکن هغه خپلو ګاونډیانو ته تکلیف نه رسوي. حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه جنتي ده.

حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم خلکو ته دومره تاکید کړی ؤ که چیرې تاسې خپلو اولادونو ته میوه رواړئ نو یایې د ګاونډي کور ته هم ولیږۍ او که نه د هغې پوټکي بیرون مه غورزوئ ترڅو ستاسې د ګاونډي زړه خفه نه شي یو ځل هغه صلی الله علیه وسلم وفرمایل که چیرې ستاسې ګاونډی ستاسو په باره کې ښه نظر ولري نو واقعاً تاسو ښه خلک یاست او که ستاسو په هکله یې رایه او نظر ښه نه وي نو تاسو بد خلک یاست.

لنډه دا چې د اسلام سپیڅلي دین هغه خلک چې د یو بل ګاونډیان وي په خپلو مینځونو کې خوا خوږي ملاتړي او په غم او خوشحالۍ

کې شریک لیدل غواړي د هغوی ترمینځ داسې اړیکې ټینګوي چې هغوی ټول یو پر بل باور وکړي.او د یو بل په اړخ کې خپل ځان، مال او ابرو محفوظه ووینې هغه ټولنیز ژوند چې په هغه کې ګاونډیان له یو بل سره نابلد اوسیاو یادا چې د یو کلي استوګن له یو بل سره نه د زړه تړاؤ او خواخوږي ولري داسې ژوند ته هیڅکله اسلامي ژوند نه شو ویلی ددغسې نژدې اړیکو نه وروسته د اړیکو پراخه دایره مخې ته راځي.په دغه دایره کې چې اسلام زموږ د ټولنیز ژوند لپاره کوم لوی اصول ټینګ کړي دیپه قران اونبوي سنتو کې یې لنډیز په لاندې توګه دی

۱. وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ (المائدة۲)

یعنې:د نیکۍ او تقوي په چارو کې یو تر بله مرسته وکړئ او د ګناه او زیاتي په کارونو کې یو تر بله مرستندویان مه اوسئ.

۲- ستاسو دوستي او دښمني د الله (ج) په خاطر په کار ده چې کومه ورکړه کوئ ددې په خاطر یې کوئ چې الله (ج) یې غوره ګڼي او چې کوم شی نه ورکوئ ددې په خاطر مه ورکوئ چې الله (ج) یې ورکړه نه خوښوي. (نبوي حدیث)

۳ كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ (آل عمران ۱۱۰)یعنې تاسو هغه غوره امت یاست چې د نړۍ والو د ښیګڼې او خیر په خاطر را پورته شوي یاست ستاسو کار په نیکۍ امر او د بدو چارو مخنیوی دی.

۴: په خپلو مینځونو کې بد ګوماني مه کوئ د یو بل په چارو کې تجسس مه کوئ د یو بل پر خلاف خلک مه پاروئ او په خپلو مینځونو کې بغض، حسد او کینه مه کوئ یو او بل ته شامه ګرځوئ د الله بندګان او په خپلو مینځونو کې سره وروڼه شئ (نبوي حدیث)

۵- کوم شخص چې د ظالم په توګه پيژنئ له هغه سره ملګرتيا مه کوئ.                    نبوي حديث

۶- په ناحقه د خپل قام ننګه کول داسې دي لکه چې ستاسو اوښ په کوهي کې لويدلی وي او تاسو يې لکۍ نيولې وي.

نبوي حديث

۷- د نورو مسلمانانو لپاره هغه شی غوره کړئ کوم چې د خپل ځان لپاره يې غوره بولې.                    نبوي حديث

## داسلام روحاني نظام(۱)

داسلام روحاني نظام څه شی او دژوند له بشپړنظام سره څه اړیکه لري ؟ددغې پوښتني لپاره ضروري ده چي ترټولو مخته موږ پرهغه امتیاز باندې ځان پوه کړو چي داسلامي فکر او نورو مذهبي او فلسفي نظامونو په افکاروکې موندلی شي .

په بشري فکر کي ددغي امتیازي کړښې د نشتوالي له امله زیاتره وخت داسې پیښیږي چې داسلام دروحاني نظام دبحث په مهال په ذهن کې له ارادې پرته داخبره تیریږي چې داڅنګه روحاني نظام دی چې روح او ماده یې دواړه سره یوځای کړي دي . یواځې یوځای والی نه بلکې په عملي توګه پر هغې باندې واکمني کوي .

دفلسفي او مذهب په نړۍ کې په عام ډول دغه فکر کیږي چې روح او جسم دواړه دیوبل ضدعناصراو ددواړونړۍسره جلا او غوښتنې یې هم سره جلا او ددواړویوځای پرمختګ له سره ممکن نه بریښي .

دروح لپاره جسم او مادي نړۍ دزندان حیثیت لري دنیوي ژوند پوري اړوندې پیښې هغه زولنې دي چې روح په کې تړله شوې دنیوي کاروبار او معاملات هغه قفس ته ورته دي چې دروح پرواز تمبوي ددغه تصور لازمي نتیجه داشوه چې دروحانیت اومادیت لارې سره جلاشوې کومو خلکو چې مادي اړخ غوره کړ په لومړي ګام له مايو سۍ سره مخ شول .

---

(۱)دغه وینا په۱۹۴۸م کال د فروري د میاشتې په لسمه نیټه د لاهور له راډیو څخه خپره شوې ده

دغه فکر هغوی په ماده پرستی کې غوپه کړل ، ټولنیز ژوند ، تمدن سیاست ، اقتصاد ، لنډه داچې ددنیوي ژوند ټولې څانګې دروحانیت له رڼاڅخه خالي او په پای کې زمکه له ظلمه ډکه شوه له بلې خوا کوم خلک چې دروحانیت په لټه کې ؤهغوی دخپلې روح دپرمختګ لپاره داسې لارې چاې ولټولې چې له ټولنیز ژوند ځینې لرې په غرونو او ځنګلونوکې وې داځکه چې دهغوی له نظره دروحاني پرمختګ لپاره هیڅ یوه لاره نه شوه موندل کیدی .چې ددنیوي مادي ژوندله مینځه تیره شوې اوسي دهغوی په وړاندې دروحاني پرمختګ لپاره دجسماني څواک له مینځه تلل لازمي خبره وه .

له همدې کبله هغوی له خپل ځانه داسې ریاضتونه اودعبادت لارې چارې ایجاد کړې چې نفس او جسم یې دواړه له کاره وویستل دروحاني تربیت لپاره یې ځنګلونه ثمځې او ګوښه ځایونه بهترین ځایونه وګڼل ترڅو دتمدن زوراو شور ددوی په مصروفیتونو خلل رانولي .

دروح پالنې لپاره دوي ته له دي نه پرته بل صورت په ستر ګونه شو چې دمادي ژوند ټولې اړیکې غوڅې اوله منځه لاړې شي .له د ې نه وروسته بیادجسم او روح دغه تضاد دانسان لپاره دکمال دوه بیلابیل مفاهیم او اهداف رامنځته کړل .

یولورته ددنیوي ژوندانه دکمال او پرمختګ مفهوم داشوچې انسان دې یوازې په مادي ژوند کې ډوب اوسي ددې کارنتیجه داوګرزیده چې انسان یو بهترین مارغه داوبویوښه حیوان یوښه اس اویوښه لیوه جوړشو.

بل لورته د روحاني ژوند دکمال مفهوم هم بدلون وموند او هغه داچې دانسان فطرت دې دلوړ ځواک خاوند وګرزي د دې پايله داشوه چې انسان يوبنه راډيوسازيو بنه ذره بين او او . وه ډيره لوړه او بشپړه دواخانه وګرزيده .

داسلام نقطه نظرپه دغه هکله دنړۍ دټولومذهبي او فلسفي نظامونوڅخه بيلتون لري اسلام وايي چې انساني روح الله پاک دځمکې پرمخ خليفه وګرځاؤ يوڅه واک ، فرايض او يوڅه مسؤليتونه يې ورته وروسپارل او ددې دترسره کولولپاره يې هغه ته يوبهترين او موزون بدن او صورت هم ورکړترڅو په بشپړې خپلواکۍ سره دخپلو اړونده دندوپه سرته رسولوکې ورڅخه کارو اخلي .

له همدې کبله دغه جسم دروح جيلخانه نه بلکې دهغه کارخانه ده ددغه روح لپاره که چيري کومه ترقي او پرمختګ ممکن دی هغه دادی چې هغه ددغې کارخانې الات اسباب او ځواکونه په کارراولي او خپل قابليت وښئي بيا دغه نړۍ دعذاب کورنه دی چې په هغې کې بشري روح زنداني وي . بلکې داهغه کارخانه ده چې په دې کې دکارکولو لپاره الله جلت عظمته نړۍ ته استولی دی . دلته يې ډيرشيان دهغه په واک کې ورکړي . او له ده سره يې نور وګړي هم دخلافت ددندې دسرته رسولو لپاره نړۍ ته راليږلي دي دلته دفطرت له غوښتنو سره سم دتمدن ، معاشرت ، اقتصاد ، سياست او دژوندنورې څانګې يې دده لپاره رامېنځته کړي دلته که چيرې کومه . روحاني پرمختيا کيدی شي نوددې صورت دانه دی چې انسان له دغې کارخانې څخه مخ واړوي او په يوګوښه ځای کې کښيني بلکې ددې ښه صورت دادی چې هغه په دې کې کاروکړي او خپل لياقت څرګند کړي نړۍ دده لپاره دازموينې ډګردی دژوند هراړخ او هره

ځانګه ګواكې دده لپاره د ازموينې پارچه ده. كور، كلى، بازار، منډايي ، دفتر، كارخانه ، مدرسه او ښوونځى، محكمه ، فوځي چاوڼى، پارلمان ، دسولې كانفرانسونه ، اودجګړې ډګر ټول دبيلابيلو مضمونو نوپارچې دي چې ددې كار په خاطر ده ته وركړشوې دي . كچيرې هغه په دې كې كومه پارچه ډكه نه كړي او يا زياتره پارچې خالي پريږدي نوپه نتيجه كې به دده لپاره له صفره پرته بل څه ورنه كړى شي دبري او پرمختګ كه كوم امكان كيدى شي نويواځنى صورت يې دادى چې هغه خپل ټول وخت او ټوله پاملرنه دازموينې په وركولو كې په لګښت ورسوي . او څومره پارچې چې ده ته وركړشوي په ټولودې څه ناڅه دكاركولو څرګندونه وكړي .

په دې توګه اسلام دژوند راهبانه تصور ردوي دانسان لپاره دروحاني پرمختګ لاره له دنيوي ژوند څخه جلانه ده دروحاني ودې او پرمختګ برياليتوب او نيكمرغۍ اصل ځاى دژوند مركزي كارځاى دى نه دژوندګوښه او كناره ، اوس موږ ته كتل په كاردي چې اسلام دروحاني پرمختګ او ځوړتيالپاره كوم معياروړاندې كوي ددې پوښتنې ځواب دخلافت په مفكوره كې پروت دى چې هغه به زه اوس ذكركړم .

دخليفه په حيث انسان دخپل ټول ژوند دكارنامي لپاره داالله جلت عظمته پروړاندې ځواب وركونكى دى دهغه مسؤليت دى چې په ځمكه كې كوم اختيار او وسايل ده ته وركړ شوې دي هغه ټول داالله عزوجل د خوښې په برابرستعمال كړي . كوم لياقت او ځواكونه چې ده ته وركړ شوي هغه زيات نه زيات داالله جلت عظمته دخوښې په لاس ته راوړلو كې په لګښت ورسوي په بيلابيلو اړيكوكې چې له نورو انسانانو سره دده تړون رامنځته كيږي په هغې كې دې داسې كړنلارد

غوره کړي چې الله جلت عظمته ته خوښه وي اوپه بشپړه توګه دې خپلې ټولې هلې ځلې په دغه لارکې په لګښت ورسوي چې دزمکې، او دهغې په سردژوندنظام دومره غوره بنه غوره کړي څومره يې چې الله عزوجل غوره ليدل غواړي دغه خدمت چې انسان څومره دمسؤليت پيژندنې او اطاعت او دخپل ځښتن درضااو خوښې سره سرته ورسوي په همغه اندازه به الله جلت عظمته ته نژدې توب حاصل کړي.
الله عزوجل ته نږدېتوب داسلام په رڼاکې روحاني پرمختګ دی ددې پرعکس چې هغه څومره دخپل مسؤليت په سرته رسولو کې سست، تنبل، غل، او مسؤليت نه پيژندونکی اوسي او ياپه بل عبارت چې څومره سرکښ، باغي او نافرمان وي په هماغه اندازه به له الله عزوجل څخه لرې وي. له الله عزوجل څخه دلرې والي نوم داسلام په ژبه روحاني تنزل ګڼل کيږي.
له دغې څيړنې څخه دغه خبره څرګند يږي چې داسلام په رڼاکې ددېندار او دنيادار دواړو دعمل دايره يوه ده. يو کارځای دی چې په هغې کې دواړه کاره کوي بلکې ديندار ه سړی به له دنيا دارڅخه هم زيات په بشپړکوښښ سره مشغول وي. دکورله چاپيريال نه واخله ترنړۍ والو کانفرانسونو پورې چې دژوند څومره چارې دي داټول مسؤليتونه به ديندار انسان له دنيادارنه زيات په خپلو لاسونو کې اخلي البته کوم شی چې ددواړولارې يوتربله سره جلاکوي هغه له الله عزوجل سره داړيکو قايمولو نوعيت دی ديندارانسان چې څه شی کوي د الله جلت عظمته پر وړاندې دمسؤليت داحساس او دالله عزوجل درضادحاصلولو لپاره يې ترسره کوي اودهغه قانون په برابربه يې سرته رسوي. چې الله جلت عظمته ... لپاره ټاکلی دی ددې پرعکس دنيادارانسان چې په کوم کارلاس پورې کوي په غير مسؤلانه

او خپلسري ډول يې سرته رسوي همدغه کار د دينداره انسان ژوند د روحانيت له رڼا څخه محروموي .

اوس زه په لنډه توګه تاسو ته وايم چې اسلام د دنيوي ژوند په دغه مرکزکې د انسان لپاره د روحاني پرمختګ لاره څنګه جوړوي ؟ د دغې لارې لومړی پړاؤ ايمان دی يعنې چې د سړي په زړه او دماغ کې دغه مفکوره او يقين پروت وي چې الله عزوجل د ده مالک ، حاکم ، اومعبود دی د الله جلت عظمته خوښې د ده د ټولو کوښښونو موخه جوړوي او د الله عزوجل حکم د ده د ژوندانه قانون دی دغه فکر او عقيده چې څومره زياته پخه او ټينګه وي په هماغه اندازه به هې ا سلامي عقيده پياوړې اوله زيا ت ثبات او ټينګار سره به انسان د روحاني پرمختګ په لاره ګامونه اخلي .

د دغې لارې دويم پړاؤ اطاعت دی يعنې داچې سړی په عملي توګه له خپلې خپل سرۍ څخه لاس واخلي او په عملي ډول د الله عزوجل بندګي اختيار کړي چې د ايمان او يقين پراساس يې د خپل څښتن په توګه منلی دی د دغه اطاعت نوم د قرانکريم په اصطلاح کې اسلام دی او دريم پړاويې تقوی ده چې په عامه ژبه کې د فرض په پيژندلو او د مسؤليت په احساس سره تعبيرېږي .تقوی دا دی چې سړی د خپل ژوند په هر اړخ کې له پوهې سره سم کار وکړي اوپه دې باوري وي چې هغه به د خپلو افکارو ، ويناؤاو افعالو د خپل څښتن په وړاندې حساب ورکوي د هر هغه کار مخه دې ونيوله شي چې الله عزوجل منع کړې وي او هر هغه کار ته دې ملاوتړله شي چې الله عزوجل يې د کولو حکم کړی وي او په پوره پوهې سره د حلال او حرام ، صحيح او ناسم خير اوشر ترمينځ دې بيلتون وکړی شي .

د دغـې لارې تـرټـولو لوړپړاو احسـان دی د احسـان معـنا دادی چـې دبنده خوښه دالله عـزوجل لـه خوښـې سره یوځای شي کوم شی چې الله جلت عظمـتـه تـه خوښ وي بـنده یـې هـم په خپـل زړه سره خوښ وبولـي الله تعالـی چـې کومـې بـدې چارې په خپله زمکه باندې لیدل نه غواړي مسلمان بنده نه یوازې داچې له هغې ځخه پخپله ځان وساتي بلکې له نړۍ نـه دهغـې دپـای تـه رسولو لـپاره خپـل ټول ځواکونه او خپلې ټولې وسـېلې پـه کارراولـي او الله تعالـی چـې دکومـو نـیکو چاروخپـرول او خپله ځمکه پرې ښایسته کـول غـواړي مسـلمان بـنده نه یوازې په دې اکـتفاء کـوي چې خپـل ژوند پرې ښایسته کړي بلکې دخپـل سردوینو په بیه یې په ټوله نړۍ کـې خپـرول او ټینګښت غـواړي دغـه مقـام تـه پـه رسیدلوسره بـنده تـه د الله عـزوجل نهایـې قـرب او نژدې تـوب پـه برخه کـیږي .له همدې امله دانسان دروحاني پرمختګ ډیره لوړه مرتبه ده

دروحانـي پـرمختګ دغـه لاره یـوازې افـرادوته نه بلکـې ولسونو او ټولګـیوته هم پـه برخـه کیدی شي دیوفرد پـه شان یو قـام تـه هم دایـمان ، اطاعـت او تقـوی لـه پـړاونوپه تیـریدلو داحسـان لوړوپـړاونوتـه رسـیدل ممکـن دي پـه همدې تـوګه یـو دولت او حکومت هم له خپـل بشپړ نظام سره مؤمن ، مسلمان ، متقي او محسن جوړیدی شي .

پـه حقیقت کـې بـه داسـلام مقصد هلتـه ترسره شي چې یوبشپړ قـام پـه دغـه لاره ګامـونه واخلـي تـرڅو پـه نړۍ کـې یو متقي او محسن اسلامي دولـت پـه پښـو ودریږي اوس دروحانـي تـربیت پـه هغـه نظام هم رڼاا چول غـواړم چـې دافرادو او ټولنې دروحاني تربیت لپاره اسلام وړاندې کړې ده چې څلورارکانه لري .

دروحانـي تـربیت لومـړي رکـن لمـونځ دی چـي پـه شپـه او ورځ کـې پـینځه ځلـه دسړي پـه ذهـن کـې د الله عـزوجل یـاد تـازه کـوي اودهغـه

عزوجل ويره دده په زړه کې کښينوي او دهغه جلت عظمته محبت او مينه دده په زړه کې رامينځته کوي دهغه احکام بيابيامخې ته راځي او دهغه داطاعت تمرين ترسره کيږي دغه لمونځ به يوازې په انفرادي توګه نه وي بلکې له جماعت سره فرض کړشوی دی ترڅوټولنه ټولنه په مجموعي توګه دروحاني پرمختګ په لاره ګامونه واخلي او په دغه لاره کې دتللو لپاره تل تياراوسي.

دروحاني تربيت دويم رکن روژه ده چې هرکال پوره يوه مياشت مسلمانوافرادوته په انفرادي توګه او اسلامي ټولنې ته په مجموعي توګه دتقوی روزنه ورکوي.

دروحاني تربيت دريم رکن زکات دی چې په مسلمانوافرادوکې دمالي سربښندنې ، خپل مينځي همدردۍ او مرستې احساس رامنځته کوي

نن ورځ ډيرخلک په غلطۍ سره زکات دټکس په لفظ سره تعبيروي په داسې حال کې چې د زکات روح دټکس نه په بشپړه توګه جلا حيثيت لري دزکات اصلي معنا وده او سپيڅلتوب دی له دغه لفظ نه اسلام دغه حيثيت دسړي په ذهن کې کښينوي او هغه داچې د الله عزوجل په مينه او محبت کې چې له خپلو ورونوسره تاسو کومه مالي مرسته کوئ له هغې نه ستاسې روح ته پياوړتيا او ستاسواخلاقوته سپيڅلتيا په برخه کيږي.

دروحاني تربيت څلورم رکن حج دی دادالله دمينې او محبت په محور دايمان دڅښتنانودنړۍ والې وروروګلوۍ دبنسټ دبره ږدي او يو داسې نړې وال خوځښت راولي چې په نړۍ کې به ترپيړيوپيړيوپورې دحق بلنې ته لبيک ويل کيږي اوکه الله عزوجل کول ترابده پورې به دغه ناره جاري وي.

# د اسلام اقتصاد نظام(۱)

دعدل او انصاف په لاري دبشر داقتصادي ژوند دسمون په خاطر اسلام څو اصول او قوانين ټاکلي دي ترڅو دشتمنۍ دلاسته راوړلو، په کارولو او چلند ټول نظام په هغو کرښو برابرشي چې اسلامي شريعت يې لاربښوونه کړې دپيسو دلاس ته راوړلوتګلاره او په دې توګه دچلند صورتونه يې بشپړواضح کړي دي

داسلام سپيڅلي دين دجزئي مسائلو څيړنه نه ده کړې بلکې کلي مسايل يې څيړلي دي داځکه چې جزئي مسايل په بيلابيلووختونو کې دتمدن له پرمختګ او ودې سره سم دحالاتواو ضرورتونو په لحاظ پخپله سمون مومي اسلام چې څه غواړي هغه دادی چې په ټولو وختونواو حالاتوکې چې دبشر اقتصادي کړووړوکوم شکلونه غوره کړي. په هغې کې دې دغه اصول په مستقل ډول ټينګ پاتې شي او ددغو حدودولازمي پابندي دې وکړی شي.

داسلام دسپيڅلي نظام په رڼاکې زمکه او دهغې ټول شيان الله جلت عظمته دبشرداستفادې لپاره پيداکړي دي له همدې کبله د هرانسان دغه يو فطري حق دی چې له زمکې څخه دخپلې روزي د لاس ته راوړلوکوښښ وکړي په دغه حق کې ټول خلک په مساوي ډول شريک دي هيڅوک هم له دغه حق څخه بې برخې کولی نه شي هيچاته هم په دغه اړه ترجيحي حيثيت په برخه نه دی هيڅ يو شخص ،

---

(۱)دغه وينا په۱۹۴۸م کال د فروری د مياشتی په لسمه نيټه دلاهورد راډيو څخه خپره شوې.ده

نسل او يا طبقې باندې په داسې توګه چې دځينو وسايلو له لاس ته راوړلو څخه بې برخې شي او داسې امتيازات رامينځته شي چې دهغې پراساس دژوندا ويارزق کومه وسيله کومې ځانګړې طبقې ، توکم او يادکومې کورنۍ اجاره جوړه کړي شي ،الله جلت عظمته پر ځمکه دهغه عزوجل درزق او روزي دپيداکړشويو وسايلو څخه دخپلې برخې دلاس ته راوړلو په لوري هڅه دټولوخلکومساوي حق بللى ا و ددغو کوښښونو فرصتونه هرچاته په مساوي توګه پراخه پريښودل شوي دي.

د الله جلت عظمته هغه نعمتونه چې په تيارولواو ګټې اخيستلوکې يې دچادهلو ځلو او لياقت دخل نه وي دټولو خلکو لپاره مباح دي هرڅوک حق لري چې دخپلې اړتيا په اندازه ورڅخه ګټه واخلي سمندرونه ، دچينواوبه دځنګلونو لرګي دطبيعي ونو ميوې .وابنه هوا اوبه اود صحراڅناور دځمکي پر سطحه کانونه، په دې شيانو په عمومي توګه نه دچا شخصي ولکه تينګېدی شي اونه پرې داسې بند بېزونه لګولی شي چې د الله جلت عظمته بندګان ورڅخه خپلې اړتياوې پوره نه کړي.

البته کوم وګړي بې چې دسود اګريزواهدافو لپاره په لويه کچه په کار راولي پر هغوی ټکس لګولی شي الله تعالی چې کوم شيان دانسان دګټې په مقصد پيداکړي دي دهغو بې فايدې پريښودل صحيح نه دي يا خو چې پخپله ورڅخه ګټه واخلي او يا يې پرېږدي چي نورخلک ورڅخه مستفيد شي

ددغو اصولو پربنسټ داسلامي قانون دپريکړې پراساس هيڅوک هم خپله ځمکه له درې کلونو زياته شاړه نه شي پريښودلی که چيرې يې دکښت، ودانۍ اويا په داسې نوروچارو کې په کار رانه وستله نو

ددرې کلونو له تیریدلو وروسته متروکه زمکه ګڼل کیږي اوبل شخص ته به ورسپارلې شي ترڅو ورڅخه کاروا خلي پر دغې ځمکې څوک دعوه نه شي کولی او اسلامي حکومت بشپړ واک لري چې دغه ځمکه بل چاته وسپاري کوم شخص چې نیغ په نیغه دالله(ج) دنعمتونو له خزانو څخه دخپل جهد اولیاقت په بنسټ ورڅخه کارواخلي هغه دهغه شي څښتن ګرځي .دمثال په توګه یو څوک شاړه ځمکه په داسې حال کې اباده کړي چې دبل چا ملکیت نه وي اوکنه اخیستل ورڅخه پیل کړي نو دغه شخص له دغه ملکیت څخه نه شي ګوښه کولی

داسلام دسپیڅلو لارښوونو په مطابق په نړۍ کې دټولو مالکانه حقوقو پیل په دې توګه وشو دلومړي ځل لپاره هرکله چې دځمکې پرمخ بشري نسل رامینځته شو نو ټول شیان دټولو خلکو لپاره مباح وو بیا چې کله کومو خلکو په دغو شیانو خپله قبضه پیل کړه اوددې شیانو څښتنان وګرځیدل یعنې دوی ته دا حق ور په برخه شو چې د هغې استعمال دخپل ځان لپاره خاص وګرزوي اوکه چیرې بل څوک ورڅخه کار اخیستل وغواړي له هغه څخه دې عوض واخلي دغه شی دانسان د ټولو اقتصادي معاملاتو فطري بنسټ دی اودغه بنسټ پر خپل ځای ټینګول په کاردی .

په روا لارو چارو چې څوک دژوند په ډګر ملکیت په لاس راوړي هغه په هر حال دوپاړ اوعزت وړ ګڼل کیږي البته هغه ملکیتونه دتنقید وړدي چې شرعي حیثیت یې معلوم نه وی کوم ملکیتونه چې په شرعي لحاظ نارواوي له شک څینې پرته یې پای ته رسول ضروري دي البته کوم ملکیتونه چې شرعي بڼه او اساس ولري هیڅ یو حکومت او قانون جوړونکې غونډې ته دا حق په برخه نه دی چې هغه ورڅخه په زور واخلي اویا دهغه په مالکانه حقوقو کې څه کموالی اویا

زیات والي راولي او پاد تیولنېزو بنسټونو په نوم داسې نظام په پښو ودروي چې شرعي حقوق تر پښو لاندې کړي دتیولنېزو ګټو لپاره چې د افرادو په ملکیتونو اسلامي شریعت کوم بند بیزونه لګولي دي په هغوکې کموالی د پر لوی ظلم او زیاتی دی

داخبره داسلامي حکومت په مسؤلیتونو کې شامله ده چې د خلکو دشرعي حقوقو ساتنه وکړي اوله هغو څخه دې دتیولنې هغه حقوق تر لاسه شي چې اسلامي شریعت پردوی باندې مقرر کړي دي الله جلت عظمته دخپلو نعمتونوپه وېش کې مساوات اوبرابري په نظرکې نه دی نیولې بلکې دخپل حکمت پراساس یې ځینو خلکوته په نورو فضیلت ورکړی دی،ښاېست ښه اواز صحت، جسماني ځواکونه دماغي قابلیتونه دزیږېدنې چاپېریال اوداسې نور شیان ټولو خلکوته یوشان نه دي ورکړشوي همدغه معامله درزق هم ده الهي فطرت پخپله ددې خبرې غوښتنه کوي چې دخلکو تر مینځ دې درزق اوروزي تفاوت وي له همدې کبله هغه ټول اصول اواهداف داسلام داصولو په رڼا کې ناسم اوغلط دي چې دخلکو تر مېنځ مصنوعي اقتصادي برابري په پښو دروي .

اسلام چې د کوم مساوات اوبرابرۍ قایل دی هغه په روزي کې نه بلکې درزق دلاسته راوړلو په هلوځلو کې دفرصت برابرولو مساوات دی هغه غواړي چې په ټولنه کې داسې قانوني خنډونه له مینځه یوسي چې دهغې پراساس کوم شخص دخپل قوت او استعداد په مطابق اقتصادي هلې ځلې ونه شي کړی اوداسې امتیازاتو مخه دې ونیول شي چې ځینو طبقو، توکمونو اوکورنیو ته دپیدا ېښت په لحاظ خوشحالي په قانوني تحفظ بدلون ومومي دغه دواړه طریقې دفطري نا برابرۍ پرځای په زورسره یوه مصنوعي نابرابري په پښو دروي له

همدې کبله اسلام ټول هغه نظامونه رنګوي اودټولنې اقتصادي نظام داسې فطري حالت ته راولي چې په هغه کې هرچاته دکوښښ کولو دفرصتونو لار پرانستې وي البته کوم خلک چې غواړي دکوښښونووسايل اونتايج هم دټولو خلکو ترمېنځ په زورسره برابر کړي اسلام ورسره متفق نه دی داځکه چې هغوی فطري نابرابري په مصنوعي برابری تبدیلول غواړي

بشري فطرت ته هغه نظام نژدې کېدی شي چې په هغه کې هرڅوک په اقتصادي ډګر دخپلې ځغاستې پېل له هغه ځايه اوله هغه حالته وکړي چې پر هغه باندې الله عزوجل دده تخليق کړی څوک په موټر کې راغلی هغه دې په موټر کې درومي اوڅوک چې په پښو راغلی هغه دې په پښو خپل مزل ته ادامه ورکړي او څوک چې شل شوټ نړی ته راغلی هغه دې په شوټ ځان سفر پېل کړي

ټولنېز قانون هېڅکله داسې په کار نه دی چې دموټرښتن دې په مستقل ډول دموټر اجاره تېنګه کړي اودشل شوټ لپاره دې دموټر حصول نا ممکن وي اونه داسې په کاردی چې د ټولو ځغاسته دې په زور سره له يوه ځايه په يوه حالت پېل اوتر پايه دې ټول سره ترلې شوي اوسي ددې پر عکس داسې قانون او اصول په کاردی هغه چاچې په ګوډه پښه ځغاسته پېل کړې وه هغه دې په خپل کوښښ او قابليت سره موټر تر لاسه کړي چاچې په پېل کې موټر چلوه خووروسته دخپلې نا اهلی له کبله ګوډ اوشل پاتې شومسئوليت يې خپل دی

اسلام يوازې دومره نه غواړي چې په ټولنېز ژوند کې دې دغه اقتصادي منډه تر ډېره زياته پراخه وي بلکې داهم غواړي چې په دې ډګرکې ځغاستونکې وګړي دې دیوبل لپاره بې درده نه وي بلکې يو پر بل دې دردمن او مرستندوی وي. هغه له يو لوري د خپلو

اخلاقي ښوونو په وسیله په خلکو کې دغه فکر پیدا کوي چې خپلو
وروسته پاتې ورونو سره دې مرسته وکړي له بل لوري هغه غواړې چې
په ټولنه کې یوه مستقله اداره موجوده وي چې د معذورو ، شلو ،
ګوډو او بې وسیلې خلکو د مرستې ضامنه وي . کوم وګړي چې په
اقتصادي منډه تړه کې د برخې اخیستلو قابل نه وي هغه به له دغې
ادارې څخه خپله برخه لاس ته راوړي کوم وګړي چې د وخت د حوادثو
له امله له ځغاستې څخه لویدلې وي دغه اداره به یې را اوچتوي او بیا
به یې د تللو وړ ګرزوي او کومو خلکوته چې د هڅو په دغه ډګر د
سقوط اندیښنه وي له دغې اداري نه به ورته مرسته په برخه شي

د دغه هدف د تحقق لپاره د اسلام سپیڅلې نظام دغه قانون
ټاکلی دی چې د هیواد له ټولې پانګې څخه دې .دوه نیمې برخې او له
عشري ځمکو څخه دې لسمه او یا شلمه برخه زکات واخیستلی شي
له ځینو معدنیاتو څخه دې پنځمه برخه او په څارویو کې دې له هرې
نوعې څخه په ځانګړي تناسب کلنی زکات واخیستل شي دغه ټوله
پانګه دې په نیستمنو خلکواو یتیمانو او اړو وګړو وویشل شي .

دغه یوه داسې ټولنیزه بیمه ده چې د هغې د موجودیت په
صورت کې د اسلامي ټولنې هیڅ یو تن د ژوند د ضروري اړتیاو
وڅخه نه بې برخې کیږي هیڅ یومزدور به کله هم دومره نه مجبوریږي
چې د لوږې له ویرې د خدمت هغه شرطونه ومنې چې د کارخانې
څښتن او یا یې د زمکې خاوند وړاندې کوي . د هیڅ سړي شخصي
ځواک به له هغه کم معیار څخه هیڅکله نه ټیټیږي کوم چې دوټه ا یزو
هلو ځلو لپاره ضروري دي . د فرد او ټولنې ترمینځ اسلام یو داسې
توازن ټینګ کړی دی چې په هغې کې د فرد شخصیت او د هغه ازادي

هم خوندي پاتې کيږي او هم ټولنيزو ګټو ته دده ازادي زيان اړونکې نه وي بلکې لازمې ګټې هم لري

د اسلام سپيڅلی نظام هيڅکله يو داسې سياسي او اقتصادي تنظيم نه خوښوي چې فرد په ټولنه کې خپل ځان ورک کړي او هغه ته هيڅ ازادي پاتې نه شي چې د هغه د شخصيت د صحيحې ودې لپاره ضروري وي د يو هيواد د توليد د ټولو وسايلو د دولتي ګرزولو څخه دغه لازمي نيتجه راوزي چې د هيواد ټول افراد په ټولنيزه شکنجه کې ميده کيږي په دغه حالت کې د هغه دانفراديت پايښت او پرمختګ له ستونزو سره مخ کيږي.

د فرد لپاره چې څنګه سياسي او ټولنيزه ازادي ضروري ده بـه همدې توګه اقتصادي ازادي هم تر ډيرې اندازې پورې ضروري بريښي کله چېرې موږ د انسانيت په بشپړ ډول بيخ او بنسټ له مېنځه نه وړو نو زموږ په ټولنيز ژوند کې دومره ګنجايش ضروري دی چې دالله جلت عظمته. بوينده خپله روزي په ازاد ډول پېدا کړي او خپله فکري خپلواکي وساتي او خپلو ذهني او اخلاقي څواکونو ته د خپلو رحجاناتو په مطابق وده ورکړي، د هر چاد رزق او روزی کليګانې چې د بل چا په لاس وي کـه د څومره زياتې شتمنی څښتن شي هيڅ خوند بـه يې نه وي دا ځکه د هغه په الوتنه کې چې کومه نيمګړتيا رامينځته شوې يوازې د جسم چاغ والی د هغې تلافي نه شي کولی .څنګه چې اسلام داسی جابرانه سرزوری نوکر صفته نظام نه خوښوي چې د رزق کليګانې يې د بل چا په لاس کې وي په همدې توګه يو داسې ټولنيز نظام هم نه خوښوي چې افرادوته يې ټولنيزه او اقتصادي بې واګو ازادي ورکړې وي چې د خپلو غوښتنو او ګټو په خاطر ټولنې ته زيان وررسوي

د دغو د واړو افراطي نظرياتو ترمينځ اسلام مينځنۍ لاره انتخاب کړې ده هغه دا چې لومړی دې فرد د ټولنې په خاطر د څو حدودو او مسؤليتونو پابند کړی شي بيا دې په خپلو چاروکې ازاد پريښودل شي دهغو حدوددواومسئوليتونو بشپړ تفصيل بيانول دلته امکان نه لري البته دهغې لنډه نقشه ستاسې په مخ کې اينبودل غواړم.

تر ټولو دمخه دپيسو لاسته راوړل درواخلئ دپيسو دګټلو په وسايلو کې چې اسلام ددومره باريکۍ سره دروا اوناروا بيلتون کړی دی. دنړۍ هيڅ قانون ورته پاملرنه نه ده کړې دشتمنۍ دلاس ته راوړلو هغه ټولې لارې چارې يې ناروا ګرزولي دي چې له هغې نه فرد اوياټولنې ته مادي اوياا خلاقي زيان وررسيږي لکه دشرابو اونشه يې توکو جوړول اوخرڅول ، زنا ، فحش، نڅا ، موسيقي، جواري لاټري، سود اوددوکې بې اوداسې نورې سوداګريزې لارې چارې چې په هغې کې يولورته يقيني ګټه اوبل ته دګټې اشتباه وي په همدې توګه داړتيا وړشيان لوړنرخ ته ساتل اوپه همدې ډول ډېر هغه کاروبارونه چې په ټولنيزه توګه زيان رسوونکې دي.

په دغه معامله کې که چېرې داسلام داقتصادي قانون جاج واخيستلی شي نو دحرامو لارو چارو يواوږد فهرست به ستاسو مخې ته راشي په هغې کې به ډېرې هغه لارې چارې تاسوته وښودلی شي چې دهغې داستعمال په نتيجه کې په اوسني پانګوال نظام کې خلک مليونران جوړيږي اسلام په دغو ټولو لارو چارو دقانون له مخې بنديز لګولی دی اوخلکوته يې يوازې په هغو لاروچارو دپيسو دګټلو ازادي ورکړې چې دهغې وسيله نوروته کوم حقيقي اوګټورخدمت ترسره اوله عدل اوانصاف سره دهغې عوض ترلاسه کړي.

دحلالـو وسـائلو څخـه لاس تـه راغلـي ملكـيت اسـلام دملكـيت دحقوقـو پـه تـوګه منـي البـته دغه حقوق غيرمحدودونه دي اسلام سړی پابند وي چې خپل رواګټلی شوی ملكيت په رواالاروچاروکې په كار راولي په لګښت يې هم داسې قيودت لګولي دي چې دهغې په وسيله پاک اوسپيڅلی ژوند ترسره كولی شي البته په عياشيو مزواوچړچو كې مال نه شي لګولی په همدې توګه چې دشان شوكت فخر اوغرور په څرګندونه كې لـه اندازې څخـه تېـرى وكـړي اوپـه خلكـو دخـپل الوهيت سكه وچلوي په ټينګه مخه نيولې ده .

دبې ځایـه لګښـتونو ځنې صـورتونه پـه اسـلامي قانـون كـې پـه څرګنده تـوګه ممنـوع اعـلان شـوي البـته پـه ځينو نورو صورتونو كې اګركه صراحت نشته لـيكن اسـلامي حكومت ته دااختيارات په برخه دي چې پـه شـتمنۍ كې لـه ناروا تصرفاتو نه دخپل حكومتي فرمان په وسيله بنديز اعـلان كـړي لـه رواومعقولـو لارو نـه چـې كـوم مـال لـه چاسره پاتې شي هغـه جمـع كـولی اودزياتـې شـتمنۍ دلاسـته راوړلـو لپاره يې پـه كارولـی هم شي مګر په دغو دواړو حقونو ځينې بنديزونه هم شته دمـال د راټولولوپه صورت كې دنصا ب نه دزيات ما ل په سلو روپيوكې به دوه نيمې روپۍ زكات وركوي كه چېرې په كاروباركې يې لګول وغـواړي نويوازې په روا كاروباركې يې لګولی شي .رواكاروبار برابـره خبره ده چې يوسـړی يـې پخپله پـرمخ بـوزي اويايـې بـل چاتـه د پانګې ، ځمكې او يـا دالاتـو او اسبابو په صورت كې وركړي په ګټه او تاوان كې به دواړه سره شريک وي دغه دواړه صورتونه روا دي.

د اسلامي شريعت د حـدودو پـه چوكاټ كې چې څوک كار وكړي پـه دغه صورت كې كه چيرې يو څوک مليونر هم شي داسلام په رڼا كې دكـوم اعتـراض وړ نـه ګڼل كيـږي بلكې دالله جلت عظمته پېرزوينه ده

البته د ټولنيز و ګټو په خاطر پرې دوه شرطونه لګولي شي يو دا چې هغه به دخپل تجارت په مال کې زکات او په زراعتي محصولاتو کې به عشر ورکوي دويم دا چې هغه به د تجارت، صنعت او زراعت په چارو کې چې له کومو خلکو سره د شرکت او يا اجوري په معامله لاس پورې کوي له هغوی سره دې له انصاف او عدالت څخه کار واخلي دغه انصاف که چېرې يې په خپله نه کوي اسلامي حکومت دې يې پرې مجبور کړي له دې نه وروسته چې مال در وا حدودو په دننه کې تر لاسه شي هغه اسلام تر ډيره وخته يوځای نه پرېږدي بلکې د ميراث دقانون په وسيله يې په را روانو نسلونو توزيع کوي.

په دغه معامله کې داسلامي قانون رجحان د نړۍ دنورو قوانينو له رجحاناتو سره توپير لري نور قوانين کوښښ کوي چې کومه شتمني يو ځل يوځای شي هغه دې تل ترتله پخپل حال پاتې شي

د دې برعکس اسلام داسې قانون جوړ کړی دی چې کومه شتمنۍ يو شخص په خپل ژوند کې تياره کړې ده د ده تر مړينې وروسته دې دده د نژدې خپلوانو تر مينځ وويشل شي که چېرته نژدې خپلوان ونه اوسي بيا دده لرې خپلوان په ميراث کې شريک دي او که لرې خپلوان يې هم نه ؤ بيا ټوله اسلامي ټولنه دده په ميراث کې برخمنه ده (يعني ټول مال به بيت المال ته وسپارلی شي) د غه قانون دلوی پانګوال او ځمکه وال جوړيدو مخه نيسي د مخکنيو بنديزونو سره سره که چېرې څه خطر وي نو دغه وروستنی ګوزار به يې له مينځه يوسي.